# دیوان شمس الفلک

مولوي محمد رفیق



تحقیق او حواشي
زلمے هېواد مل

نظر ثاني :- پروفیسر جهانزیب نیاز
پیش لفظ :- پروفیسر محمد نواز طائر

پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي

# دیوان شمس الفلک


مولوي محمّد رفیق

تحقیق او حواشي
زلمے هیواد مَل







نظرثاني :- پروفیسر جهانزیب نیاز

پیش لفظ :- پروفیسر محمّد نواز طائر



پښتو اکیډیمي پښور یونیورسټي




---

د پښتو اکېډيمي د مطبوعاتو سلسله نمبر ۲۷۰

---

د کتاب نوم ——— ديوان شمس الفلک

د مصنف نوم ——— مولوي محمد رفيق

چاپ کوونکے ——— دائرېکټر پښتو اکېډيمي

د چاپ ځائے ——— نديم يونس پرنټرز لاهور

د چاپ کال ——— ۱۹۹۳ء

کتابت ——— محمّد ارشاد خان

شمېر ——— يو زر

قيمت مجلد ——— ۱۸۰ روپۍ

سټوډنټس ايډيشن ——— ۱۵۰ روپۍ

---

په اهتمام د محمّد جاويد خليل په نديم يونس پرنټرز لاهور
کښې چاپ شو او پښتو اکېډيمي پېښور يونيورسټي نه خور شو

# تشکر

پښتو اکېډیمي د صوبه سرحد د وزیراعلی ښاغلي میر افضل خان منڼه کوي چې هغوئ ددې کتاب د اشاعت د پاره ددې ادارې سره فراخدلانه مالي امداد اوکړو او پښتو اکېډیمي ئې ددې جوګه کړه چې دا کتاب ښۀ په خوند رنګ چاپ کړي .

# فهرست

بِسْمِ اللّٰہِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْم

نحمدهٗ ونصلی علیٰ رسوله الکریم

د پښتو ژبې خوش بختي دا ده چې وخت او حالات ورو ورو ددې په حق کښې بدلېږي او اوس ددې ژبې د ترقۍ او پرمختګ د يو نکامونه لکه چې زر زر پوره کېږي - حالات همېشه يو رنګ نهٔ وي - جبود او ايسارتيا اخر ختم شي - خوبولے وجود پهٔ ترخو پورې اودهٔ وي اخر يو وخت داسې هم راشي چې د سحر سپېدي د بېدارۍ زېرے شي او اودهٔ را وېښ شي - ژوند حرکت شي او حرکت د ترقۍ او پرمختګ باعث شي.

تېره زمانه پښتو ژبه يا خو طفېلي وه او يا د علم و ادب د مېدان سره نابلده وه - که څهٔ محدود شان کار پکښې کېدو هغه هم هرچا پهٔ خپله سر و مخ کوؤ او د کوم حکومت يا ادارې سرپرستي ورته نهٔ وه حاصله - نتيجه يې دا وه چې د شاعر کلام او د نثرنګار ليکونه پهٔ وړه محدوده حلقه کښې خورېدل او څهٔ خاص پذيرايي يې نهٔ موندهٔ - پښتو لکه چې محکومه وه - او د حکمرانو ژبو ترڅنګ کښېناستے نهٔ شوه - څهٔ رنګ چې د ژوند ټول اسانتياونه او سهولتونه حکمراني طبقې ته حاصل وي - دغسې د دغه حکمرانو ژبو هم پهٔ دغه سهولتونو او اسانتياونو قبضه کړې وه - د پښتو پهٔ برخه تش د پښتون کټ او پوزے وو - دا پهٔ خپل عوامي ماحول کښې اوسېده او هم ددغې ماحول سره اشنا وه - ځکه د خواصو او علم و فن د ماحول سره يې سريکار نهٔ لرلو - ولې بيا هم وخت پهٔ وخت پهٔ دې کښې د علم و ادب شاهکارونه او د شعر و سخن د ملغلرو هارونه جوړېدل او ددې د وراثت قبرې يې معموروله -

پهٔ تېرو دورونو کښې چې زیاته د شپاړسمې صدۍ عیسوي نه راپه دېخوا زمانه ده. پهٔ پښتو کښې داسې بېشماره علمي او ادبي شاهکارونه لیکلي شوي او محفوظ شوي دي. د شعر ښکلا او د افکارو او خیالاتو معنویت د ادب د دغه شهپارو د هر دستاوېزنه ځرګند دے. او که څوک ددې ثبوت غواړي نو هغوي د ارزاني، مرزاخان انصاري، خوشحال خان خټک، رحمان بابا، عبدالقادرخان خټک، عبدالحمید مهمند، کاظم خان شېدا، علي خان، حافظ الپوري، محمدي صاحبزاده، عبدالعظیم رانیزي او داسې نورو د مشق سخن د ملغلرو نه استفاده کولے شي.

دا روایت لکه څنګه چې ذکر اوشو. د ذاتي شوق او انفرادي صلاحیتونو ترحده محدود وو او هم دغسې ژوندے او قائم وو. د نولسمې صدۍ عیسوي او شلمې صدۍ عیسوي ترسره پورې ددې هم دغه نوعیت وو. بیا د وخت او حالاتو د بدلېدو امکان غزونې اوکړې. او د کابل، پېښور، کوټې او قندهار ادبي مرکزونه د پښتو د نشأة ثانیه دپاره تیاتوبي شول.

د ادب د کاروان دغه سلسله چې پهٔ نولسمه صدۍ کښې یې هم خپل وجود پهٔ دغه جوړ ژوندے او قائم ساتلے وو. پهٔ دې کښې د اولسي شاعرانو او ادیبانو د یوې مهمې ډلې نه علاوه ځینې اهل علم صاحب ذوق او سخن فهم افراد هم وو چې هم یې مشق سخن جاري وو او هم د سخنورانو او شاعرانو سرپرست وو. پهٔ داسې شخصیاتو کښې یو نوموړے شخصیت د مردان خان شاد محمد خان هم وو.

شاد محمد خان د سپېڅلي ذوق، قلندرانه مزاج او شاهانه خویونو خان وو. هغه پهٔ خپله شاعر او ادیب هم وو. او ادیب نواز او ادب پالونکے هم وو. د هغوي پهٔ محفل کښې بهٔ د ادیبانو او شاعرانو غونډې کېدې او د شعر و سخن داد او صلې بهٔ یې موندې. پهٔ داسې سخنورو او پوهانو عالمانو کښې یو عالم ادیب او شاعر د اکبر پورې مولوي محمد رفیق وو چې هم د خان مصاحب وو او هم

دهغهٔ د خاندان اتالیق.

مولوي محمد رفیق د دیني علومو د میدان شهسوار وو. د شعر و سخن پهٔ ټولو نکاتو خبردار وو. او د شاعرانه ذوق او فن خاوند وو. شعر یې خوږ او د معنې او مطلب سره سره د اوزانو پهٔ تول پوره وو. ځکه یې د کلام علمي او معنوي خوند هم وو او د موسیقیت او موزونیت انګازې یې هم لرلې. هغهٔ د حافظ الپوري پهٔ رنګې د هرې ژبې د لغاتو سره اشنا وو او د هغې پهٔ استعمال یې پوره دسترس او عبور لرلو. دغه سبب وو چې د هغهٔ کلام د ناشنا ناشنا لغاتو یوه خزینه لرله.

مولوي محمد رفیق د شاعرۍ پهٔ ډېرو اصنافو کښې طبع ازمایي کړې ده. دغه اصناف تقلیدي هم دي او تخلیقي هم. پهٔ دوئ کښې زمونږ د اولني شاعرۍ ځینې نمونې هم شته او د کلاسیکي ادب مثالونه ئې هم لري. پهٔ مثنوي او غزل کښې ئې پهٔ خصوصیت سره طبع ازمائي کوله. او دغه شان د شاهنامه فردوسي پښتو ترجمه ئې د لنډ بحر پهٔ پښتو مثنوي کښې کړې ده. د مولوي محمد رفیق د ډېرو کتابونو پهٔ حقله ښاغلي همېواد مل تفصیلي او تحقیقي ذکر پهٔ خپله مقاله کښې کړے دے. مونږ ټش دا قدرې ویئل غواړو چې دا دیوان چې نوم یې دیوان شمس الفلک دے. هم د هغهٔ د نورو ګنهو تخلیقاتو نه یو اهم او منفرد کتاب دے. پهٔ دې کښې زیات نعتیه کلام راجمع دے او پهٔ پښتو کښې د جناب رسول کریم صلی الله علیه وسلم د ذات مبارک او د هغوي د اوصاف حمیده ؤ ذکر پکښې پهٔ خوند رنګ شوے دے.

دیوان شمس الفلک هم د هغې سلسلې یوه کړۍ ده پهٔ کومه کښې چې ځینې نور کتابونه د خان شاد محمد خان دیوان د هغوي تالیف دبیر دانش او د خان درېم کتاب معراج نامه شائع شوي دي. دا ځلور واړه کتابونه مونږ د پښتو اکېډمي لهٔ خوا د صوبه سرحد د محترم وزیر اعلی خان میر افضل خان پهٔ مالي اعانت شائع کړي دي. مونږ د دې کتابونو د اشاعت پهٔ لړ کښې نهٔ یوائې د ښاغلي وزیر اعلی خان میر افضل خان د مینې او دلچسپۍ منته کوؤ. بلکې د هغوي د محترمې خور

بېګم زري سرفرازخان هم ډېر ممنون يوچې هم د هغوي په خصوصي دلچسپۍ ددې کتابونو د اشاعت څخه روانه شوه . زه په ذاتي جوړله ددې دوارو مشرانو تشکر کووم او يقين لوم چې دوي به بيا دپاره هم د پښتو اکېډيمۍ سرپرستۍ هم دغسې جاري ساتي . په دې موقع زه د ښاغلي وزير اعلیٰ دخصوصي صلاح کار محمد طارق خان هم شکريه ادا کووم چې هغه ددې کار په احسنه طريقه سرته په رسولو کښې په هره موقع موږ له مناسبې مشورې راکړې دي . او زموږ د راهنمائي يې هم کړې ده .

زه د پېښور يونيورسټۍ د سابق وائس چانسلر ښاغلي ډاکټر محمد انورخان او د موجوده وائس چانسلر ميجر جنرل ( ريټائرډ ) خورشيد علي خان هم منته کووم چې د هغوي د مرستې او سرپرستۍ څخه زموږ د ددې اداري کاروونه ځې په وړاندې روان دي - زه د يونيورسټۍ د خزانچي ښاغلي رشيد احمد صالح هم منته کووم چې هغوي په هره موقع ډېر په ډوڼ تندي او خلاص مټ زموږ د مسائلو جاج اخلي او وخت پې وخته راسره کمک او ملګرتيا کوي .

زه د پښتو اکېډيمۍ دخپلو ټولو ملګرو بالخصوص د ډاکټر راج ولي شاه خټک محترمې سلمیٰ شاهين ، ښاغلي ډاکټر هدايت الله نعيم ، پرويز مهجور خويشکي ، دپښتو اکېډيمۍ دکتاب دار ښاغلي سرفرازخان مروت ، محمد جاويد خليل ، محمد انورخان ، ښاغلي حاجي عارف الله ، قاري محمد طيب ، قاضي حنيف الله حنيف او احمد علي عاجز او د پښتو اکېډيمۍ د کاتبانو لطف الله ، محمد رسول ، ارشاد خان ډېره منته کووم چې هغوي ددې کتاب د اشاعت او طباعت په کارکښې په هره موقع دخپلې ذمه وارۍ احساس کړے دے او داکارېې زړ تر زړه پوره په حسن وخوبۍ دچاپ کېدو تر منزله رسولے دے .

زه د نديم يونس پرنټرز لاهور پرېس د اهلکارو هم ممنون يم چې هغوي زموږ

پهٔ دې اشاعتي کارکښې خصوصي دلچسپي واخسته اودا يې ښهٔ پهٔ خوند رنګ چاپ کړو. امېد دے چې دوي بهٔ بيا دپاره هم زمونږ سره خپل تعاون پهٔ دغه جوړ قايم ساتي.

وما علينا الا البلاغ

(پروفيسر محمد نواز طائر)

دائرکټر



# سریزه

---

پښتو یوه داسې ژبه ده چې د زړو ادبي او فرهنګي اثارو کافي برخه یې تر اوسه نهٔ ده څرګنده ، یعنې داچې موږ لا تر اوسه پورې پهٔ دې نهٔ یو قادر شوي ، چې دا څانته معلومه کړو چې د پښتو څومره آثار د زمانې لهٔ چپاوونو خوندي پاتې دي ؟ چرته دي او پهٔ کومو شخصي او رسمي (سرکاري) کتابخانو کښې ساتل کېږي ؟

هغه ذخیره چې یې معلومه ده . پهٔ هغو کښې هم د یادونې وړ برخه تر اوسه پورې نهٔ ده چاپ شوې او تر اوسه لا د نړۍ د ګوټ ګوټ پهٔ کتابخانو کښې د پښتنو څېړونکیو او پښتو پوهانو د څېړنو انتظار باسي .

د پښتو ژبې او ادب د ودوونکو او د پښتني ثقافت د پالونکو ادارو تر ټولو مهمه او ستره وظیفه داده ، چې د خپلو لرغونو آثارو د تحقیق او څېړنې خواته زیاته توجه واړوي .

د ثقافت او ادب د ساتې پوهان هم پهٔ علمي او تاریخي څېړنو کښې د زړو متونو تحقیق ته زیات اهمیت ورکوي او دا کار د علمي-ثقافتي ادارو لهٔ ضروري او اصلي چارو څخه ګڼي (۱)

که څه هم پهٔ پښتو کښې د متونو د تحقیق کار ډېر دروست نهٔ دے ، خو ددې برخې اساسي کار پهٔ افغانستان او صوبه سرحد کښې د پښتو د تحقیقي ادارو لهٔ قیام سره جوخت اِنکشاف موندلے او یو څهٔ پښتو اثار پهٔ تحقیقي ډول چاپ شول - د پښتو زیات شمېر متون پهٔ غیر تحقیقي ډول هم د دروستیو دوو پېړیو پهٔ جریان کښې د تاجرانو لهٔ لیارې د برصغیر پهٔ مطابعو کښې چاپ شوي دي - سره لهٔ دې چې د متونو دغه ډول چاپونه د متن پوهنې پهٔ عمومي مباحثو کښې د بحث وړ نهٔ وي خو د پښتو لپاره یې ګټه دا وه چې ز موږ څهٔ زاړهٔ متون یې راته خوندي کړل -که د

تاجرانو دغه څخه نهٔ وانخلوله دي لاري د چاپ شوو متونو يوځهٔ برخه بنا يي لهٔ مېنځه تللي واي او يا به تر اوسه لهٔ عامه انظارو پټه واي او مونږ به يې لهٔ وجوده نهٔ وو خبر ـ

د پښتني فرهنګ خوا خوږي پهٔ دې عقيده دي چې د پښتو د دوزنې او پالنې اداري بايد پهٔ دې شرايطو او د پښتو پهٔ دغه اوسني موقف کښې زياته توجه د هغو متونو د تحقيق او چاپ خواته مبذول کړي چې تر اوسه نهٔ دي چاپ شوي ـ تکراري چاپونه بايد پهٔ دوهمه درجه کښې ځاے ولري.

د خوښۍ ځاے دے چې د پېښور پوهنتون پښتو اکېډېمه د پښتو د ډېرو ناوياتو او ارزښتمنو متونو د چاپ پهٔ لړه کښې دا ځل هم د ځينو ناچاپو متونو د تحقيق او چاپ خواته توجه کړې ده. پهٔ دغو نوؤ چاپېدونکو متونو کښې يو هم " ديوان شمس الفلک " دے، چې د ديوان د خاوند (مولوي محمد رفيق) او ديوان پهٔ باب زماهٔ نيمګړو ځېړنو سره تاسې ته وړاندې کېږي.

پردې متن زما د ځېړنو يوه برخه د متن پهٔ حاشيو کښې راغلې ده. چې زياتره د متن د لغاتو حل او ځينې نورې ضروري يادونې چاپېږي وي. بله برخه يې چې د مقدمې پهٔ توګه د متن پهٔ پېل کښې راځي چې دا مقدمه څلور برخې لري:

(۱) د مولوي محمد رفيق پېژندنه او احوال.

(۲) د محمد رفيق اثار.

(۳) د ديوان شمس الفلک شکلي او موضوعي ځانګړنې او پاڅې کښې ددې متن د ترتيب پهٔ باب ځينې څرګندونې.

اوس چې زهٔ د دغه ديوان د سريزې پهٔ پېل کښې دا يادداشت پاڅې ته رسوم، خپله وظيفه بولم چې د پېښور پوهنتون د پښتو اکېډېمه لهٔ دانشمند ډاېرکټر پروفېسر محمد نواز طائر څخه د زړهٔ لهٔ کومې منته وکړم، چې ددې ديوان چاپ ته برابر ولو چارې يې پرما ولورلې.

دغه راز د اکېډېمه د څېړونو د څانګې مسوول ښاغلي محمد جاويد خليل صاحب هڅې د ډېرې منښې وړدي ـ دوي د کار پهٔ بېلا بېلو برخو کښې لهٔ ما سره مدد کړے دے.

همدا رنګه زما مشر ورور فاضل حبیب الله رفیع ته باید د ډېر کور ودانۍ ووایم چې د متن د ځینو برخو په سمون کښې یې راسره مرسته کړې ده - او په ځینو برخوکښې یې په ځای مشورې راکړې دي. د اسلامیه کالج د لایبریرۍ د خطي نسخو مسوول حاجي سراج صاحب او د پښتو اکېډیمۍ د لایبریرۍ مسوول ښاغلي سرفرازخان مروت صاحب د تحقیق په وخت کښې دومره په مینه زما مدد کړی دی. چې زه یې د شکرېې د اداکولو لپاره الفاظ نشم پیداکولی.

په درناوي

زلمی هېوادمل

د افغانستان د علومو اکاډیمۍ

د پښتو ادبي تاریخ او متنپوهنې د ډیپارټمنټ علمي غړی او سرمحقق

«۱»

# د مولوي محمد رفیق اکبرپوري پېژندنه

د موجودو داخلي او خارجي منابعو په استناد، د شمس الفلک د دیوان د خاوند د ژوند پېښنو ترلیکلو د مخه ذه اړیم، چې د څېړنولهٔ او سپیو غوښتنو سره سم د ټولو هغو منابعو او مآخذو یادونه وکړم، چې د دې لیکنې د بشپړتابه په مراتبو کښې ترې استفاده کوم.
د منابعو دا یادونې به تشې یادونې نهٔ وي، بلکې ارزیابي کېږي به هم.

## د منابعو پېژندنه او ارزیابي

د محمد رفیق اکبرپوري د احوالو په باب یوه پښتوانی یادوُنه د اروابناد مولوي عبدالرحیم (۱۸۸۰ - ۱۹۵۰ء) په فهرست لباب المعارف العلمیه (۲) کښې راغلي ده. دا یادونه دهٔ د ژوند پېښنو په باب لومړنۍ یادونه ده. په دې یاداشت کښې راغلي دي چې دے د اکبرپورې ؤ، بیا مردان ته لاړ. د اعلیحضرت امیر عبدالرحمن خان (۱۸۴۴ - ۱۹۰۱ء) د سلطنت په زمانه کښې کابل ته هم تلل و. د دهٔ مړینه په اوس وخت کښې واقع شوې ده. (۳)
په دې یادوُنه کښې البته ځینې خبرې شته چې د محمد رفیق اکبرپوري د ژوند پېښنو په بشپړولو کښې مفیدې دي. خو دوئ ته به دا نهٔ وه معلومه چې محمد رفیق کله زوکړے دے او د مرګ دقیق تاریخ یې کوم دے؟ او یا هم دا چې د خپلکارلهٔ شرایطو سره به یې دا لازمه نهٔ وي ګڼلې چې په دې تاریخونو او ځینونورو خبرو یې ځان ستړے کړي. ځکه چې فهرست خو ادبي تذکره نهٔ ده، چې دا هرڅهٔ دې پکښې بشپړ وي. دیو فهرست د یادونو او شرحې لپاره به یې هغه دا یاداشت کافي بللے وي؟

جالبه خبره دا ده چې د محمد رفیق په باب چې په پښتو ادبي څېړنو کښې څه خپاره شوي دي. له یو دوو پرته د نورو ټولو مستقیم او غیر مستقیم مأخذ همدا د مرحوم مولوي عبد الرحیم فهرست دے. زما د مطالعې له مخې د مولوي عبدالرحیم له فهرست نه د محمد رفیق په برخه کښې، تر ټولو د مخه پوهاند صدیق الله رښتین استفاده کړې ده. هغه خبرې چې مولوي عبدالرحیم د محمد رفیق په باب په خپل فهرست کښې راوړي دي. هغه دوی کټ مټ اخیستې دي. خو یوه خبره چې ما د استاد رښتین په لیکنه کښې زیاته ولیده دا ده، چې دوی شمس الفلک د محمد رفیق تخلص ښودلے دے. او لیکلي یې دي "محمد رفیق شمس الفلک" (۳) دا په دې معنیٰ چې ګوندې "شمس الفلک" د محمد رفیق تخلص دے. د محمد رفیق له نامه سره د مولوي عبدالرحیم په فهرست کښې دغسې نسبت نهٔ دے نښلول شوے، ما اول ګومان کاوه. چې پوهاند رښتین به دغه نکته له کومه بله مأخذه دا پیدا کړې وي. خو چې مأخذ و ته یې متوجه شوم د محمد رفیق برخه یې په خپل اثر کښې یوازې د همدې فهرست له مخې لیکلې ده. اصلي خبره دا ده چې استاد رښتین د محمد رفیق له نامه سره شمس الفلک تخلص " د دیوان شمس الفلک " د نامه پر اساس لګولے دے.

کومو مأخذو چې د استاد رښتین د پښتو ادب له تاریخه استفاده کړې ده، د محمد رفیق په باب همدا خبرې پکښې راغلي دي، لکه د اروا ښاد غلام جیلاني جلالي (۱۳۱۴ - ۱۴۰۰ هـ ق) د "افغانستان ادبیات په لرغونو زمانو کښې" نومے اثر، دا اثر لومړے په آریانا دایرة المعارف (۵) او بیا په افغانستان (٦) نومې کتاب کښې چاپ شو. په دې اثر کښې د محمد رفیق په باب خبرې صافه دي، چې د استاد رښتین د پښتو د ادب تاریخ کښې راغلي دي. خو د تخلص په باب یې لیکلي دي. "محمد رفیق شمس الفلک تخلص، له دې سره سره اروا ښاد جلالي د خپل اثر دغې برخې ته د کابل مجلې (رسالې) د ۱۷۹ ګڼې حواله هم ښکلې ده.

د غولوړو لیکنو وروسته د محمد رفیق په باب ډېره مغتنمه لیکنه هغه ده - چې ښاغلي قمر راهي د "کوښې" تر سرلیک لاندې د مردان په قند نومې مجله (رساله) غزل نمبر کښې خپره کړې ده. (۷)

د بناغلي راهي مقاله د محمد رفیق په باب په نبي وول بشپړ معلومات وړاندې کوي، ما چې د محمد رفیق د احوالو په باب تر دې مقالې د مخه او وروسته کښد شوي مطالب لوستي دي. په ټولو کښې دغه مقاله بشپړه ده. په دې مقاله کښې د محمد رفیق له آثارو کښې له پښتو دیوان سربېره د ده د شمع الهدایت او د فارسي دیوان یادونه هم شوې ده. او ورسره د شاهنامې د هغې پښتو ترجمې یادونه یې هم کړې ده. چې محمد رفیق ترجمه کړې ده. تر دې مقالې په د مخینو اثارو کښې چې د محمد رفیق د آثارو په باب څه موندل کېږي. په هغو کښې صرف د دیوان شمس الفلک یادونه شوې ده.

د بناغلي راهي تر لیکنې وروسته د محمد رفیق په باب بله لیکنه د اروابناد عظیم شاه خیال بخاري ده. د نوموړي لیکنه په تاریخ ادبیات مسلمانان پاکستان و هند کښې چاپ شوې ده. دا لیکنه د محمد رفیق د احوالو او آثارو په باب ډېر څه نه لري. ځینې خبرې یې د مولوي عبد الرحیم په فهرست کښې او ځینې نورې یې د بناغلي راهي په مقاله کښې موندلې کېږي. خو چالیه پکښې داده، چې د محمد رفیق د مرګ کال چې دا وخت څرګند و. او په ادبي څېړنو کښې ثبت شوے و. په دې لیکنه کښې نه دے راغلے. د محمد رفیق د آثارو په برخه کښې یې د دیوان شمس الفلک او د شاهنامې له ترجمې سربېره لیکلي دي: "ده د علم تجوید په بیان کښې یو عربي کتاب په پښتو مثنوي ترجمه کړے دے" (۸) د دې مثنوي نوم یې نه دے ښودلے او دا یې هم لیکلي دي، چې دے تر ۱۸۸۵ء کال پورې ژوندے و. د دې لیکنې په پای کښې د ده یو دوه بیته په اردو ژبه ترجمه شوي دي.

نوموړي بخاري صاحب د خان شاد محمد خان (۱۸۹۹ء مړ) د دیوان په مقدمه کښې هم له شاد محمد خان سره د مولوي محمد رفیق د روابطو په باب څه خبرې کړي دي. چې ځینې د کارټکي لري. او د ده د شرح حال په بشپړاینه کښې ترې سرے استفاده کولے شي (۹)

د محمد رفیق شرح حال د پښتو په منظمو تذکرو کښې په ۱۹۷۳ء کال خپور شوے دے. ادبي ستوري د پښتو لومړنۍ تذکره ده. چې د محمد رفیق احوال یې راوړي دي. تر دې تذکرې د مخه چې د محمد رفیق په باب څه یادونې خپرې شوې دي. هغه ګردې په ادبي تاریخ ډوله

اثارو ، فهرستونو او متفرقو خپرونو کښې نشر وي .

د ادبي ستوري دانشمند مؤلف په خپل دغه کتاب کښې د محمد رفيق احوال دګلزار مدينه ديو يادښت اود پښتو د ادب تاريخ د يادونو له مخې ليکلي دي. دکلام په نمونو کښې يې دوې نمونې له ګلزار مدينې او بله له جشن نوروزي اخيستې ده . (۱)

د محمد رفيق په باب نورې ليکنې او خپاره شوي يادښتونه دوئ ته نه وو معلوم . په دې تذکره کښې د محمد رفيق په خصوص کښې يوه ښه يادونه دا شوې ده - چې د شمس الفلک ديوان خاوند محمد رفيق او بهار نوروزي کښې د راغلي غزلې محمد رفيق دواړه يو بلل شوي دي - دغسې ځينې نورې نکتې هم پکښې شته چې ادبي مؤرخين ترې استفاده کولے شي .

دانشمند رفيع د ادبي ستوري په دوېم ټوک کښې د لومړي ټوک د بشپړونې په منظور هم دده ځينې آثار ياد کړي دي ، چې وروسته به يې په خپل ځاے يادونه وشي - ددې تذکرې ترچاپ دوه کاله وروسته په " فرهنګ زبان و ادبيات پښتو" کښې د محمد رفيق په باب يوه لنډه يادونه خپره شوه - په دې يادونه کښې يو تېروتنه دا ده - چې د تېرو ځينو مآخذونو په پېروۍ شمس الفلک د محمد رفيق تخلص ښودل شوے دے .

خو په آثارو کښې يې له ديوان سربېره رساله صفاتيه او ارشاد الطالبين هم ښودل شوي دي . او دا هم پکښې راغلي دي - چې د محمد رفيق د کلام منتخبات په جشن نوروزي او ګلزار پښتو کښې ضبط دي (۱۱)

زه اوس لوړو خارجي اسنادو ته په پاملرنه او هم دده د ديوان د داخلي شهادتونو په مرسته د محمد رفيق شرح حال په لاندې ډول ليکم .

## (۱) نوم تخلص ، کورنۍ

**زوکړه او ټاټوبي :-** د شمس الفلک د ديوان د شاعر بشپړ نوم محمد رفيق دے. په اشعارو کښې يې کله خپل بشپړ نوم محمد رفيق راوړے دے او کله يوازې " رفيق " خو په فارسي شعرکښې يې تخلص " غمزده " و ، لکه ديوې فارسي غزلې مقطع کښې چې راغلي دي :

چو خنگ دوستی دا دی به جان "غمزده" دلبر

چو تو سلطان به این زهره به بخت انوری باید (۱۲)

پهٔ خطي نسخه کښې يې ددې غزل‌پهٔ مقطع‌کښې د راغلي " غمزده " لفظ د لاندې ليکلي دي " تخلص مصنف ".

ما ددې بحث پهٔ وړاندېنو برخوکښې اشاره وکړه - چې ځينې څېړونکي داسې انګېرې چې " شمس الفلک " د محمد رفيق تخلص دے - خو پهٔ موجود ديوان کښې يې داسې کوم شهادت نهٔ تر سترګو کېږي .

ښاغلي راهي پهٔ قند رساله (۱۳) کښې هم دا خبره ردکړې ده او ويلي يې دي چې " شمس الفلک " د محمد رفيق تخلص نهٔ دے - چا چې شمس الفلک د محمد رفيق تخلص بللے دے هغوئي تېروتي دي .

د محمد رفيق پهٔ باب چې تر اوسه څهٔ نشر دي - او زمالهٔ نظره تېر دي - پهٔ يوه کښې هم ما د پلار نوم او ددهٔ د نسبي او قومي نسبت پهٔ باب څهٔ نهٔ دي لوستي .

ښاغلي اثر ګيلاني چې د اکبر پورې او سېد ونګ دے ما ته وويل ، چې محمد رفيق پهٔ قومي لحاظ " دراني " دے - دا چې پهٔ دراڼو کښې څوک وُ دا هم نهٔ ده معلومه ؟ د نومړي اثر ګيلاني صاحب د خولې بيان دے - چې محمد رفيق د قاري عبد المستعان (۱۴) لهٔ کورنۍ سره هم څهٔ نسبتونه درلودل - ددې خبرې يو ضعيف دليل دا هم کېدے شي - چې د محمد رفيق د ديوان " شمس الفلک " کومه خطي نسخه چې د اسلاميه کالج پېښور پهٔ کتابخانه کښې موجوده ده ، دا د نومړي قاري عبد المستعان زوے ( به قول اثر ګيلاني ) عبد المنتقم نقل کړې ده (۱۵) ښاغلي اثر ګيلاني د محمد رفيق پهٔ باب معلومات او ځينې خبرې د همدغه عبد المنتقم لهٔ خولې کښلي دي - دے وايي چې عبد المنتقم صاحب زما استاذ ؤ .

د محمد رفيق ټاټوبے او اصلي استوګنځاے د پېښور د اکبر پورې کلے دے . پهٔ ديوان " شمس الفلک " کښې مؤلف د اکبر پورې ديو ځا يادونه کړې ده - د اکبر پورې لهٔ نامه سره پهٔ حاشيه کښې د نسخې کاتب کښلي دي . چې دا د مصنف کلے دے .

پهٔ تولو هغو منابعو کښې چې د دهٔ په باب څهٔ یادونې لري - تولو دهٔ تاتو بے داکبر پورې کلے بنو ولے دے ـ او پهٔ هغدې اساس ځینو دهٔ لهٔ نامه سره داکبر پورې مکاني نسبت هم لګولے دے ، لکه ؛ مولوي عبدالرحیم ( لباب ۱/۳۸۶ ) او هم پهٔ پښتو پانګه او پښتو کتاب ښود کښې د نوادرالسالکین د چاپې نسخې پهٔ استناد ـ د محمد رفیق لهٔ نامه سره د ( اکبر پوروی ) نسبت لګیدلے دے.

پهٔ تولو هغو منابعو کښې چې زمالهٔ نظره تیرې شوې دي - پرته لهٔ بناغلي راهي یوه هم دهٔ د زوکړې د نیټې پهٔ باب څهٔ نهٔ دي لیکلي - بناغلي راهي پهٔ خپله لیکنه کښې پهٔ اټکلي ډول ویلي دي ؛ " د رفیق استاد د پیدایش کال موږ د ۵۸ - ۱۲۵۰ه خواوشا فرضولے شو " (قند ، غزل نمبر ۶ مخ )

د محمد رفیق پهٔ دیوان " شمس الفلک " کښې ځینې داسې اشارې شته چې سړے کولے شي ـ د هغو پهٔ مرسته دهٔ د پیدایښت (زوکړې) کال ځینې راوباسي

ددیوان شمس الفلک پهٔ وروستیو برخو کښې لولو:

د فلک لهٔ دسته مخ مې خون آلود دے
پهٔ وهلو مې تندے سبز وکبود دے
چې مې عمر د چهل وته نزدیک شو
پهٔ یکباره غم لهٔ ما سره شریک شو
چې ے عمر مې کل تیر شو پهٔ غفلت کښې
یو دم نهٔ شوم د مساز پهٔ عبادت کښې
راشه جوړه یو نکته کړه ښه صریح
چې پهٔ لوستو نمکداره دي ملیح
ګوندې دا مې رهنمایه پهٔ محشر وي
خاص دي نعت د نبي خیرالبشر وي

پهٔ قیامت که پهٔ شماره یې د مداح شي
کلک امید دے چې لایق به د فلاح شي (۱۲)

لهٔ لوړو اقتباسي بیتونو ښکاري چې د محمد رفیق عمر د دیوان شمس الفلک لهٔ جوړولو دمخه څلویښت کلنۍ ته نزدے شوے و. دهٔ خپل دیوان پهٔ ۱۳۰۲ هـ ق کال کښې سرته رسولے دے. که چرې د دیوان د بشپړتابهٔ کال ددهٔ عمر ۴۰ کاله وګڼو د زوکړې کال یې ۱۲۶۲ هـ ق راخیژي. که موږ لهٔ یوڅهٔ علمي احتیاطه څخه کار واخلو نو به ووایو چې دے د ۱۲۶۲ هـ ق شاوخوا زوکړے دے، داځکه چې دهٔ مطلق څلوېښت نهٔ دي ویلي، بلکه " څلوېښت ته قریب " یې ویلي دي.

(۲) زده کړه، مصروفیت او سفرونه:- ماچې د محمد رفیق پهٔ باب څومره منابع کتلي دي. پهٔ ټولو کښې راغلي دي. چې محمد رفیق ډیر عالم سړے و. تردې حده چې پهٔ قند مجله کښې د سلطان محمد خټک د خولې روایت راغلے دے: " ما ډیر خلق لیدلي دي. خو د محمد رفیق هومره عالم، فاضل سړے مې نهٔ دے لیدلے " (قند غزل نمبر ۸ مخ ) خو دا خبره چرې هم زما مخې ته نهٔ ده راغلې. چې محمد رفیق دا علم، چرې او لهٔ چانه حاصل کړ؟ استاد یا استادان یې څوک وو؟ کله یې پهٔ زده کړه پیل کړے دے؟ ددهٔ هغه آثارچې دلته موجود دي -او زما لاس ته ورسیدلے دے - پهٔ هغو کښې هم زهٔ پر دغسې یوې موضوع نه یم پېښ شوے چې دهٔ لهٔ چا زده کړې کړې دي. او چرې یې کړې دي؟

خود آثارو لهٔ مطالعې یې ښکاري چې دے لهٔ خپلې مورنۍ ژبې پښتو سربېره، پهٔ عربي، فارسي او اردو ژبو پوهېده - د څلورو سرو ژبو لې ډیر آثار او ترجمې یې زموږ پهٔ واک کښې دي.

د آثارو لهٔ مطالعې یې دا هم ښکاري چې پهٔ دیني علومو، عقایدو او اخلاقو کښې هم د مطالعې خاوند وُ.

اما ددهٔ د مصروفیتونو پهٔ باب باید ووایو چې ددهٔ زیات عمر پهٔ تعلیم اوتدریس تېر یده - د تعلیم او تدریس تر څنګه یې د شعر ویلو مشاغل او ځینې نور مصروفیتونه

هم درلودل - چې دلته يې خبرې کوم :

**الف** :- دمحمد رفيق په باب له ليکنو ښکاري - چې ده لومړنۍ او اساسي مصروفيت تدريس و- اروا ښاد خيال بخاري ليکلي دي، " محمد رفيق استاد د اکبرپورې اوسېدونکی او يو لوی شاعر او عالم و-

په خپل جماعت کښې به يې درس ورکو و، دلرې لرې نه دعلم پتنګان دغې شمعې خان ته راجمع کړي وو- چې ورته به يې طالبان وې- پخوا به چې په کوم جماعت کښې چرته لوی عالم امام وُ - نو د لرې لرې نه به طالبان دعلم په طلب ورته راجمع کېدل " (مقدمهٔ ديوان شاد محمد خان ۱۵ - ۱۶ مخونه)

له اکبرپورې سربېره ، کله چې دے په مردان کښې اوسېده ، هلته هم په تدريس بوخت و- د ښاغلي راهي بيان دے : " محمد رفيق استاد ورومبے وړومبے مردان ته چې راغے - نو د صوبې خان غلام حيدر خان سره و- هغوئ ته به يې عربي او قرآن شريف ښودو" (قند، غزل نمبر)

همدا راز ده په احوالو کښې دا هم راغلي دي چې دے په مردان کښې د شاد محمد خان د کورنۍ د غړو استاد او اتاليق پاتې شوے و- (مقدمهٔ ديوان شاد محمد خان)

**ب** : په تاريخ ادبيات مسلمانان پاکستان وهند کښې له يوه راغلي ياداشت څخه څرګندېږي چې د مولانا محمد رفيق په ژوند کښې يوه وخت داسې هم راغلے دے- چې ده خپله عالمانه عبا او قبا يوې خواته غورځولي يو عاشق او شاعر ځينې جوړ شوے دے (۱۷) ده په مصروفياتو کښې هغه څه چې ده ته يې او ده نامه ته يې ژوند بخښلے دے- هغه ده شاعري، شعر او ده علمي ، ادبي کارونه دي-

د تدريس او د خپلو خلقو له ديني دوزنې سربېره ده د خپل ژوند زياته او نوره برخه په شعر ويلو ، د آثارو په ترجمه او نورو ادبي مشاغلو تېره کړې ده-

**ج** :- له تدريس ، شاعرۍ او ترجمو سربېره استاد محمد رفيق ځينې نور کمالات هم درلودل چې يو پکښې دخط هنر و- دے خطاط هم و- نسخ خط يې د ښه والي په حد کښې ليکه-

د محمد رفیق په خط لیکلي شوي دغه لاندې دوه کتابونه ماته معلوم دي :

(۱) دخان شاد محمد خان ترجمه کړے معارج النبوة ، چې خطي نسخه يې ۳۸۴ مخه ده .

(۲) دنوموړي شاد محمد خان بله ترجمه (دبیر دانش) هم محمد رفیق لیکلې ده . موجوده خطي نسخه يې چې ددهٔ په خط ده ، ټول ۱۱۳۲۲ بیته لري .

ددې نسخې په پاے کښې يې لیکلي دي : « تمت تمام شد ... بالخیر هذه النسخة المیمونة المبارک برجمة انوار سهیلي بزبان افغاني المسمی به دبیر دانش من تصانیف عالیجاه جناب شاد محمد خان صاحب ، جلیل المراتب رئیس قصبه مردان مد ظللکم والسلام ، الراقم الاثم محمد رفیق » ددې نسخې خط ښهٔ خوانا نسخ دے ، چې متوسطې هنري ښکلاوې هم لري .

دښاغلي راهي د لیکنې مطابق محمد رفیق په خطاطۍ کښې هم شاګردان لول اوله دهٔ نه يې حسن خط زده کاوه . د مردان عبدالودود استاد د خطاطۍ فن لهٔ محمد رفیق استاد زده کړے وُ . زماد معلوماتو مطابق د محمد رفیق بل شاګرد د زاخیلو عبدالمنان هم ښهٔ خطاط وُ ، هغهٔ به هم دا هنر لهٔ دهٔ زده کړے وي .

د محمد رفیق د مشاغلو لهٔ لنډ بیان وروسته اوس باید داخبره وکړو . چې دهٔ سفرونه کړي وو اوکه نه ؟

اروانښاد مولوي عبدالرحیم په لباب کښې ویلي دي چې محمد رفیق د ضیاء الملة والدین امیر عبدالرحمٰن خان د باچهۍ په زمانه کښې کابل ته تللے و . او نوموړي امیر يې د علمي استعداد او موزونۍ طبعې ډېر قدر کړے و . خو دے هورې ډېر پاتې نهٔ شو او بېرته راغے .

پهٔ دې ارتباط زهٔ دوې خبرې کوم :

اول دا چې مولوي عبدالرحیم صاحب د خپل قول سند نهٔ دے ښودلے ، خو دا چې ددهٔ فهرست داسې وخت کښې لیکل شوے چې د محمد رفیق لهٔ مرګه لا ډېر کلونه نهٔ وو تېر . نو ځکه تقریباً ددهٔ معاصر حسابېداے شي او دا خبره بهٔ هغه وخت د ادباوو او شاعرانو تر منځ عامه وه . چې محمد رفیق استاد کابل ته تللے و . دا روایت د محمد رفیق د احوالو پهٔ

زیاتره لیکنو کښې اخیستل شوي دي.

بله خبره دا ده، چې امیر عبدالرحمن خان د پښتو شاعرانو قدر کاوه. په دربار کښې یې د پښتو منشي موجود و. ځینې خلقو به پښتو عریضې ورته کولې. لکه محمد اکبر هوتک (۱۲۲۸ - ۱۳۱۸ هـ ق) چې په پښتو نظم کښې یې ورته عریضه لیکلې ده (۱۸) او امیر یې ځواب په پښتو کښې ورکړے و (د منشي په وسیله). دا محمد اکبر هوتک هغه څوک دے، چې د محمد هوتک د پټې خزانې موجوده نسخه محمد عباس کاسي همده ته لیکلې ده. (۱۹)

د ملي احمدګل هم د امیر عبدالرحمن خان دربار ته ورغلے و. او امیر پرې لورینې کړې وې. نوموړي احمدګل د امیر عبدالرحمن خان شاهنامه هم په پښتو نظم لیکلې ده. چې یو ازینې خطي نسخه یې د افغانستان په کندز کښې د اروانښاد غلام سرور ناشر په کتابخانه کښې وه. (۲۰) له محمد رفیق سره په ارتباط کښې د امیر عبدالرحمن د شاعر پالنې ذکر ځکه وشو. چې محمد رفیق به هم نوموړي امیر نازولے وي.

د کابل له سفر سربېره نورو ځایونو ته د ده د سفرونو په باب له ما سره معلومات نشته. خو که په مردان کښې ده استوګنه او له اکبرپورې نه مردان ته ده ورتګ هم په سفر د نو کښې وشمارو. نو د ښاغلي راهي په قول دے په پاخه عمر کښې مردان ته تلے او هورې استوګن شوے دے.

لومړے دے، د هوتي د غلام حیدرخان سره اوسېده، خو چې کله د مردان رئیس اعظم خان شاد محمد خان ده له علمیته خبر شو. نو یې له ځان سره دېره کړ (غزل نمبر ۸۶) د ژوند تر پایه دے هورې پاتې و.

مردان ته د محمد رفیق د ورتګ او په مردان کښې د ده د مشتبهو تفصیل خو ما لوړ د ښاغلي راهي د بیان مطابق وړاندې کړ. خو په دې برخه زه ځان اړ بولم. چې په دې ارتباط د اروا ښاد خیال بخاري بیان ته هم اشاره وکړم. نوموړي لیکلي دي.
"دا یوه رنګینه اوږده قصه ده. چې محمد رفیق استاد د اکبرپورې نه مردان ته څنګه

ورسېد. که رنګیني ترې بهرته کړو. نو را به وواېوچې دا د خان مرحوم (شاد محمد خان)
او د هغه کورنۍ د شعر وشاعرۍ سره تړون او علم پروري وه. چې محمد رفیق استاد یې
له اکبر پورې نه داسې ځانته رابښکلۀ لکه څرنګ چې مقناطیس د اوسپنې ټوټه ځانته
راکاږي..... (مقدمه دیوان شاد محمد خان)

ددغه بیان او د بناغلي راهي دبیان ترمنځ زما په خیال توپیر دادے. چې د راهي
دبیان مطابق چې کله استاد محمد رفیق له اکبر پورې نه مردان ته راغے نو اول له غلام حیدر
خان سره و. بیا شاد محمد خان ځان سره کړ. حال دا چې بخاري صاحب وایي چې د
خان شاد محمد او ددۀ د کورنۍ شعر دوستۍ دے له اکبر پورې مردان ته په تللو ار
کړ؛ په هر صورت قضیه چې هر ډول دي. خو دا خبره مسلمه ده چې محمد رفیق د خپل
ژوند وروستي کلونه په مردان کښې تېر کړي دي.

(س) <u>شهرت، شاګردان او وروستے ژوند</u>:- محمد رفیق په خپله زمانه کښې د خپلې سیمې په
دیني حلقو او ورسره په ادبي حلقو کښې هم مشهور و.

ددۀ په باب چې ما څۀ لوستي په زیاتو کښې ددۀ له نامۀ سره د استاد، مولانا
او ملا القاب نښتي دي. اکثرو ادیبانو او دهغه وخت شاعرانو دے د محمد رفیق
استاد په نامه یاد کړے دے، لکه شاه افضل (ګلزار مدینه) دۀ ته د استاد خطاب کړے
دے. همدارنګه د شاد محمد خان د دبیر دانش په سریزه کښې، چې د کوم استاد یادونه
شوې ده. دا یقین ته په ورلنډ حرس همدغه محمد رفیق استاد دے.

ځینې پښتو ادبي څېړونکي او د محمد رفیق په باب مقاله نګاران په یوه خوله وایي
چې د شاد محمد خان له محمد رفیق سره ډېره مینه وه. چې حتی ډوډۍ به خان له محمد رفیق
سره یو ځاے خوړه. محمد رفیق د نوموړي خان استاد و. په دې برخه کښې د بناغلي راهي
دا خبرې د لوستو دي. " خان شاد محمد خان مرحوم به د خپل استاد ډېر زیات قدر کوۀ.
اوسېده خو به د ګهرۍ د جماعت په یوه کوټګۍ کښې..... ولې ډوډۍ به یې د دواړه
وخته د خان سره په یو دسترخوان خوړه." (غزل نمبر، ۸ مخ)

د مانان شاد محمد خان د دبیر دانش د پیل ښېټونوکښې راغلي دي:

يوه ورځ د استاد په لاس كتاب
په مضموني كړم خبر د هر هر باب
څوارلس ياېه وو په شمار عجب رنګين
كل مطلب يكښې د عقل ښه سنګين
خيال مې وشه چې پښتو كړم داكتاب
چې ترې لېږې د فارسي كړمه حجاب
چې دماغ د پښتنو پرې معطر شي
چې خبر يې له مطلبه سراسر شي
يو باعث په ما استاد شو څو هم نور
چې پښتو كړه داكتاب د زړه په زور (دبير دانش، خطي)

په دې ښېټونوکښې یاد شوے استاد ځینو نورو ځېړونکیو هم همدا محمد رفیق ګڼلے دے، لکه دانشمند حبیب الله رفیع-لنډه داچې محمد رفیق په خپل عصرکښې او ترې را وروسته د استاد محمد رفیق، مولانا محمد رفیق، ملا رفیق او مولوي محمد رفیق (سپېدی، ۱۳ ګڼه) په القابو او نومونو شهرت درلود.

(ج)
مولانا محمد رفیق استاد ته خدائے د علم برخه (دیني علوم) د شعر وېلو استعداد او د خوشنویسۍ په فن پوهه ورپه برخه کړې وو. ده خپل دغه مهارتونه نورو ته هم ښوول. نو په همدې اساس دۀ د دیني علومو د ښوونې، نورو ته د خوشنویسۍ د هنر د ښوولو له لارې ښايي ډېر شاګردان روزلي وي او ډېرو شاعرانو به ترې اصلاح اخیستې وي. خو ماته دده د هغو ټولو شاګردانو نومونه نه دي معلوم. يوازې د څو تنو شاګردانو نومونه يې ځینو ښاغلو یاد کړي دي. چې دلته ښوول کېږي.

خان شاد محمد خان او دده د کورنۍ ځینې غړي، محمد اسلم کمالي، عبدالمنان دزاخېلو عبدالودود د مردان، سلطان محمد خټک او نور......

د محمد رفیق استاد دروېش ژوند، لکه څنګه چې یې بیان د مخه تېر شو په مردان کښې تېر شوے دے. له خان شاد محمد خان رئیس اعظم مردان سره او سېده، نو ځکه به محتاج نهٔ و. او د ژوند د تېرولو لپاره به د معاش پیدا کولو ته اړ نهٔ و.

**مړینه او مزار:-** د ښاغلي راهي د لیکنې مطابق کله چې محمد رفیق د دیر د نواب په فرمایش د فردوسي د شاهنامې ترجمه بشپړه کړه - او دې ته آماده شو - چې دیر ته ولاړ شي - ترجمه نواب ته وسپاري او انعام ترلاسه کړي - خو تر ټګ د مخه سخت ناروغه شو. د دهٔ شاګرد عبدالمنان دے په کټ کښې ژاخیلو ته یووړ او هلته په ژاخیلو کښې وفات شو. او جنازه یې خپلوانو اکبرپورې ته یووړه. او هلته خاورو ته وسپارل شو.

د دهٔ د مړینې کال یوازې څمدې یوې منبع کښې ښوول شوے دے. د هغې مطابق د دهٔ مړینه د ۱۹۰۱ء کال د اګست میاشت کښې واقع شوې ده. چې په قمري حساب له ۱۳۱۹ ه ق کال سره برابرېږي۔[۲۱]

له ښاغلي راهي سربېره ماله څینو نورو کسانو نه هم د دهٔ د مرګ د کال په باب پوښتنې وکړې. څینو ته دا سنه نهٔ وه معلومه. یوازې ښاغلي اشرف ګېلاني راته ووېل چې محمد رفیق استاد په ۱۹۰۱ء کال کښې وفات شوے دے - د اکبرپورې او سېدونکي ښاغلي اشرف ګېلاني دا هم وو ېل چې دهٔ د محمد رفیق د مرګ کال د قاري عبدالمنتقم له خولې یادداشت کړے دے. نوموړي اش زیاته کړه - چې د محمد رفیق استاد خسته حال قبر په اکبرپوره کښې ښکاره دے.

وېل شوي دي چې محمد رفیق استاد مجرد مړ شوے وُ. وادهٔ یې نهٔ وکړے نو ځکه څوک ترې نهٔ دي پاتې. محمد رفیق استاد په یوه سترګه معذوره و - بډیره یې پرېښې وه. او هغه به یې سره کوله.

اروا ښاد محمد اسلم کمالي (۱۸۸۶ - ۱۹۶۳ء) په منتخباب کمالي کښې د سرحد د مشاهیرو په سلسله کښې د دهٔ یادونه هم کړې ده - دهٔ ویلي دي:

ملا رفيق غونډې اديب شاعرچې لاړ لهٔ دنيا

ادبيت دے پهٔ ژړا چې ادبا نشته دے (۲۲)

که څهٔ هم د محمد رفيق لهٔ مړينې پهٔ هجري قمري حساب پنځه نوي کاله او په عيسوي حساب ۹۲ کاله تېر دي. خو دے لهٔ چا هېر نهٔ دے او ديوان يې لهٔ تکميل يو سل و دوه کاله دړو ستر چاپېږي. دغه په ددهٔ آثار ددهٔ نوم تر ډېره ژوندے وساتي.

---

<< ۲ >>

# د محمد رفیق اکبرپوري آثار

د محمد رفیق استاد د اکبر پورې په باب چې ماته څومره داخلي او خارجي منابع میسر شوي دي. په یوه کښې هم د اخبره زماله نظره نه ده تېره شوې . چې محمد رفیق په دې وخت کښې یا هغې وخت کښې په شاعرۍ پېل کړے دے ؟ اما د دې ترڅنګه دا یوه خبره د ده په دیوان کښې شته . چې کله یې عمر څلوېښتو کلونو ته نزدې شوے دے نو بیا د دیوان جوړولو په فکر کښې لوېدلے دے . د ده نور موجود آثار چې شته زیاتره د ده د عمر د هغې دوه دریو زیات د کم شلو کلو محصول دي.

زه د دې مقدمې په دې برخه کښې لومړے د ده په هغو آثارو خبرې کوم . چې په پښتو کښې مالیدلي دي . او بیا په هغو آثارو ګړېږم . چې د ده ګڼل شوي دي . خو زیاتره یې اوس دلته نه پیدا کېږي . او یا یې زه په پیدا کولو مؤفق نه شوم . په دوهمه کټګورۍ آثارو کښې یو نیم داسې اثر هم شته . چې دلته پیدا کېږي . خو د ده نه دي .

د مولوي محمد رفیق موجود آثار په لاندې ړول دي .

(۱) **دیوان شمس الفلک** :- د مولوي محمد رفیق دغه حاضر پښتو دیوان ، چې له دې دیباچې سره وړاندې کېږي . پر دې دیوان زه د دې دیباچې په دریمه برخه کښې خبرې کوم . نو ځکه یې زیات تفصیل دلې لازم نه ګڼم .

(۲) **شمع الهدایت** :- د محمد رفیق په آثارو کښې شمع الهدایت یوه بله منظومه رساله یاده شوې ده . چې د خطي نسخې درک یې ماته نه دے معلوم . اما له بنه مرغه یوه چاپي

نسخه یې د پېښور د اسلامیه کالج په غنیمت کتابخانه کښې خوندي ده . (۲۳)

د شمع الهدایت دا چاپي نسخه ما ولیدله . یادا شتونه مې ترې واخیستل . د نظم نسري سباتو او سبک ته یې په پاملرنه دا رساله د همدغه محمد رفیق اکبر پوري ده .

د محمد رفیق په شرح حال لیکو نکیو کښې ښاغلي حبیب الله رفیع ، ددغه اثر یادوُنه دادبي ستوري د دوهم ټوک په هغه برخه کښې کړې ده چې د همدغه کتاب (ادبي ستوري) دلومړي ټوک بشوونه یې هغته بشپړ کړې دي . (۲۴)

د شمع الهدایت منظومه په پیل کښې حمد ، نعت او د څلار یار کبار ستاینې لري - چې دغه مقدماتي برخې د چاپي نسخې په شلو رو مخونو کښې راغلي دي . او د کتاب مطالب د سوال وځواب په بڼه په پنځم مخ کښې پیل کېږي .

دا رساله په حمد باریتعالی داسې پیل شوې ده :

چې جنجاه د مهر وماه مې منزل طے کړ
یې د بیر مې د فلک د قلم مخ کړ

او په دې لاندې بېتونو پاے ته رسېدلې ده :

محمد رفیق یې خاص غلام حلقه بگوش دے
له ساغر د محبته دې مے نوش دے
دیارلس سوه له هجرت د پاک محمود
دوپنځه د پاسه نور د دوئ موجود
هم شلمه ده د ماه محرم
دا کتاب په خیریت سره شه تم (۲۵)

د رسالې ترڅو اختتامیه بېتونو وروسته پکښې ۱۲ بېته د اجازت مصنف تر عنوان لاندې راغلي دي . او بیا یې پسې لیکلي شوي دي : " تمت تمام شد کتاب مستطاب هدایت نصاب الموسوم به حقیقت الاسلام جدید المعروف به شمع الهدایت.....

د شمع الهدایت له اختتامیه بېتونو او لیکنو دا لاندې خبرې راوځي :

الف:- محمد رفیق دا رساله د ۱۳۰۵ هـ ق د محرم الحرام د میاشتې په شمله بشپړه کړې وه.
ب:- د چاپ اجازت یې خپله محمد رفیق استاد د کتابونو تاجرانو ته ورکړے و. او همدغو پېښوریو تاجرانو په همدې ۱۳۰۵ هـ ق کال د رسالې د بشپړېدو تابه په کال د لاهور په مارننګ ستیار مطبعه کښې چاپ کړه.
ج:- تر ټولو وروستی پارسي اختیامیه کښې راغلي چې: "حقیقت الاسلام جدید المعروف به شمع الهدایت دا کتاب چې حقیقة الاسلام جدید دی. نو قدیم به یې کوم وي؟

په پښتو کښې مونږ یو بل حقیقة الاسلام هم لرو.- چې احمد خلیل (۱۲۶۷ - ۱۳۰۵ هـ ق حدود) په پښتو نظم لیکلے دے. دا کتاب احمد خلیل په ۱۲۹۹ هـ ق کال د لنډ بحر په مثنوي کښې کابو زر بیته لیکلے دے. دا کتاب په دهلي، لاهور او پېښور کښې په دارو وارو چاپ شوے دے. یو چاپ یې چې ۶۰ مخه لري د ۱۳۲۱ هـ ق کال د لاهور چاپ دے. (۲۷) په دې حقیقة الاسلام کښې ئې دیني او فقهي مسایل د سوال او ځواب په بڼه بیان کړي دي. نو ځکه د محمد رفیق شمع الهدایت ته حقیقت الاسلام جدید وېل شوي دي.

په فارسي کښې د قاضي قطب رساله هم د سوال او ځواب په بڼه د مسایلو تشریح کوي.

محمد رفیق شمع الهدایت یا حقیقت الاسلام جدید د مثنوي په قالب کښې نظم کړے دے. ټول بیتونه یې له مقدمې او مؤخرې سره (۶۸۵) دي. په دې اثر کښې د مسلمانو پنځه بناوې، د لمانځه او د اودسه مسألې، فرض و سنت، وواجب او د جنازې، اختر دلمونځونو بیانونه او په دې ارتباط دیني احکام بیان شوي دي. دې منظومې رسالې محتویات تو د چاپي نسخې ۳۳ مخونه نیولي دي. په دې اثر کښې د محمد رفیق د بیان شیوه او د مطالبو د ادایئې ډول دادے.

سوال:

که څوک سوال وکړي له تا په همې شان
چې اې کسه ته په حق یې مسلمان

ځواب،

له تعجیله جواب درکړه شه آګاه
مسلمان یم شکر الحمد لله

سوال:

که څوک سوال وکړي له تا داوره خورسندٌ
ترجمه کړه د الحمدو داځرګنده

ځواب:

د الحمدو ترجمه صفت ثنا ده
په هر درنګ په هر ساعت کښې د مولاږه
نباتات که جمادات که حیوانات دي
یاله نسل د آدم چې ذریات دي
کړي صفات په هزار قسمه د معبود
چې معبود یې هم موجود دےهم ذیجود

په شمع الهدایت کښې چې د طرح شویو سوالونو کوم ځوابونه بیان شوي دي. د ځوابونو په ترخ کښې یې داستناد په منظور قرآنی آیات او نبويّ احادیث هم راوړي دي، لکه : په ۵ - ۶ - ۸ - ۹ او ۱۱ مخونو کښې راغلي ځوابونه. همدا رنګه د جوابونو په سلسله کښې یې دځینو کتابونو نومونه هم اخیستی دی.چې د وړاندې شویو مطالبو د مأخذ حکم لري. لکه:

په جامع الفتاوه کښې دا احکام
دي لیکلي درشه وګوره تمام (۳۱ مخ)

(۳) **شمس الهدایت** :- د محمد رفیق استاد دغه اثر هم په ادبي څېړنو کښې یاد شوے، لکه بناغلي راهي په "قند مجله غزل نمبر او بناغلي رفیع په ادبي ستوري دوهم ټوک، د محمد رفیق د آثارو په لړکښې، د شمس الهدایت رساله له شمع الهدایت سره یوځاے

چاپ شوې ده: ددې رسالې د چاپ کال ۱۳۰۵ هـ ق کال دے. دا رساله په چاپي نسخه کښې تر شمع الهدایت وروسته پیل شوې ده. او د چاپي نسخې په ۳۳ - ۴۴ مخونو کښې ځاے شوې ده. ټول بیتونه ۲۴۲ دي.

د شمس الهدایت منظومه هم د شمع الهدایت په څېر د مثنوي په قالب کښې نظم شوې ده. او مسایل پکښې د سوال وځواب په بڼه وړاندې شوي دي. مطالب یې په دیني او عقیدتي مسایلو پورې اړه لري.

د دې اثر د بیان شیوه داده:

که څوک سوال وکړي مذهبونه څو دي وایه
درته وایه چې څلور دي عالي رایه (۲۸)

سوال:

که څوک سوال کړي څو قبلې او څو امامه
څو محرابه په وجود لري نېکنامه

جواب:

کړه جواب پنځه امامه دي ظاهر
تن او روح عقل او زړهٔ فهم ماهر
هم پنځه پکښې قبلې داوره درسي
دا محراب کعبه معمور عرش وکرسي
دي په تن کښې د محراب کعبه په ژوند
هم درون په عقل عرش داوره پسند
هم په فهم کښې کرسي زړهٔ کښې معمور دے
چې کېږد د هر احد په دهٔ مسرور دے

دا رساله په پیل کښې یوه مقدمه ګوتې هم لري. چې د محمد رفیق استاد د نظم هغه خاص روش پکښې له ورایه ښکاري.

ستایش کوم د هغه خالق پاک
چې دانا کړي هم بینا کړي موټه خاک
د میږي په چنګ هلاک کړي نره شېر
هم کړي ماته په هاتي جنګي دلېر
طېغون باز ودکړي په چنګ د کبوتره
ماته یوسي لنګ شغال له غضنفره

د شمع الهدایت او شمس الهدایت دواړو له مطالعې سړے داسې پوهېدلاے شي.
چې ناظم د لوستونکو او طالبانو لپاره په لومړي رساله کښې ددین ابتدایي اساسات
بیان کړي دي. او په دوهمه رساله کښې يې چې " شمس الهدایت دی " یو لږ پیچلي او نسبتاً
ډېر مطالب چې په دیني او عقیدتي مسایلو کښې د طالب بصیرت زیاتوي بیان کړي دي.

ددې رسالې پاے ته د محمد رفیق پنځه پارسي بېتو نه هم داغلي دي. چې په دروستي
بیت کښې يې د کتاب (شمع الهدایت) د بشپړېدو تاریخ ویلے دے. ددې نظم دوه
بېته دادي :

این شبچراغی محبت فتن
که شمعی هدایت شده در زمن
بود نور سجادهٔ مومنین
که سرمایه دارد زدین متین
هر آن کس که خواند بود یا ورش
کلاه سعادت بود بر سرش

(۳) دشاهنامې پښتو ترجمه : د محمد رفیق استادله ډېرو مهمو کارونو څخه یو
هم د فردوسي طوسي د شاهنامې پښتو ترجمه ده.

ددې ترجمې په خصوص کښې د ښاغلي قمر راهي بیان څینې ښې خبرې لري چې د بحث
د بشپړتابه په مراتبو کښې داستفادې وړ دي. ده لیکلي دي:

"د دیر نواب خان بهادر محمد ابراهیم خان له په میلمستیا مردان ته راغلے و ۔ او دلته ددسره د محمد رفیق استاد هم لیدل کتل شوي وو ۔ د نواب صاحب په فرمایش محمد رفیق استاد د فردوسي شاهنامه په پښتو کښې په یو کال کښې ترجمه کړې وه ۔ سلطان محمد ختک وایي چې دغه شاهنامه د هغوئي په مخکښې ترجمه شوې او لیکلې شوې وه ۔

دغه شاهنامه چې تیاره شوه ۔ نو محمد رفیق صاحب دیر ته د تلو تکل کوو ۔ چې هغه ناروغه شه ۔ او څو ورځو کښې د و مره زیات بیمار شه چې خپل شاګرد عبدالمنان زاخیلو ته په کټ کښې یو وړو او هم هلته وفات شه...... "

بل ځاے لیکي ، " د شاهنامې شپېته زره شعرونه یې په دېرش زره شعرونو کښې منتقل کړي وو " په همدې لیکنه کښې راغلي دي ۔ چې د شاهنامې دغه پښتو ترجمه بیا د محمد رفیق استاد تر مړینې وروسته دده شاګرد عبدالمنان د زاخیلو د دیر نواب ته ورسوله ۔ د دیر نواب ورته پنځه سوه روپۍ انعام ورکړ ۔ عجیبه اتفاق دا وشو ۔ چې د بېرته ستنېدو په وخت کښې پرې شپه راغله او دا رقم ترې غلو یو وړ "

په تاریخ ادبیات مسلمانان پاکستان وهند کښې یې دا هم ویلي دي ۔ چې د دیر نواب له محمد رفیق سره د ترجمې پر هر شعر (بیت) د یوې روپۍ وعده هم کړې وه ۔ ډاکټر خیال بخاري د شاد محمد خان د دیوان په مقدمه کښې وایي چې ده (محمد رفیق) دا ترجمه د خان شاد محمد خان او د دیر د نواب محمد شریف دواړو په فرمایش شروع کړې وه ۔

په دې ځاے کښې د بناغلي راهي او ادوا بناد خیال بخاري دواړو په بیانونو کښې له یو څه تضاد سره مخامخ کېږو ۔ او هغه دا چې راهي ویلي دي چې محمد رفیق دا ترجمه په یو کال کښې بشپړه کړه ۔ او له بشپړېدو سره سم وفات شو ۔ څنګه چې محمد رفیق د ۱۹۰۱ء کال په اګست کښې وفات شوے دے ۔ نو دا ترجمه یې باید د همدې بیان مطابق د ۱۹۰۰ء کال په جون یا جولای کښې پیل کړې وي ۔ حال دا چې شاد محمد خان د ۱۸۹۹ء کال په دسمبر کښې وفات شوے دے ۔ نو په دې حساب د شاهنامې د پښتو ترجمې تر فرمایش او د ترجمې تر پیل شپږ اوه میاشتې دمخه شاد محمد خان وفات شوے و ۔ نو څنګه کېدا ے شي چې محمد رفیق ته دې د شاهنامې د ترجمې په فرمایش کښې له نواب سره شاد محمد خان هم شریک شوے وي ۔

د دیر هغهٔ نواب چې د شاهنامې د ترجمې فرمایش یې محمد رفیق ته ورکړې وه . بناغلي خیال بخاري محمد شریف خان بنوولے دے .

محمد شریف خان ( ۱۸۳۰ - ۱۹۰۴ ع ) د رحمت خان زوے دے . چې د پلار تر مړینې وروسته په ۱۸۸۴ ع کال د دیر نوابي ور رسېدلې وه . (۲۸)

د شاهنامې د دغې پښتو ترجمې بشپړ متن تر اوسه نه دے موندل شوے . یوه نیمګړې نسخه یې د پېښور د پښتو اکېډېمۍ په غنیمت کتابخانه کښې خوندي ده .

دا نسخه ۲۱۴ ورقې ( پاڼې ) لري . او پښتو اکېډېمۍ په کتابخانه کښې یې نومره ۳۶۹ ده . نسخه په نسخ خط په توره سیاهي لیکل شوې او عناوین یې په سره رنګ دي . او په هر مخ کښې یې ۱۵ کرښې کښل شوي دي .

ددې نسخې کاتب د زاخیلو صاحبزاده عبدالمنان دے (۲۹) او دا به هغه صاحبزاده عبدالمنان د ملا محمد رفیق شاګرد وي چې شاهنامه یې د محمد رفیق تر مړینې وروسته د دیر نواب ته وړې ده . دلته سړي ته دا فکر پېدا کېږي . چې بناېي دا نقل عبدالمنان د محمد رفیق استاد له مسوده نه د دیر د نواب لپاره جوړکړے وي . حاضره نسخه د سر او پاے له خوا ناقصه ده . د موجودې نسخې په ۲۱۴ مخ کښې راغلي دي .

محمد رفیقه حمد د اکبر شهٔ
چې په خیر سره تمام دویم دفتر شهٔ
که ژوندون دې باقي پاتې خوش انعام شي
امېد شته چې دوه نور هم سر انجام شي

د نسخې په ۲۱۵ مخ کښې د شاهنامې د دفتر ثالث ترجمه پېل شوې ده . چې په پېل کښې د محمد رفیق دویلي حمد ۳۵ بیته او بیا نعت ۳۳ بیته راغلي دي . او ورپسې جوخت د شاهنامې مطالب پېل شوي دي .

په موجوده نسخه کښې د شاهنامې د دوهم کتاب څهٔ داستانونه او هم د دریم هغه ځینې برخې راغلي دي . چې د دوهم کتاب مطالب پکښې له آغاز نه او د دریم کتاب یې

لهٔ انجام نهٔ ناقص دي.

ماد پښتو ترجمې د موجودې نسخې عناوین د شاهنامهٔ فردوسي د ژول مول لهٔ تصیه کړي څلور ټوکینو متن سره وکتل. د ترجمې عناوین چې ټول پهٔ پارسي دي. پهٔ ځینو برخوکښې لهٔ پارسي متن سره یو شان دي. پهٔ ځینو برخوکښې تغییر لري. ځینې داسې عنوانونه چې پهٔ پارسي اصل کښې شته خو پهٔ ترجمه کښې ما ونهٔ موندل او یو نیم داسې عنوان هم پهٔ پښتو متن کښې موندے شي چې پهٔ پارسي ما کتلي متن کښې نشته.

پهٔ موجوده نسخه کښې لهٔ ناقصو داستانونو او بیا نونو سربېره د دغو لاندې بشپړو بیانونو او داستانونو پښتو ترجمه راغلې ده:

(۱) داستان جنگ رستم با خاقان چین.

(۲) داستان جنگ رستم باکوان دیو.

(۳) داستان د وازده رخ.

(۴) پادشاهي کیخسرو.

(۵) پادشاهي لهراسپ.

(۶) پادشاهي گشتاسپ.

(۷) داستان هفتخوان.

(۸) داستان جنگ رستم با اسفندیار.

(۹) داستان رستم و شغاد.

(۱۰) پادشاهي همائے.

(۱۱) پادشاهي داراب.

(۱۲) پادشاهي دارا پسر داراب.

(۱۳) بر تخت نشین سکندر.

(۱۴) پادشاهي اشکانیان.

دا لوړ عناوین بیا هر یو پهٔ لسګونو نورو وړو عناوین لري.

د شاهنامې دغه پښتو ترجمه تر اوسه نه ده چاپ شوې. یوازې پښتو اکېډمۍ دهمدې نسخې ځینې انتخابي برخې په پښتو (رساله) کښې چاپ کړې دي - (۳۰)

دمحمد رفیق ددې ترجمې په باب چې په افغانستان کښې څه نشر شوي دي. سغه ټول پرهمدې نسخې او دغو نشر کړو منتخباتو بنا دي.

په ادبي ستوري دوهم ټوک، فرهنګ ادبیات پښتو دوهم ټوک کښې ددې ترجمې یادونې شته او هم کله چې په ۱۹۹۰ کال په کابل کښې د فردوسي کالیزه نمانځل کېده نو دقلم جریده، ژوندون (رساله) او عرفان (رساله) کښې د ترجمې د خصوصیاتو په باب ځینې خبرې او ددې ترجمې منتخبې برخې نشر شوې دي.

د دې ترجمې د خصوصیاتو په باب څه خبرې خو په کابل کښې نشر شوو لیکنو کښې راغلې دي. اما هغه لیکنې زمونږ په واک کښې نشته - صرف دومره ویلای شو - چې محمد رفیق استاد په ترجمه کښې له اختصار نه کار اخیستی دے. او د شاهنامې ډېر مطالب یې په لږو بېتونو کښې راڅاږلي دي.

د مثال په ډول د " رزم کاموس باګیو وطوس) قصه کښې په پارسي متن کښې ۵۲ بیته دي - اما محمد رفیق بیا په ۲۲ بېتونو کښې راڅاږلي دي.

د ترجمې دروش د معلومولو لپاره به زه د پارسي متن او پښتو ترجمې څو بېتونه دلته وړاندې کړم:

چو خورشید زد پنجه برپشت گاو
برآمد زها مون خروش چگاو
ز درگاه کاموس در خاست غو
که او بود مرد افگن و پیشرو
سپاه انجمن کرد و جوشن بداد
دلش پر ز رزم و دلش پر زباد

زره بود بر تنش پیراهنش
کلاه ترگ بود و قبا جوشنش
زگرد نکشان لشکری بر گزید
ز دیبا و آهن شده ناپدید
ز دریابه دریا زگرد سیاه
ز شمشیر و جوشن ندید ندراه (۳۱)

د همدې قصه ګمه د پښتو ترجمې څو بېتونه دادي.

چې خورشید خپله پنجه په شادکاو کړه
هم په دشت باندې نعره پورته څکاوکړه
له درګاهه دکاموس راپورته عاو شه
ځاے په ځاے دصیاداتو د دام داو شه
هم یې غوره د لښکر جوشنو ران کړه
را روان یې دوی وجنګ ته د ایران کړه
د ایران په فوځ کښې چغه شوه ناګاه
چې نزدې شولو رستم له خپل سپاه

(ترجمه شاهنامهٔ فردوسي ۱۰ - ۱۱ مخونه)

ماچې د استاد محمد رفیق ترجمه څو ځایه له اصله سره وکتله - دۀ لۀ ډېر اختصار څخه کار اخیستے دے - اود شاهنامې د داستانونو او بیانونو مفاهیم یې په لنډ ډول په خپلو پښتو ابیاتو کښې راوړي دی - محمد رفیق د فردوسي زیاتره وصفي اشعارچې د پهلوانانو او جنګیالوا ځینو صحنو په توصیف اوتمثیل کښې ویل شوي نۀ دي پښتوکړي - ترجمه یې بده نه ده.
دشاهنامې د ترجمې په برخه کښې د بناغلي راحې خبره چې ۶۰ زره بېته یې په دېرشو زرو پښتو بېتونو اړولی ترزیاته حده سمه خبرشي، څو نما اټکل دےچې دا ترجمه به تر دېرشو زرو بېتونو لږه وي -
د محمد رفیق له لوړو آثارو سربېره ځینې نور آثار هم شته - چې متاسفانه ما هغه آثار دلته په پېښورکښې وتۀ موندل - تلاش مو هم پسې وکړ - خو پیدا نۀ شول - نوځکه د هغو

آثارو یادونه زهٔ دنورو آثارو پهٔ مرسته کوم:

(۱) **کلچین محمدی**: دا د محمد رفیق استاد د پارسی دیوان دے. چې ښاغلي رافعي یې پهٔ قند د رساله کښې یادونه کړې ده. او دا یې ویلي دي چې دا دیوان د پندو د شریف کل میا سره وو. البته دا خبره واضح ده چې محمد رفیق پهٔ پارسی کښې هم د شعر ویلو استعداد درلود.

(۲) **نوادرالسالکین معروف به ارشاد الطالبین**:- ددې کتاب یوه نسخه زما پهٔ کتابتون کښې ده. او د هماغې نسخې لهٔ مخې ښاغلي رفیع صاحب پهٔ پښتو پانګه کښې داسې معرفي کړه:

مولف: محمد رفیق اکبرپوري.

خپروونکے: دیوان چهجو سنګه، د خپرید وکال: ۱۳۳۲ ه ق مطبع نو لکشور لاهور

کچه: ۱۵×۱۴ سم، مخونه: ۲۸۸

موضوع: دیني کیسې او روایات پښتې راغونډ شوي او پهٔ ۱۲ څپیزه مثنوي کښل شوے دے.[۳۲] همدا کتاب پهٔ پښتو کتاب ښود (۳۳) کښې هم د محمد رفیق اکبرپوروي تر نامه لاندې راغلے دے.

د نوادرالسالکین پهٔ باب د پښتو پانګې دغه یادونه دفرهنګ ادبیات پښتو دوهم ټوک پهٔ ۲۱۰ مخ کښې هم راغلے ده.

محمد رفیق اکبرپوري ته ددې کتاب نسبت زما پهٔ خیال لهٔ شکه وتلې خبره ده. ځکه محترم رفیع صاحب پهٔ پانګه کښې ټول معرفي شوي کتابونه پخپله کتلي دي. پهٔ کتاب کښې به د مؤلف یا ناظم لهٔ نامه سره د اکبرپوروي نسبت لګېدلے و. نو ځکه دهٔ هم راوړے دے. لهٔ دې سربېره پهٔ فرهنګ زبان و ادبیات پښتو جلد اول او ادبي ستوري دوهم ټوک کښې هم دا کتاب د محمد رفیق پهٔ تألیفاتو کښې شامل بلل شوے دے.

(۳) **رساله صفاتیه**:- ددې رسالې نسخې پهٔ کابل کښې بنایسته ډېرې وې. مګر لهٔ بده مرغه چې پهٔ پېښور کښې یې زهٔ پهٔ پېدا کولو بریالے نهٔ شوم. دا رساله هم د دولس څپیزې مثنوي پهٔ قالب کښې نظم شوې ده. ټول مخونه یې دېرش او د چاپ کال یې

۱۳۱۸ هـ ق دی. او د تجوید د مسایلو بیان ته وقف شوی ده.

د دې رسالې ناظم محمد رفیق دے. خو په رساله کښې یې د ناظم له نامه سره بل نسبت نهٔ دے لیکلے. اما په فرهنګ زبان و ادبیات پښتو جلد اول او ادبي ستوري دوهم ټوک کښې هم دا کتاب ده بلل شوے دے. او په تاریخ ادبیات مسلمانان پاکستان وهند کښې راغلي دي. چې محمد رفیق له کوم عربي څخه د تجوید ځینې مسایل په پښتو مثنوي راژباړلي دي.

(۴) **روضة النعیم**:- د روضة النعیم په نامه مونږ په پښتو کښې دوه کتابه لرو. یو د حاجي زبردست بتي زي ترین دے. چې په ۱۲۲۶ هـ ق کال کښې یې له نظمولو فارغ شوے دے او بل هم د محمد رفیق. په روضة النعیم کښې د حضرت محمد (ص) ۳۱۵ احادیث په پښتو نظم تشریح او ژباړل شوي دي. د حاجي زبردست روضة النعیم تراوسه نهٔ دے چاپ یوه خطي نسخه یې د افغانستان په ملي آرشیف کښې (۳۴) او بله یې د پروفیسر ولي محمد خان سیال کاکړ په کتابخانه کښې خوندي ده

د محمد رفیق روضة النعیم ۲۷ بابه لري. په ۱۳۰۵ هـ ق کال کښې یې له نظمولو فارغ شوے دے. او په هماغه ۱۳۰۵ هـ ق کال په لاهور کښې چاپ شوے دے. ددې روضة النعیم چاپي نسخه ما په خپلو کتابونو کښې درلوده. او د هماغې چاپي نسخې له مخې مې پرې په فرهنګ ادبیات پښتو دوهم ټوک او د تذکرة الشعراء په تعلیقاتو کښې خبرې کړي دي.

د محمد رفیق روضة النعیم کړده خصوصیات د حاجي زبردست له روضة النعیم سره یو شان دي. دا کتاب هم دلې پیدا نهٔ شو. که نه دا یې ځاے و. چې زیاتې خبرې پر شوې وای. او د حاجي زبردست له روضة النعیم سره مقابله او مقایسه شوے واے.

(۵) **رسالهٔ مانع تمباکو**:- دا رساله هم د محمد رفیق ده. او د تمباکو د استعمال د منعې په باب یې خبرې پکښې کړي دي. دا رساله په نظم ده. او د یاد شوي روضة النعیم د ۱۸ - ۲۷ مخونو په حاشیه کښې چاپ شوې ده.

(۶) **رسالهٔ مانع سرود** :- ددې رسالې ناظم محمد رفیق دے۔ او رساله د چاپي روضة النعیم د (۲۷ - ۳۹) مخونو پهٔ حاشیه کښې خوندي ده۔ ناظم پهٔ رساله کښې د ساز او سرود دبندیز او ممانعت پهٔ باب مطالب پکښې راوړي دي۔

(۷) **تفسیر سورهٔ یوسف** :- د دیارلسمې پېړۍ د وروستۍ لسیزې پهٔ جریان کښې د دهلي پهٔ مطابعو کښې د سورة یوسف پښتو تفسیر چاپ شوے دے۔ چې پهٔ منځ منځ کښې یې فارسي او پښتو اشعار هم راغلي دي۔ او د فارسي شعرونو پښتو منظومې ترجمې هم لري۔ اما تفسیر پهٔ پښتو نثر دے۔ او مفسر یا مترجم یې محمد رفیق دے۔ دا تفسیر هم پهٔ ځینو څېړنو کښې د همدغه اکبرپوري محمد رفیق ښوول شوے دے۔ (۳۵)

پهٔ دوهمه کتبګوري آثارو کښې زهٔ لهٔ لومړي او دوهم نمبر کتابونو پرته د نورو پهٔ نسبت کښې اکبرپوري محمد رفیق او د شمس الفلک د دیوان خاوند ته د احتیاط یو قېد هم شاملوم۔ ځکه دغه آثار اوس ما نهٔ لیدلي۔ او لهٔ نورو لیکنو مې التقاط کړي دي۔ پهٔ دوهم نمبر کتاب کښې خو د محمد رفیق لهٔ نامه سره د اکبرپوروي نسبت هم شته۔ نو پهٔ دې اساس یې زهٔ پهٔ ډاډه زړهٔ ددهٔ بولم۔ خو پهٔ نورو رسالو او کتابونو کښې د مؤلف او ناظم نوم یوازې محمد رفیق راغلے دے۔ نو دا خبره لهٔ احتماله لېرې نهٔ ده۔ چې دا آثار دې دکوم بل محمد رفیق وي؛ دا شک ځکه ماته پېدا شو۔ چې موږ د قواعد القرآن پهٔ نامه تجوید هم ددهٔ باله، خو کله چې مې یې دلې پهٔ پېښور کښې خطي نسخه وموندله نو را ښکاره شوه۔ چې دا کتاب د اکبرپوري د محمد رفیق استاد نهٔ دے

د محمد رفیق استاد د نظم او نثر سبک دومره ځرګند او لهٔ هر چا بېل دے۔ که چا ددهٔ ډېرلږ آثار هم لوستي وي۔ سره یې د نورو آثارو پهٔ پېژندلو کښې ډېر کړاو نهٔ وینې۔ دغهٔ ته د قواعد القرآن د نسبت پهٔ خصوص کښې به پهٔ لاندې کوښو کښې زهٔ لږ څهٔ تفصیلي بحث وکړم:

د پروفېسر ولي محمد سيال کاکړ په خطي کتابونو کښې د قواعد القرآن دوې نسخې موجودې دي. چې ناظم نوم يکښې محمد رفيق راغلے دے - څو کاله د مخه اکاډميين پوهاند دکتر جاويد د خپلې کتابخانې پښتو خطي نسخې د افغانستان د علومو اکاډمۍ ته ورکولې - ددې نسخو په منځ کښې هم ددې مثنوي يوه نسخه وه - دا نسخې ښې نه وې کتل شوې او يوازې دا چې د ناظم نوم يې محمد رفيق و - او د پېښور په سيمو کښې بل رفيق هم مونږ نه پېژاند - نوځکه رساله د همدې محمد رفيق اکبر پوري بلل کېده -

د مخارج الحروف په تعليقاتو (۳٦) او ادبي ستوري دوهم ټوک (۳۷) کښې دا رساله ( قواعد القرآن ) د محمد رفيق په تأليفاتو کښې شامله بلل شوې ده - له بنه مرغه د پېښور د پښتو اکېډيمۍ په غنيمت کتابونو کښې د محمد رفيق نومې د قواعد القرآن يوه بله نسخه هم وه چې ما د همدې مقدمې په نيامت وکتله - کله چې مې رساله وکتله نه د سبک او د پرداخت د شبوې له پلوه او نه هم د الفاظو او کلماتو او لغاتو د انتخاب له پلوه د محمد رفيق اکبر پوري له آثارو سره ورته وه - په دې کښې ځلاسې متوجه شوم. چې دا به هماغه تجويد وي چې په پښتانه شعراء کښې يې ناظم محمود رفيق (۳۸) ښودل شوے دے - په پښتانه شعراء کښې ددې کتاب راغلي منتخبات مې له خطي نسخې سره وکتل له مقابلې او مقايسې وروسته دا راته ځرګنده شوه - چې د قواعد القرآن ناظم هغه څوک دے چې په پښتانه شعراء کښې د محمود رفيق په نامه راغلے دے - له کومې نسخې چې د پښتانه شعراء فاضل مؤلف استفاده کړې ده - نو هلته به د ناظم نوم محمود رفيق و - په خطي نسخو کښې د نومونو داسې تصحيفونه او بدلونونه زيات پېښېږي ، چې د هماغه متن د نورو نسخو ترپېدا کېدو پورې محققين له ډېرو تېروتنو سره مخامخ کوي .

سړے کولے شي چې په خطي نسخو کښې د نومونو د داسې تصحيف او بدلون ډېرې نمونې وړاندې کړي. خو زه د بحث د طوالت د مخنيوي په غرض له ډېرو مثالونو څخه تېرېږم - يوازې د يو مثال په راوړو اکتفا کوم -

د پروفېسر ولي محمد خان سيال کاکړ په خطي نسخو کښې د تهکال د حافظ عبدالکبير د تميم

انصاري د قصې يوه خطي نسخه شته. چې د ناظم نوم پکښې عبدالکريم راغلی دی. حال دا چې دا قصه د عبدالکبير ده او په ۱۲۸۶ هـ ق کال په پېښور کښې چاپ شوې هم ده. د چاپي نسخې تر پېدا کېدو پورې د دې قصې جعلي مؤلف د پښتو ادبي څېړنو ته لار پېدا کړه. په فرهنګ ادبيات پښتو لومړي ټوک (۳۲۲ مخ) او پښتو منظومې قصې کښې دا قصه د عبدالکريم د منسوب شوه. دا مثال ما ځکه راوړ چې کاتبان کله نا کله يا د سهوې له مخې او يا هم کله قصدي نومونه ناسم ليکي او دا ډول ناسمې بيا وروسته ډېرې ستونزې ايجادوي.

د پښتانه شعراء محمود رفيق بايد تر دې وروسته محمد رفيق وبولو. دا ځکه چې د قواعدالقرآن په څلورو نسخو کښې دا نوم محمد رفيق دی. په څلورو نسخو کښې چې يو نوم يا لفظ يو ډول وي. نو ځکه يا يو ازينې بل ضبط يې په مقابل کښې خپل ارزښت له لاسه ورکوي

د قواعدالقرآن ناظم محمد رفيق چې د قرآن عظيم د تجويد قاعدې يې له هندي ژبې په پښتو لنډه مثنوی راژباړلي. او په پښتو ادبي څېړنو کښې په غلطه محمود رفيق معرفي شوی و. له محمد رفيق اکبر پوري نه بېل سړی دی. او موږ بايد د دواړو آثار سره بېل کړو

که څه هم ښاغلي راهي ډېر کلونه د مخه دا اټکل کړی دی چې ښائي په پښتانه شعراء کښې د معرفي شوی محمود رفيق تجويد د صمد غه اکبر پورې محمد رفيق وي. او سنه دې يې د ۱۱۹۵ هـ ق (۳۹) پر ځای ۱۲۹۵ هـ ق وي. ځکه چې تجويد له هندي ترجمه شوی. نو محمد رفيق د اکبر پورې له عربي، پښتو او فارسي سربېره د هندي ژبې هم ښه عالم و. بيا يې ده يو پښتو - اردو ملمع شعر هم راوړی دی. خو بيا يې ويلي دي چې کېدای شي دا دواړه بېل کسان وي. (غزل نمبر، قند، ۷ مخ)

زه د ښاغلي راهي د دوستۍ خبرې تاييدوم او په زغرده وايم چې دا دواړه بېل کسان دي. په دې برخه کښې له ډېرو شواهدو که تېر شو. نو دا بايد ووايو چې د

قواعد القرآن کومې خطي نسخې چې اوس موجودې دي. په هغو کښې ځینې د دیارلسمې پېړۍ دا واسطو دي. چې بنایي د اکبرپورې محمد رفیق به هغه وخت ژوندی هم نه و. صرف نظرله دې چې د پښتانهٔ شعراء د مؤلف پرکتلې نسخه د ۱۱۸۵ ه ق مهرلګېدلې ده.

بله خبره د شعر د سبک ده. زهٔ به لاندې د قواعد القرآن د مثنوي څو بېتونه راوړم. چې د محمد رفیق لهٔ سبکه او اسلوبه پهٔ کروهونو فاصله لري.

ای طالبه نېکو کاره
کړه دعا د خداے دپاره
څو حیات پهٔ دا دنیا یم
هم محتاج دې د دعا یم
چې سفرکړم لهٔ دې سرایه
مغفرت را باندې وایه
وایه خدایه پرې کرم کړې
دا محمد رفیق بې غم کړې (۳۰)

لهٔ لوړو بیان شویو او یادو شویو دوو کتګوریو آثارو سربېره ددهٔ ځینې نور متفرق آثار هم شته چې زهٔ یې ددهٔ د آثارو دریمه کتګوري بولم.

پهٔ دې کتګوري آثاروکښې ددهٔ درې ډوله آثار سرے بشوولاے شي:

(۱) **منظومې خطبې**: محمد رفیق استاد د شاعرۍ د استعداد تر څنګه دیني عالم او ملا و. د اخترونو او جمعې د لمانځه خطبې یې پهٔ پښتو نظم کړې وې. بناغلو راهي او خیال بخاري د دهٔ د اخترونو د خطبو ذکر کړے دے. دا خطبې د خطیبانو او واعظانو تر منځ خورې وې او ځینې یې بنایي د خطبو پهٔ ځینو مجموعو کښې چاپ شوې هم وي؟

(۲) **نعتونه**:- کهٔ څهٔ هم موږ پهٔ معاصره دوره کښې مشهور نعت سرا حاجي محمد امین سلیمان خېل (۱۸۹۵ - ۱۹۵۸ء) لرو - خو محمد رفیق استاد هم پهٔ دې لاره کښې

ډېرې تجربې کړې دي. او ډېر سوځنده نعتونه يې ويلي دي. چې ځينې يې چاپ دي. او ځينې يې په ديوان شمس الفلک کښې هم شته - خو داسې نعتونه يې هم په ځينو مجموعو، لکه ګلزار مدينه او مولود شريف محمدی کښې سره موندلای شي. چې ځينې يې په ديوان کښې نه دي راغلي او له نعت خوانانو هم کېدای شي سره د دغه نعتونه راپيدا کړي.

(۳) **مقامي غزلې** :- دا غزلې د محمد رفيق د ځوانۍ د زمانې غزلې دي. چې په خاص شور او جوش يې ويلې دي. او په هغه وخت کښې به د پېښور په سيمو کښې د موسيقۍ فنکارانو د خپل هنر په ښيو کښې خورولې او د ذوقمندانو تر غوږونو به رسېدې او ورسره به خورېدې. دا سندرې هم له ځينو محدودو نمونو پرته په ديوان شمس الفلک کښې نه دي راغلي . ددې غزلو ځينې نمونې د مقامي سندرو په ځينو مجموعو، لکه چمن فيروزي، بهار ګلشن، بهار نوروزي، جشن نوروزي ( ۳۱) او ځينو نورو مجموعو کښې راغلي دي. لکه د ملا نعمت الله له هشت بهشت سره مل د شاعرانو راغلي منتخب (۶۳ مخ) کښې هم د محمد رفيق يوه مقامي غزله راغلې ده.

دا غزلې هره يوه د هندي موسيقۍ له راګونو او مقامونو سره برابرې خېژي او په يادو شويو مجموعو کښې د هرې يوې سندرې مقام او راګ هم ښوول شوی دی.

په ځينو دغو مقامي غزلو کښې يو خاص ولوله انګېز او بوګنوونکی شور لېدل کېږي. چې په لوستونکي او اورېدونکي کښې مستي او شور راپاروي.

د محمد رفيق د دغسې مستو غزلو يوه نمونه داده :

ستا جدايي راته سوز او شور ديدن بيا راوړه
زړه مې په اور باندې تسکور شو ديدن بيا راوړه
لکه د غه سوری سوری خاطر مې تل کړي فرياد
غالب پرې ستا د مينې شورشو ديدن بيا راوړه
په خرمۍ کښې د بهار ستا له نسيم د فراق!
لاله باغ په رياض خور شو ديدن بيا راوړه

طره طره سنبل وهٔ شین ستا د کاکل لهٔ حده
خاص پهٔ روضه د چمن تورشو دیدن بیا داوړه
پهٔ لاس مې جام د ننگ و نام چې ستا غلام شو "رفیق"
دیت د خون یې پهٔ تا پور شو دیدن بیا راوړه (۴۲)

لهٔ دغې مستانه عاشقانه غزلو سربېره دده پهٔ متفرقو آثاروکښې دده ځینې داسې غزلې راغلې دي. چې پهٔ دیوان شمس الفلک کښې نشته - لکه د شاهنامهٔ فردوسي دپښتو ترجمې د موجودې خطي نسخې پهٔ ۴۳ مخ کښې راغلې غزله، چې مطلع یې داده:

نو بهار شو د گلشن د گلو سېر دے
نن بستان جوړ د بستان منطق الطېر دے

دا وو د محمد رفیق استاد هغه آثارچې ماته معلوم وو. کېدائے شي یو وخت دده ځینې نور آثارهم وموندل شي - زهٔ امېدلرم. چې د لوے خدائے (ج) پهٔ استعانت دده د ټولو آثارو پهٔ باب یو بل توضیحي او تنقیدي نوټ پهٔ آینده کښې پهٔ پښتو رساله کښې شایع کړم.

«۳»

# دیوان شمس الفلک ته یوه کتنه

د دیوان شمس الفلک د دیباچې په دوو ټېرو برخوکښې د مولوي محمد رفیق پر احوالو او آثارو څه خبرې وشوې. نو په درېیمه برخه کښې دا وړ ایسي، چې پر دغه دیوان، د دغه دیوان پر محتویاتو، شعري ډولونو، د دغو شعرونو پر موضوعي خصوصیاتو او هنري ارزښتونو هم یو بحث وشي. په هم دې نیامت زهٔ د دیباچې درېیمه برخه د دیوان له معرفي څخه پیل کوم. او وروسته دغه نور بحثونه پر مخ بیایم.

(۱) **دکتاب معرفي**:- څنګه چې مو په څینو بحثونو کښې دا خبره کړې ده. چې د محمد رفیق د احوالو په باب لومړنۍ خپور شوی یا داشت د اروا ښاد مولوي عبد الرحیم صاحب دی. دغه رنګه د دیوان شمس الفلک د معرفۍ په باب هم لومړنی یاداشت د همدوئي دی. دوئي په لباب المعارف العلمیه کښې د دیوان شمس الفلک معرفي په لاندې ډول راوړې ده.

"مجموعهٔ دیوان شمس الفلک (افغاني): دا مجموعه په دریو برخو ویشلې شوې ده. چې په هغو کښې لومړۍ برخه تول د حسنه اخلاقو بیان او د پند وموعظت اشعار دي. او د فرید الدین عطار د پند نامې عطر او خلاصه ده.

دوهمه برخه په پښتو ژبه د امالي قصیدې شرحه ده. قصیدهٔ امالي د اهل سنت د عقایدو یو مشهور درسي متن دی. دا شرحه د مصنف د عالمانه

قابلیت یو ژوندے ثبوت دے.

پهٔ دریمه برخه کښې خالص غزلیات دي. کلام یې پوخ او متین دے. او دپښتو ادبیاتو یوقابل قدر تصنیف دے زموږ د دارالعلوم نایب معتمد خان محمد اسلم خان د مصنف لهٔ لاس کښلي نسخې څخه پهٔ نهایت صحت او اهتمام دا نسخه رانقل کړې ده ......"
(لباب ۱/۳۸۶)

کوموکسانوچې دمحمد رفیق د دیوان شمس الفلک پهٔ خصوص کښې لهٔ دې فهرسته استفاده کړې ده. هغوګـردو دغه خبرې اخیستې دي، لکه: پهٔ تاریخ ادبیات مسلمانان پاکستان وهندکښې اروا ښاد بخاري[۴۳]، او پهٔ روهي ادب کښې پروفیسر محمد نوازخان طائر او هم د افغانستان ځینو محققانو.

که چېرې سړے د یو فهرست نګار د کار شرایطو ته پهٔ پاملرنه د دیوان شمس الفلک پهٔ باب د اروا ښاد مولوي عبدالرحیم صاحب خبرې ارزیابي کړي. نو پهٔ یو ه دغسې فهرست کښې د یوه کتاب دمعرفي پهٔ برخه کښې تر دې ښې او زیاتې خبرې څوک نهٔ شي لیکلے.

خوکه چرې سړے همدا دیوان نقل کړي. او نسخه یې پهٔ میاشتو میاشتو واړوي را واړوي او بیا یې د یوې مقدمې لپاره معرفي کوي. نو اړکیږي. چې د اروا ښاد مولوي عبدالرحیم صاحب دکښنو پهٔ باب هم ځینې یادونې وکړي.
د اروا ښاد مولوي دکښنو پهٔ باب زما یادونې دا دي: اروا ښاد مولوي عبدالرحیم دا دیوان دخپل فهرست پهٔ لومړے ټوک کښې دمجموعه دیوان شمس الفلک پهٔ نامه (لباب ۱/۳۸۶) او پهٔ دوهم ټوک کښې د دواوین شمس الفلک پهٔ نامه (لباب ۲/۳۰۴) معرفي کړے دے. حال دا چې د خطي نسخې پهٔ سرورق کښې ددغه کتاب نوم "دیوان شمس الفلک" لیکل شوے دے. او فهرست نګار به زما پهٔ خیال دا حق ونهٔ لري چې دکتاب نوم واړوي. او پهٔ خپل ذوق یې برابر کړي. د فهرست نګار او ببلیوګرافردا وظیفه ده. چې دکتاب نوم لکه څنګه چې د کتاب د پاسه

لیکل شوے ھسې ولیکي او پهٔ شرح کښې لهٔ خپل ذوق سره سم تعریفات راوړي.

استاد رښتین هم د مولوي صاحب پهٔ پیروي دیوان شمس الفلک د مجموعهٔ دیوان شمس الفلک پهٔ نامه راښوولے دے (د پښتو د ادب تاریخ ۱۲۴ مخ)

۲ : مولوي عبدالرحیم صاحب پهٔ خپل فهرست کښې د دې دیوان درې دفتره ښوولي دي. خو پهٔ فهرستونو دیو کتاب یا یوې نسخې د ټولو محتویاتو او اجزاوو یوه یادونه ضرور پهٔ کار ده. د مثال پهٔ ډول داخبره فهرست نګار ضرور لیکي چې دغه یا هغه کتاب لهٔ مقدمې او خاتمې سربېره دومره فصلونه، بابونه او یا دفترونه لري.

پهٔ دیوان شمس الفلک کښې هم مقدمه (تمهید) شته او هم خاتمه، خو مولوي صاحب دا دواړې برخې نهٔ دي یادې کړې. ښایي دوئ ته به یې د یادولو ضرورت نه و محسوس.

۳ : اروا ښاد مولوي کښلي دي. چې دیوان شمس الفلک محمد اسلم خان کمالي نقل کړے دے. داخبره هم څهٔ توضیح طلبه ده. داخبره سمه ده چې د اسلامیه کالج نسخه د اروا ښاد محمد اسلم خان کمالي پهٔ فرمایښت او د دهٔ پهٔ غوښتنه نقل شوې ده. خو ده خپله نهٔ ده نقل کړې، بلکې نقل کوونکے یا کاتب یې بل څوک دے. دا ډول مبهمې یادونې آینده محققین لهٔ غلط فهمۍ سره مخامخ کوي. او داسې انګیرې چې دا نسخه ګوندې محمد اسلم خان کمالي پهٔ خپل لاس نقل کړې ده. (روهي ادب ۵۳۰ مخ)

پهٔ لباب المعارف العلمیه کښې د دیوان شمس الفلک پهٔ معرفه لهٔ لوړو یادونو وروسته زهٔ د دیوان شمس الفلک د خطي نسخې پهٔ باب خپل معلومات پهٔ دې ډول وړاندې کوم.

د دیوان شمس الفلک اصلي نسخه د ښاغلي قمر راهي پهٔ قول پهٔ ۱۹۵۹ع کال کښې د مدیر رڼا ښاغلي غلام عباس سره وه. او هغوي د پندو لهٔ میاں شریف ګل

نه حاصله کړې وه.

د اسلامیه کالج په لایبریرۍ کښې چې د دیوان شمس الفلک کومه نسخه شته دا نسخه دلوړې یادې شوې اصلي نسخې نقل دے. چې د ارواښاد کمالي په همځه او زیار تهیه شوے دے. اوکمالي صاحب مرحوم یې دکتابت معاوضه اویا روپئ ورکړې وه (قند، غزل نمبر ٧٣)

په صدې اساس د اسلامیه کالج دنسخې په سرورق د دیوان شمس الفلک ترنامه لاندې کښل شوي دي. "حسب الارشاد رئیس اعظم مردان جناب محمد اسلم خان صاحب حال مقیم در کالج اسلامیه پشاور"

عبد المنتقم اکبرپوري د ١٩١٩ع کال دجنورۍ په (٧) اومه ددې نسخې نقل بشپړ کړے دے.

دا نسخه د دوه کرښیزو سرو او آبي جدولونو ترمینځ په خوانا نسخ خط په توره سیاهي لیکل شوې ده. په متن کښې راغلي عناوین، آیتونه، احادیث د شاعر نوم او کله کله ځینې بیتونه په سره، شنه، نیلي او یاسمني رنګونو راغلي دي.

دنسخې قطع لویه ده او ټول متن په نیم تخته یې کاغذ کښې لیکل شوے دے. په صرځ کښې دولس کرښې لیکل شوي دي. دنسخې کاغذ انګریزے او پښتې (پوښ) یې کپړه یې دے. دا نسخه د اسلامیه کالج دلایبریرۍ په کتابونو کښې په ٢٠٢٨ﻫ نومره قید ده.

**(٣) د دیوان شمس الفلک محتویات:** په دې بحث کښې به د دیوان شمس الفلک پر بیلابیلو برخو او اجزاوو خبرې وکړم. او دا به وښیم چې دا دیوان د شعرپه کوموقالبونو کښې بشپړ شوے دے. اوله کومو موضوعاتو بیانونه لرې؟

دا بحث زهٔ د دیوان شمس الفلک له نامه پیل کوم.

ارواښاد ډاکټر خیال بخاري د دیوان شاد محمد خان په دیباچه کښې لیکلي دي!

" د محمد رفیق استاد کلام چې د مولانا ے روم د دیوان شمس تبریز په سمون یې ورله نوم دیوان شمس الفلک ایښے دے ..... " ( دیباچه ۱۶ مخ )

او د استاد خیال د دې خبرې کوم سند نهٔ دے ښو ولے. چې دوئې دا خبره په کوم اساس کړې ده ؟ او په دیوان شمس الفلک کښې هم دا سې کوم وضاحت نهٔ تر سترګو کېږي.

دغه دیوان ته د شمس الفلک د نامه په انتخاب کښې د محمد رفیق خپله خبره دا ده !

چې مې کل واړه د دهٔ لهٔ نعته ډک کړ
پهٔ نامه مې دا دیوان شمس الفلک کړ

(دیوان شمس الفلک خطي ۳۶۳ مخ )

د منجمانو په اصطلاح فلک یو جسم دے. ګرد، چې تذکرځي او غېر نوراني دے زمکه یې پهٔ منځ کښې واقع ده. او نور افلاک د پیاز د پردو پهٔ څېر د هغهٔ پهٔ شا وخوا پیچېدلي دي. د فلک طبقات اوه دي، چې شمس یې پهٔ څلورمه طبقه کښې واقع دے.(۴۴)

دغه راز فلک شمس پهٔ عرفان کښې هم یوه اصطلاح ده. اخوند درویزه بابا ( ۹۴۰ - ۱۰۲۸ ه ق ) پهٔ ارشاد المریدین کښې پر فلک شمس یو بحث کړے دے. ښایي محمد رفیق پر خپل دیوان د شمس الفلک نوم پهٔ همدغو ارتباطاتو ایښے وي، لهٔ نامه چې یې ورتېر شو. زمونږ بل بحث د دیوان شمس الفلک پر دیباچه دے. دا دیوان یوه دوه څېزه دیباچه هم لري. دا دیباچه پهٔ پښتو نثر کښل شوې ده. او د شاعر هدف لهٔ دې دیباچې کښلو دادے. چې لوستونکي ته دا پیغام ورسوي. چې د پېښور پهٔ زمکه کښې شاعران ډېر پېدا شوي او تېر شوي دي. دا شاعران هر یو سحبان منش او داؤد الحان وو او دي. نو زما اشعار او دا دیوان به د دوئې پهٔ وړاندې پهٔ هند کښې د فلفلو د خرڅولو معنیٰ ولري. پهٔ حقیقت کښې دا دیباچه یوه

معذرتنامه ده- چې دهٔ دخپل دیوان دمخه وراچولې ده.

پهٔ دې دیباچه کښې دمحمد رفیق د نثر لیکلو شېوه دا ده ! " مخلبند ددې بستان و معانې او نقشبند ددې گلزار جاودانې پرصفحهٔ رنگین مصفا تر ماء معین پرقلم اعجاز- الرقم، چې یوغصن دےلهٔ اغصانو دحیات او رایت دے. دعلو پس لهٔ ممات" (دیباچهٔ دیوان شمس الفلک ) د پښتو نثر پهٔ تاریخ کښې د نثر نگارۍ دغه ډول تر محمد رفیق دمخه پهٔ دولسمه پېړۍ کښې سرېے د کاظم خان شېدا (۱۱۹۴ ھ ق مړ) د دیوان پهٔ دیباچه کښې لیدے شي. دشېدا د نثر دا لاندې ټوټه هم دکتوده :" لیکن زهٔ چې پهٔ دکان کښې د شاعرۍ قلیل البضاعت یم - او پهٔ ایوان د زبان آورۍ زرنگار دصناعت نهٔ لرم- خپل مناسبت فطري لهٔ دې شېوې سره پهٔ حد دتصور کښې موهوم......"(۴۵)

مولوي محمد رفیق اکبرپوري دڅورلسمې پېړۍ پهٔ اوائلو کښې ژوندے دے- چې دے هم د شېدا د نثر پهٔ څېر مرصع نثر ولیکې. دمحمد رفیق پهٔ نثر کښې له روابطو او یو نیم بل پښتو ټکي پرته       نور ټول الفاظ د نورو ژبو دي.

د پښتو نثر پهٔ تاریخ کښې ماته خپله لهٔ شېدا پرته بل سړے نه ښکاره- چې پهٔ دې انداز او شېوه دې یې نثر کښلے وي- خو اوس دا دے څرگنده شوه- چې مولوي محمد رفیق هم ژوندے دے چې پهٔ دې شېوه نثر ولیکي.

پهٔ برصغیر کښې د ایجاد شوي فارسي ادبیاتو پهٔ لړ کښې سه نثر ظهوري د مولانا نورالدین ظهوري ( ۱۰۲۵ ھ ق مړ) تألیف هم پهٔ فارسي مرصع نثرونو کښې حسابېږي. مگر د فارسي ادب محققین ، لکه محمد حسین آزاد لیکلي دي- چې د سه نثر ظهوري خاص طرز دظهوري تخلیق دے - چې نهٔ مخوا چا پهٔ دې اسلوب لیکل کړي دو - او نهٔ وروسته چا ددهٔ پېروي وکولاے شوه.(۴۶) پهٔ پښتو کښې چې شېدا پهٔ کومه شېوه او اسلوب نثر لیکلے دے- هغه اسلوب هم ددهٔ خپل تخلیق دے- پهٔ قدماوو کښې هم چا هسې نثر نهٔ دے لیکلے - مگر د سه نثر ظهوري خلاف پهٔ پښتو کښې مونږ داسې سړے اوس موموچې ژوندے یې ایستلے د شېدا پېروي او پېښې وکړې.

دا سړی مولوي محمد رفیق دی. چې دخپل دیوان شمس الفلک دیباچه یې د شبدا د مرصع نثرغوندې مرصع کښلې ده.

په دې تمهید کې برخې پسې جوخت د دیوان شمس الفلک اصلي برخې شروع کیږي چې دا برخې د دیوان دفترونه دي. دا دیوان مولوي محمد رفیق په دریو دفترونو ویشلی دی. لومړی دفتر چې دخطي نسخې له ۳ مخ نه پیل کیږي او تر ۱۵۴ مخ پورې رسي. د دې دفتر د پیل په تقریباً ۶۰ مخونوکښې د خدای (ج) په حمدونو د ذات باریتعالی د قدرتونو په ستاینو، د حضرت محمد (ص) په نعتونو او توصیفونو، د انحضرت (ص) د معراج په واقعه، بیا د پیغمبر (ص) د څلورو یارانو پر محامدو او ورپسې د پیر دستګیر په ستاینو او محاسنوکښې بیانونه لري، ورپسې یې د "مناجات به درګاه مجیب الدعوات جلشانه" تر سرلیک لاندې یو اوږد نظم راوړی دی. چې دخطي نسخې په ۶۴ - ۷۰ مخونوکښې ځای شوی دی - بیا د دې دفتر اصلي برخې شروع کیږي. چې هغه د فارسي ژبې په مشهور درسي کتاب (پنج ګنج یا پنج کتاب) کښې دراغلې پند نامې د مطالبو پښتو ترجمه ده. که څه هم د پند نامې فارسي متن هم په شروع کښې د ۲۵ بیتونو یو حمد، د ۱۱ بیتونو یو نعت او هم د مجتهد و ائمه وو د فضایلو په ښوولوکښې ۷ بیتونه لري. خو محمد رفیق چې د دیوان شمس الفلک د لومړي دفتر د آغاز کوم بیانونه په حمد و نعت و مناقبو او محامدوکښې راوړي دي. دا د فارسي پند نامې له لوړې یادې شوې تمهیدې برخې سره څه اړه نه لري. د فارسي پند نامې تر حمد و نعت و منقبت وروسته دا عنوان: "مناجات به جناب مجیب الدعوات" محمد رفیق هم په لږ تغییر انتخاب کړی دی - خو محمد رفیق چې تر دې عنوان لاندې کوم نظم وړاندې کړی دی - هغه ډیر اوږد نظم دی. چې دخطي نسخې په تقریباً اوه اتو مخونوکښې خوندي شوی دی. او په فارسي پند نامه کښې تر لوړ یاد شوي عنوان لاندې یوازې ۱۲ بیته راغلي دي.

له دې مقایسې بیان نه زما غرض دا دی - چې د دیوان شمس الفلک د شروع

برخې چې د دغه رومي دفترڅۀ کښې نيمايي برخه ده . هغه ترجمه نه بلکه دده خپل ايجاد دے . او لۀ دې برخې وروسته يې پۀ پند نامه کښې راغلي عنادين او ترغو عناوينو لاندې بيان شوي موضوعات ټول پۀ پښتو ترجمه کړي دي .

عناوين يې هماغسې فارسي راوړي دي اومطالب يې ورپښتوکړي دي .

پۀ فارسي پند نامه کښې يو عنوان دے " در سيرت ملوک " تردې عنوان لاندې دا بيتونه راغلي دي .

چهار خصلت اے برادر در جہان
پادشاہان راھمی دار و زیان
بادشاه چون برملا خندان بود
بیگمان در هیبتش نقصان بود
باز صحبت داشتن باهر فقیر
بادشاہان راہمی ساز د حقیر
بازنان بسیارگر خلوت کند
خویشتن را شاه بی ہیبت کند
ہرکہ رافر جہانداری بود
میل او سوی کم آزاری بود
عدل باید بادشاہان راو داد
تاز عدلش عالمی گروند شاد
گر کند آهنگ ظلمی بادشاه
سود نکند مرورا گنج و سپاه
باز نان شاہی کہ در خلوت نشست
دور نبود گر رود ملکش زدست

چون که عادل باشد و میمون لقا
باشد اندر مملکت شر را بقا
چون کند سلطان کرم با لشکری
بهر او بازند صد جان سرسری[۴۷]

د پند نامې دا بیان محمد رفیق د "در سیر مذمهٔ ملوک گوید،، تر عنوان لاندې داسې پښتو کړے دے:

اے بلبل د صبحدمه خوش الحانه
په سیرو د شاهانو نکته دانه
د سرو ګلو پهٔ چمن شناسا تهٔ یې
د هر ګل د اصل و بو مواسا تهٔ یې
څلورځیزه اې عزیزه پهٔ جهان کښې
سلطانان ګوزاروي تل پهٔ نقصان کښې
بادشاهان چې پهٔ ظاهره پهٔ خندا شي
بې ګمان یې پهٔ هیبت نقص پیدا شي
که کښیني به پهٔ محفل کښې لهٔ فقیره
دا مجلس به یې بیشک کاندي حقیره
که لهٔ ښځو سره دے کښیني خلوت کا
دا بادشاه به هیبتي ځان بې هیبت کا
هر سلطان له چې فره جهانداري وي
همیشه به ددهٔ خوے کم آزاري وي
هر سلطان لره لازم دے عدل داد
چې لهٔ عدل نه یې تل وي جهان شاد

چې آهنګ د ظلم وکاندې بادشاه
نا بکار دے که لري ګنج و سپاه
لهٔ زنانو چې سلطان پهٔ خلوت کښېني
پهٔ خیمه بې د حباب مملکت کښېني
هر سلطان چې پهٔ سپاه باندې کرم کا
ځان به قتل دهٔ دپاره پهٔ یو دم کا
تعجیل وکا اے ساقي باده پیمایه
د ګل بوے دے پهٔ رفتن د باغ لهٔ سرایه
د بلبلو محفل جوړ پهٔ کونج د باغ دے
مطرب پورته کړه صدا وخت د فراغ دے

(دیوان شمس الفلک ۷۷، ۷۸ مخونه)

که چرې سړے دا دواړې ټوټې پهٔ مقایسوي ډول وګوري نو ښکاري چې ترجمه پخه او بشپړه ده - څهٔ کمبوتې نه لري. مطالب یې نهٔ دي پرې ایښي زما پهٔ فکر دهٔ پهٔ دې ترجمه کښې یو بل ابتکار داکړے دے. چې د پند نامې پارسي بیتونه یې پهٔ وچه تبلیغي ژبه نهٔ دي ترجمه کړي، بلکې پهٔ شروع او پاې کښې د دو دریو خطابي بیتونو پهٔ اضافه کولو سره دې ترجمې ته ښکلا وربخښلې ده - او خپل نظمونه یې د وچو موعظوله ردیفه رابیل کړي دي.

د پند نامې دا ترجمه ترپایه داخصوصیت لري.

د ړومبي دفتر پهٔ پای کښې د فارسي پند نامې د خاتمې لهٔ آزادې ژباړې برسېره، پهٔ دې برخه کښې محمد رفیق اکبرپوري خپل اضافات کړي دي. او پهٔ وروستیو برخوکښې یې دوه تمثیله هم راوړي دي. چې د یو تمثیل[۴۸] څو بیته یې دا دي.

که څوک پورته یو بیضه له زاغ زشت کا
بیا یې لاندې تر طاووسه د بهشت کا

پهٔ زر کاله پرې سینه مرې طاووس
پهٔ شجـــر کښې د طوبی لکه عروس
پس لهٔ هغه پکښې روح پو کړي جبریل
هم پهٔ حکم د خـالـق رب الجلیـل
زایېده به لهٔ بیضې د زاغــه زاغ شي
که دا یې یې پهٔ سل رنګ طاووس دباغ شي

دا دفتر لهٔ یوهٔ نظمه پرته نور ټول د دولس څپیزې او پهٔ ځینو مواردو کښې یو ولس څپیزې اوږدې مثنوي پهٔ قالب کښې نظم شوے دے. خود "مناجات بر درګاه مجیب الدعوات جلشانه" تر سرلیک لاندې چې کوم اوږد نظم پهٔ دې دفتر کښې خوندي دے. ټول ۳۲ بنده لري. هر بند یې درې بیته او شپږ مسرې لري. د ړومبي بند وروستے بیت پهٔ ټولو بندونو کښې تکرار راغلے دے. کیدا ے شي سړے یې مسدس ډوله نظم وبولي. خو د مسدس کوم تعریفات چې د شعر د ډولونو د معرفۍ پهٔ کتبو کښې راغلي دي(۱۱)- دا مسدس له هغو تعریفاتو سره سمون نه لري. او دا هم کیدا ے شي چې د پښتو د اولسي شاعرۍ پهٔ اوزانو کښې ویلے شوے نظم یې وبولو، د دې مناجات یو بند دا دے:-

اے نما رحیم رحمانه مهربانه
مهربان پهٔ بنده ګانو لهٔ هرچا نه
تهٔ غفور حلیم بادشاه پوزش پذیریې
پهٔ دا خپلې بادشاهۍ کښې بینظیریې
بیا راغلے دا بنده چې ګریخته دے
آب د مخ یې پهٔ عصیان سره ریخته دے

د دې نظم د لومړ بند دغه وروستے بیت پهٔ ټولو بندونو کښې تکرار دے.
که څهٔ هم د دې نظم ښکلا ییزه برخه ډېره قوي نهٔ ده - خو د جذب قوت یې

ډېر دے.اولوست اوبدل یې په لوستونکي او اورېدونکي کښې یوه جذبه او شور را پاروي. پر لوستونکي او اورېدونکي دا ثر منلوله جهته دانظم خپل ځانګړے ارزښت لري.

دموضوع له پلوه اول دفتر له حمدونو، نعتونو، مناقبو او دمعراج د واقعې له بیان پرته نور ټول د پندونو، وعظونو او نصایحو بیان ته وقف شوے دے. اود پند نامې مطالب محمد رفیق دخپلو ابتکاراتو په ملتیا په پښتو نظم وړاندې کړي دي.

دامطالب دمعاشرې داصلاح او د انسان داخلاقي او اجتماعي روزنې په ارتباط بیانونه لري. او دا اصلاحي او اخلاقي مطالب ټول دنصایحو او وعظونو په بڼه بیان شوي دي.

اروابناد مولوي عبدالرحیم په خپل فهرست کښې دا دفتر دشیخ فرید الدین عطار د پند نامې عطر او خلاصه بللے دے. (لباب ۱/۳۸۶)

دمولوي صاحب مرحوم ددې رایې په ارتباط هم زه دوه وضاحته وړاندې کول غواړم:

۱. کومه پند نامه چې د پنج ګنج په مشهور درسي کتاب کښې د پند نامهٔ عطار په نامه درج ده - د فارسي ادبیاتو محققین، نقادان او متن پوهان دا پند نامه اوس دعطار نه بولي[50] - او ده ته په منسوبو آثاروکښې یې شماري. دپند نامې ژبه، کره وره او نور ادبي لساني خصوصیات د شیخ فرید الدین عطار نیشاپوري (۶۲۷ هـ ق مړ) دآثارو سبک ته ورته نه دي.

۲. عطار ته منسوبه پند نامه له حمد و نعت، تمهیداتو او خاتمې سره ګرده (۸۸۷) بیته ده اودمولوي محمد رفیق د دیوان شمس الفلک پوره دفتر، چې پند نامه هم پکښې پښتو شوې ده- ټول ۱۰۸۸ بیتونه لري. اوله پند نامې زر بیته پکښې زیات دي. نوځکه موږ دا دفتر د پند نامې خلاصه نه شو بللے.

## د دیوان شمس الفلک دوهم دفتر د قصیدهٔ امالي شرح ده

قصیدهٔ امالي یوه لامیه عربي قصیده ده. چې د بیتونو شمېر یې په مختلفو نسخو کښې مختلف دے. په ځینو نسخو کښې ۶۷ بیته او په ځینو کښې ۶۳، ۶۶ او ۶۸ بیته ده. په کشف الظنون کښې د قصیدهٔ امالي د بیتونو شمېر ۶۶ ښوول شوے دے. د ملا علي قاري هروي په شرح کښې د دې قصیدې بیتونه ۶۸ راغلي دي.(۵۱) او د ماهزادې د مولوي سید روح الله په پښتو شرح قصیدهٔ امالي کښې د دې قصیدې بیتونه ۶۶ دي. پروفېسر عبد الروف نوشهروي په خپل کتاب بحر الانوار کښې لیکلي دي. چې میان عمر د څوکنو چې د دې قصیدې کومه شرحه په فارسي ژبه کښلې ده. په دې شرح کښې د عربي قصیدې بیتونه ۶۳ دي.(۵۲)

فاضل استاد پوهاند عبد الشکور رشاد، چې د دې قصیدې څو نسخې کتلې دي. په هغو نسخو کښې د دې قصیدې د بیتونو شمېر ۶۷ ده.(۵۳) او په حاضره شرح کښې، چې د دیوان شمس الفلک دوهم دفتر جوړوي. هم د دې عربي قصیدې بیتونه ۶۷ دي.

قصیدهٔ امالي امام سراج الدین ابو محمد عبد الله علي بن عثمان الاوشي الفرغاني (۵۷۵ هـ ق مړ) په ۵۶۹ هـ ق کال نظم کړې ده. د یادولو وړ ده، چې د دیوان شمس الفلک په دوهم دفتر کښې (د قصیدهٔ امالي شرح) د قصیدې ناظم په غلطه محمد اولي راوړل شوے دے.

پر قصیدهٔ امالي په شرقي ژبو ډېرې شرحې کښل شوې دي. پښتو هم له دغو ژبو څخه یوه ژبه ده. چې د دې قصیدې څو شرحې مونږ پکښې موندلې شو. له دغو څو شرحو څخه یوه شرح د مولوي محمد رفیق اکبرپوري ده.

په دې شرح کښې له حمد ونعت و محمدت چهار یار کبار دروسته، چې د "دربیان تألیف کتاب" تر سرلیک لاندې کوم بحث راغلے دے. دا عنوان لوستونکے

پهٔ لومړي نظر پهٔ دې یاوري کوي . چې دا شرح به خپله مولوي محمد رفیق کړې وي. خود خطي دیوان په ۱۵۹ مخ کښې د داغلط لاندې بیت ؛

چې یې شوق لهٔ افغاني خفي جلي کړ
ما پښتو کتاب د شرح امالي کړ

پهٔ لوستو سره متیقن کېږي. چې محمد رفیق دا قصیده پهٔ پښتو شرح کړې نهٔ ده. بلکې د قصیدې شرح یې پښتو کړې ده. د دغه نظر ملاتړ د محمد رفیق پهٔ لاندې بیتونو کښې هم موندل کېږي؛

مصنف کوي نادي د دې کتاب
ما وغواړئ پهٔ دعا لهٔ پاک وهاب
هم شارح یاد کننده او شنونده
پهٔ دا رنګ د دې کتاب چې خوانندہ
هم چې چا پهٔ زبان ووې د افغان
دا کتاب د عقایدو د ایمان

دا لاندې بیتونه هم د دې لوړې ادعا موید دي ؛

هم پهٔ دا رنګې شارح د دې کتاب
التماس کړي لهٔ مومن نه پهٔ دا باب
چې دوئي یاد کړلهٔ د شرحې فواید
او ترې یاد یې د اسلام کړهٔ عقاید
هسې ما هم مصنف کل مومنان
ایماندار بوځي خالق لهٔ دې جهان
هم دغه فقیر حقیر د دوئي غلام
چې یې دا کتاب پښتو کړلو تمام

پابوسي د هر مومن ته دے دلشاد

خاص مريې د عالمانو خانه زاد

پهٔ لوړو بيتونوکښې دواړه ځايه اصلي مصنف دقصيدې ناظم او شارح او د شرحې پښتوکوونکې درې واړه ښيل ياد شوي دي.

د قصيدې ناظم خو معلوم دے. مګر کومه شرحه چې محمد رفيق پښتو کړې ده. د شارح نوم يې دهٔ نهٔ دے ښودلے. ماځپله داسې اټکل کړله، چې محمد رفيق به دا شرحه د اخوند درويزه (رح) لهٔ فارسي شرح قصيدهٔ امالي نه پښتو کړې وي؟ اخوند درويزه دا قصيده د ځانګړې رسالې په بڼه په فارسي ژبه هم شرح کړې ده. د اخوند دغه فارسي شرحه په وارو وارو چاپ شوې ده. او خطي نسخې يې هم موندلې کېږي. استاد رشاد يې د دريو چاپونو (۱۲۰۸ هـ ق، ۱۳۲۵ هـ ق او ۱۳۵۶ هـ ق) يادونه کړې ده - (د ګلشن روه مقدمه ۵۰ مخ) ډاکټر ظهورالدين احمد يې د ۱۳۰۱ هـ ق کال ديو چاپ ذکر کړے دے[۵۶]. ماهم ددې فارسي شرحې يوه چاپي نسخه ليدلې ده - او يوه خطي نسخه يې د جامعهٔ مليهٔ دهلي په ډاکټر ذاکرحسين مېموريل کښې خوندي ده.

د پېښور پهٔ څو کتابخانو کښې چې زهٔ کله کله پکښې مطالعه کوم. د اخوند ددې فارسي شرحې پهٔ تلاش کښې شوم. خو نهٔ مې يې چاپي نسخه اوموندله او نهٔ خطي. زما پهٔ ذهن کښې دا سوال همداسې پاتې و. چې پهٔ دې کښې ما د ځينو نورو منابعو پهٔ مرسته د اخوند (رح) د فارسي شرح قصيدهٔ امالي پهٔ باب ځينې يادونې وموندې، دغو يادونو پهٔ دې باوري کړم. چې د محمد رفيق شرح قصيدهٔ امالي ښايي - د اخوند درويزه (رح) د فارسي شرح قصيدهٔ امالي پښتو ترجمه نهٔ وي؟

۱:- استاد رشاد د ګلشن روه د دريم چاپ په مقدمه (۵۰ مخ) او د خوګنوميان عمر (رح) نومې رسالې پهٔ (۵۸ مخ) کښې ليکلي دي. چې اخوند درويزه د فارسي شرح قصيدهٔ امالي پهٔ مقدمه ګوټې کښې ددې قصيدې ناظم پهٔ ناسم ډول محمد نجم الدين عمر

نسفي (۱۰۳۴ - ۵۳۷ هـ ق) ښودلے دے. حال دا چې د محمد رفیق د شرحې په مقدمه کښې د قصیدې د ناظم نوم د ابومحمد الاوشي پرځائے محمد اولی راغلے دے.

۱۲- په مخزن کښې چې ما د اخوند (رح) له خوا د قصیدهٔ امالي پښتو ترجمه وکتله دا ترجمه هم د محمد رفیق له شرحې سره د ترتیب له پلوه ځینې توپیرونه لري. دا پښتو ترجمه ما په دې بنیامت وکتله چې ښایې د مخزن پښتو ترجمه او دهغه (درویزه (رح)) فارسي شرح ښایې د دې عربي قصیدې له واحد متن څخه تهیه شوې وي، نو که د پښتو ترجمې ترتیب د محمد رفیق له شرحې سره یو شو، کېدائے شي سړے ووایي چې دا شرح به هم د اخوند له فارسي شرح قصیدهٔ امالي څخه پښتو شوې وي؟

په هرصورت د اخوند درویزه د فارسي شرح قصیدهٔ امالي په شمول د نورو منابعو د نشتوالي له امله ما ونشول کولے. چې د محمد رفیق د پښتو شرح قصیدهٔ امالي اصلي منبع او د شارح نوم پیدا کړم اونه مترجم پرځان دا زحمت منلے دے. چې د شارح نوم وښیي.

په دې شرح کښې قرآني آیات ځینې صحیح او ځینې ضعیف احادیث هم د تمسک په منظور راوړل شوي دي. له دې سربېره ددې شرح په ښشپړولو کښې شارح له تفسیر مدارک، رساله رد روافض او تمهید ابوشکور څخه هم استفاده کړې ده. او ځینې دینې مسألې یې هم پکښې بیان کړې دي.

دا شرح محمد رفیق د پندو د میاں زاهدګل په غوښتنه پښتو کړې ده. د " دربیان تألیف کتاب " ترسرلیک لاندې په راغلي بیان کښې دهٔ ویلي دي:

چې شریف دے په نسب او په خصلت
د پندو میاں زاهدګل دے داساعت
ولیعهد د ولي میاں عبد الله دے
د قرآن په حقایقو ښه آګاه دے

چې یې شوق له افغاني خفي جلي کړ
ما پښتو کتاب د شرح امالي کړ

په تذکرهٔ حفاظ پشاور او ځینو نورو میسرو منابعو کښې ماد پندو د میان زاهد کل په باب څه و نه موندل. دا شرحه مولوي محمد رفیق د پښتو اوږدې مثنوي په قالب کښې بشپړه کړې ده. دا مثنوي دولس څپیزه او په ځینو برخو کښې یوولس څپیزه ده.

ددې شرحې د حمد و نعت و مدحت چهار یار کبار او د "در بیان تألیف کتاب" نظمونه دده خپل دي. او ورپسې د شرحې ترجمه پیل شوې ده. ددې شرحې ټول بیتونه ۱۳۲۲ شا و خوا کېږي. ددې شرحې د بیان شیوه لوستونکي ته د مفاهیمو د رسولو له پلوه څه کمبود نه لري او یا داچې زه داسې انګېرم. ددې کار یو علت دادے. چې محمد رفیق په عام ډول یو مترجم دے. ده اکثر آثار له پارسي څخه پښتو کړي دي. په ترجمه کښې غښتلے معلومېږي. په همدې شرح کښې یې ددې لاندې پارسي بیت!

هرکه سخن را به سخن ضم کند
قطره یی از خون جگر کم کند

داسې پښتو کړے دے. لکه

هر سړے چې یو کلام له دویم ضم کا
نور به څاڅکے د ځیګر له وینو کم کا

د دیوان دا دفتر په عام ډول له هنري ښکلاوو بې برخې دے. او په ټولو منظومو کښې یې د شرحې مطالب په پښتو بیان کړي دي.

ددې قصیدې او شرحې موضوع د اهل سنت وجماعت د عقاید و بیان ته وقف شوې ده. مولوي روح الله ددې قصیدې یو متأخر شارح په دې ارتباط لیکلي دي:

"اهل اسلامو ورونو معلومه ده . چې د بدعاتو او رسوماتو وقتاً فوقتاً ترويج او ترقي کېږي . او دصريت ته مايله خيالات اوعقيدې ښکاره کېږي. او په تصنيف شوو کتابونو داهل سنت والجماعت کښې قصيدة بدء الامالي مختصره رساله ده...... په دې کښې صحيح عقيدې د اهل اسلامو بيان شوي دي" (۵۵)

مولوي محمد رفيق هم ددې قصيدې او شرحې موضوع همدا عقايد ښوولي دي. دهٔ ويلي دي :

د سنت جماعت اهل شيخ وشاب
معتقد په عقيدو ددې کتاب
عقايد مې کړهٔ کل نظم د اسلام
چې په کار يې شي په دين دنيا تمام

***

د ديوان شمس الفلک دريم دفترچې د خطي نسخې له ۲۵۷ مخ څخه شروع کېږي . د کتاب ترپايه دوام موي (۳۶۴ مخ) - ددغه دفتر په پيل کښې د غزليات عنوان سره په دې باوري کوي . چې کوندې په دې دفترکښې به ټول غزليات را غلي وي.

مولوي عبد الرحيم صاحب به هم د همدې عنوان په وجه د ديوان شمس الفلک دريم دفتر په غزلياتو مشتمل بللی وي. خو اصل خبره دا ده چې :

دريم دفتر يوازې غزليات نه، بلکې د محمد رفيق نور متفرق کلام هم ورسره مل دی. په دا دفترکښې د شاعر دغه آثار خوندي دي .

۱:- په دې دفترکښې ۹۶ پښتو غزلې او ۶ د نورو ژبو غزلې راغلي دي.

دا غزلې د بيتونو د شمېر په لحاظ مختلفې دي - د پنځو د شپږو، د اوو او د زياتو بيتونو لرونکې غزلې پکښې شته - او له دې ډول غزلو سربېره ځينې داسې غزل ډوله نظمونه هم پکښې شته چې د بيتونو د شمېر له پلوه د غزلو له چوکاټه وځي - ځکه شعر پېژندونکي د غزل لپاره د بيتونو شمېره په معمول ډول د

- ۱۴ بیتونو ترمنځ ټاکلې ده - د ابتدایي غزلو د بیتونو شمېره له دریو تر اوو پورې و - په غزلکښې د بیتونو د ډېروالي مسأله په وروستیو وختوکښې پیدا شوې ده (۵٦) -

د محمد رفیق په دې ۹٦ پښتو غزلوکښې د غزل له جوړښت سره دسمو غزلو ترڅنګه داسې غزلې هم ډېرې دي چې د بیتونو د شمېر له پلوه سړے ورته غزل نشي ویلے - او د قصیدو درشل ته قدم ږدي - خو هغه خصوصیات چې یې قصایدو ته ټاکلي (۵۰) هغه آداب ، شرائط او خصوصیات بیا په دې نظمونوکښې نشته - نو ځکه مونږ ورته قصاید هم نشو ویلے - بلکې دا هغه اوږد غزل ډوله نظمونه دي - چې په پښتو ادب کښې له قدیمه رواج لري - زمونږ د ډېرو پخوانو شاعرانو په دیوانونوکښې داسې اوږده غزل ډوله نظمونه او یا قصیده وشمه غزلې شته - چې محمد رفیق هم له دې ړلې مستثنی نه دے او د نورو ډېرو پښتو شاعرانو غوندې یې ځینې داسې اوږدې غزلې ویلې دي چې په فنی لحاظ د بیتونو د شمېر له پلوه غزلې نه دي خو د کړو وړو او فنی شرایطو له پلوه د قصیدې حکم هم پرې نشي کېدائے - په دغو ۹٦ غزلوکښې ما ته څیله څلور کتګورې غزلې دامعلومېږي:

الف: هغه غزلې چې جوړښت او ټول فنی خصوصیات یې ، دکنایو، استعارو، تشبیهاتو او تلمیحاتو له پلوه له ښو او پخو زړو غزلو سره اړخ لګوي.

ب: په دې غزلوکښې څو محدودې داسې غزلې هم شته چې د خپل ساختمان او آهنګ پلوه له هغو مقامي غزلو سره اړخ لګوي - چې د دیارلسمې هجري پیړۍ په دوهمه نیمایي کښې د پېښور د ښاد خوا سیمو ځینو شاعرانو په دې سبک غزلې جوړولې دا ډول غزلې د هندي موسیقي له راګونو لکه ! اسا ، پیلو ، ملتاني ، بهوپالي ، پهاړي ، کونسیه ، شام کلیان ، ساندره ، سارنګ ، کستوري ، اسادري ، مالکوس سوهني ، تلنګ او نورو دغسې راګونو سره موافقې ویلې شوې دي - دغو غزلو به د موسیقي او ساز و سرود محفلو ته لاره پیدا کوله - او له پېښوره سربېره

به د افغانستان سیمو کښې هم خوریږي. محمد رفیق هم د هغو شاعرانو په ډله کښې ولاړ سړی دی ، چې د موسیقي او غزل د دغه کاروان له لومړیو ملګرو څخه شمېرل کېږي.

د هندي موسیقي له راګونو او مقامونو سره برابرې غزلې محمد رفیق ډېرې ویلې دي چې ځینې یې خورې ورې په ځینو مجموعو کښې چاپ دي او څو دغه ډول غزلې یې په دیوان شمس الفلک کښې هم شته . دا ډول غزلې ډېر پېچلې فني خصوصیات نه لري. تشبیهات او استعارات یې ډېر څرګند، ساده اما ور سره ښکلې او یو خاص موسیقیت یکښې نغښتی وي.

ج ؛ د دیوان شمس الفلک په دریم دفتر کښې ځینې نعتیه غزلې دومره عالي جذبه او جوش وخروش لري. چې د دیوان شمس الفلک د غزلو په یوې ځانګړې کتېګورۍ کښې یې سړی دروولی شي . د دغو دریو کتېګوریو ترڅنګه په دې دفتر کښې ځینې داسې غزلې هم شته . چې زما په ګمان شاعر په دیوان کښې د ردیفونو د پوره کولو په منظور د زړه په زور ویلې دي. البته دا ډول غزلې ډېرې نه دي. او پر څو محدودو غزلو دغسې اطلاق کېدای شي.

په موضوعي لحاظ په دې غزلو کښې کومه ابتکاري موضوع نه تر سترګو کېږي که سړی دا دیوان له سره تر پایه وګوري. نو محمد رفیق دا دعا ؛ " چې مې کل واړه د ده له نعته وک کړ " به ورته صادقه ښکاره شي .

یا دا چې ؛

که اګر چې مې ګفتار واړه ناچیز دی

چې همه نعت د ده دی ډېر عزیز دی

د ادبي محاسنو ترڅنګه د محمد رفیق په دیوان شمس الفلک کښې په عام ډول یو نیم ځای ځینې شعري فني معایب هم تر سترګو کېږي. خپله محمد رفیق ته هم دا احساس و . نو ځکه یې څو ځایه خپلو کمو تیو ته اشارې کړې دي ، لکه ؛

د کرم په سترګو عیب د رفیق پټ کـړه

که غلط په قافیـه وي یا ردیف

***

که په سجع خطا لاړشي عیب جویي د رفیق مه کړه

چې انسان بې خطا نه وي نه یکسان لري عروض

۲: د پښتو غزلو ترڅنګه ددې دیوان په دریم دفتر کښې څلور فارسي یوه اردو او یو داسې غزل ږوله نظم هم شته. چې دوه بیتونه یې عربي، دوه یې فارسي یو یې اردو او یو یې پښتو دے.

زموږ په زاړه ادب کښې اکثرو شاعرانو دخپلې مورنۍ ژبې ترڅنګه په فارسي کښې هم شعرونه ویلي دي. ځکه فارسي په پېړیو پېړیو ددې سیمې ثقافتي ژبه پاتې شوې ده. په مدرسو کښې شامله وه، داصل قلم او عالمانو، ادیبانو، شاعرانو هم دا ژبه زده وه. زموږ د شاعر محمد رفیق استاد هم تر دې حده زده وه، چې له دې ژبې یې د آثارو له ترجمو سربېره په دې ژبه کښې سخنوري هم کولے شوه.

له فارسۍ سربېره له هندي توکمو خلقو سره دجاورت له امله پښتنو ادیبانو په هندي ژبو هم لیکل کړي او اشعار یې ویلي دي. له لسمې هجري صدۍ راپدېخوا موږ دځینو پښتنو علماوو او شاعرانو په آثارو کښې په هندي ژبو هم ځینې آثار او اشعار مومو. د محمد رفیق اردو غزله هم له مقامي ژبو سره ددهٔ دعلاقمندۍ یوه بېلګه ده.

۳: په دې دفتر کښې دوه مخمسه هم شته. چې د بل چا په غزلو ویلي نه ښکاري دواړه مخمسه د اسلام دستر پیغمبر حضرت محمد (ص) په نعت کښې وېل شوي دي. مخمسونه یې یو کشش لري. په زیاته اول مخمس.

۴: تر مخمسونو وروسته په دیوان کښې دوه داسې نظمونه هم شته. چې په خطي نسخه کښې یې ورته د مربع عنوان ورکړے دے (دیوان شمس الفلک خطي ۳۵۳ مخ)

خوماچې د شعر پوهنې په آثاروکښې د مربع له تعریف سره ددغو دوو نظمو نو جوړښت وکوت له صفحه تعریف سره برابرنه ُخیژي (زرینې ځانګې ۵۰ مخ) نو بیا متوجه شوم. چې دا دوه نظمونه دپښتو شاعرۍ په ځپلو ملي اوزانوکښې ویل شوي دي. ځکه په نصدې دفترکښې ددهٔ دوه نورې ملې بدلې هم شته. په دې حساب له دغو دوو نظمونو سره یوځائ د دیوان شمس الفلک دریېم دفترکښې مونږ دپښتو په اولسي اوزانوکښې ویلې څلور سندرې موندلې شو. چې یوه ئې پکښې خاص شور او مستي لري ددې بدلې "سر" دا دے:

دلبرلب یې شکر دل و دلدار زما دے

نن بیا په رفتن ځي

کاکل یې د مخ ګل نسي بشمار زما دے

پر ملک دختن ځي

۵: په دې دفترکښې درې توټې مثنوي هم شته. یوه یې دپیران پیرغوث الاعظم دستګیر په ستاینه کښې. بله د سرورکائنات په نعت او دکتاب په تمة او دریمه له زمانې څخه د شکایت موضوع او ورسره پکښې ددې دیوان دجوړولو باعث او د تکمیل د نیټې ښودلو ته وقف ده.

دهٔ ددې دیوان دجوړولو باعث په لاندې بیتونو کښې ښودلے دے:

راشه جوړه یوه نکته کړه بنه صریح

چې په لوستو نمکداره وي ملیح

ګوندې دا دې رهنمایه په حشر وي

خاص دې نعت د نبي خیرالبشر وي

په قیامت کښې په شماره یې دمداح شې

ګلک امید دے چې لایق به د فلاح شې

د خاتې له بیتونو ښکاري چې دیوان شمس الفلک د ۱۳۰۲ هـ ق کال دجمادی الاول

په دولسمه د دوشنبې ورځ مازیګر پاے ته رسیدلے دے.

(۳) **د دیوان شمس الفلک ارزښتونه :-** دیو اثر د ارزښت او بها تاکل یوه داسې مسأله ده . چې د هر اثر له لوست نه دلوستونکي په برداشتونو پورې اړه لري- دا برداشتونه او د برداشتونو له مخې دیو اثر ارزښت او بها ټاکل هم د ټولو له نظره یو ړول نه وي. ما هم چې د متن دنقل ، ترتیب او سمون په وخت کښې له دیوان شمس الفلک کوم برداشتونه کړي دي. زهٔ خپل دغه برداشتونه په بیلا بیلو برخوکښې په لاندې ړول لیکم . او دا ضروري نه ده چې ټول لوستونکي دې له ماسره زما په خبرو او نظریو کښې اتفاق ولري.

**۱ :- دلغاتو او ژبې له پلوه :-** زهٔ دا بحث د پېښوري شاعر او خطاط شاه افضل له دې لاندې یادونې پیل کوم - دا یادونه شاعرځه زیات کم اتیا کاله دمخه لیکلې او چاپ کړې ده - شاه افضل چې دګلزار مدینې په وروستیو حصوکښې د اشعار شعراے متفرق په ترځ کښې د محمد رفیق استاد کومې درې نعتیه غزلې خطاطي کړې دي - نود یوې غزلې په حاشیه کښې یې دا نوټ هم ورسره لیکلے او چاپ کړے دے :" دا غزل محمد رفیق استاد ویلے دے. په خپله زمانه کښې یو قابل قدر شاعر وهٔ - دده په شاعري کښې لفاظي ډېره زیاته ده - عالمان او شاعران پرې ډېر خوښېږي - مګر امیان پرې نهٔ پوهېږي........ دا صاحب د اکبر پورې دے - او په مقبره د اکبر پورې کښې دفن شوے دے " (۵۹)

زما د مطالعې له مخې د محمد رفیق استاد پر شاعرۍ دا قدیم ترین تنقیدي نوټ دے . که مونږ د محمد رفیق شاعري او آثار په دیوان شمس الفلک کښې او هم دده په نورو آثاروکښې له نظره تیر کړو- نو دې نتیجې ته رسیږو- چې د شاه افضل کاتب خبرې د دهٔ د شاعرۍ په باب رښتیا دي-

دے دکلماتو په انتخاب کښې مشکل پسند دے- دهٔ په دیوان او نورو آثاروکښې فارسي او عربي ډېر درانه او مشکل کلمات انتخاب کړي او استعمال کړي دي ، چې

زیاتره یې د لغت په عامو کتبو کښې نه پیداکېږي.

ددهٔ په آثارو او دغه دیوان کښې له محاورې لویدلي پښتو لغات چې په ارکاییکو او هستوریکو لغاتو کښې دې راشي، نهٔ دي استعمال شوي ـ دوه ، درې دا ډول لغات پهٔ دې دیوان کښې شته.

دمقامي ژبو د اغیزلهٔ امله ځیني هندي ژبو ته مربوط لغات هم پهٔ دیوان کښې استعمال شوي دي

پهٔ عام ډول ددهٔ اکثره اشعار د ژبې لهٔ پلوه مشکل دي. هرلوستونکی یې پهٔ مفهوم نهٔ پوهېږي. پهٔ اکثرو مواردو کښې ددهٔ دیوان لوست سړے مراجعې او د لغت کتبو ته اړکوي.

**۱۲- موضوعي خصوصیات :-** څنګه چې مو پهٔ د مخنی بحث کښې ورته اشاره وکړه د دیوان شمس الفلک لومړي دوه دفترونه ، خو د موضوع له پلوه په اخلاقو ، او د اخلاقي معیارونو پربنا د معاشرې د اصلاح او د خلقو روزنې ، وعظونو ، پندونو او هم د ایمان او عقیدې پهٔ مسایلو اړه پیدا کوي.

دا دواړه دفتره ، چې ترجمې دي ـ دواړه دیداکتیک ارزښتونه هم لري ـ پهٔ پنځ ګنج کښې راغلي پند نامه او شرح قصیدهٔ امالي پهٔ پیړیو پیړیو پهٔ دیني مدارسو د کلیو په جوماتونو پهٔ حجرو کښې د دیني علومو د طالبانو درسي کتابونه وو او دي ـ

مولوي محمد رفیق استاد د پښتنو طالبانو د مشکلاتو د حلولو لپاره دا دواړه په نصاب کښې شامل آثار پهٔ پښتو نظم را ژباړلي دي ـ او د پښتنو طالبانو لپاره د دوئ پهٔ مورنۍ ژبه وړاندې کړي دي ـ څنګه چې دے خپله مدرس هم و ـ نو کېدا ے شي خپل دغه پښتو آثار دهٔ تدریس کړي هم وي ـ دا کار پهٔ خپل ذات کښې ارزښتمن دے ـ خو ابتکاري کار ځکه ورته نه شو ویلے ـ چې دغه آثار تر محمد رفیق دمخه نورو هم پهٔ پښتو کړي دي ـ

د مثال پهٔ ډول عبد الرحمٰن زمیند اروې په ۱۲۱۹ هـ ق کال دغه پند نامه د

تشریف نامې په نامه په پښتو نظم را اړولی ده (۶۰) - ددې ترجمې تر اوسه معلومه یوازینۍ خطي نسخه زماد کتب خانې په خطي کتابونو کښې ده.

دغه رنګه د محمد رفیق له ترجمې سره همزمانه یا ورته ورځرمه لږ وړاندې وروسته پنج ګنج د کتابونو د پېښوریو تاجرانو له خوا له تحت اللفظ پښتو ترجمې سره یوځای چاپ شوی دی، چې پند نامه هم پکښې پښتو شوې ده.

دغه رنګه قصیدهٔ امالی اخوند درویزه (رح) په فارسي او پښتو ترجمه او شرح کړې ده. پښتو ترجمه یې د مخزن الاسلام لومړی بیان دی. (۶۱)

همدا رنګه د قصیدهٔ امالي منظومه پښتو شرح نوموړي یاد شوي عبدالرحمن زمینداروي هم کړې ده. دا شرح تر اوسه نه ده چاپ شوې. ددې خطي نسخې زماد کتابخانې په خطي مجموعه کښې وې. او یوه بله یې د محمد معصوم هوتک په کتابخانه کښې ده.

تر محمد رفیق وروسته بله معاصره پښتو شرح یې د سید روح الله ده. چې دا شرح په پښتو نثر ده. او په پېښور کښې چاپ شوې ده.

د درېیم دفتر په موضوعي ځانګړنو مادمخه خبرې کړې دي. په دې دفتر کښې او هم د څلورم دفتر کښې ځینې بیتونه او ځینې پاړکي داسې هم ماته دا معلومېږي. چې د عرفاني اندېښو له پلوه څه فکري ارزښتونه لري. او دا خبرې ترې زباتېږي چې مولوي محمد رفیق د عرفان له رموزو هم څهٔ نسبي آګاهي درلوده.

د دهٔ یوه فارسي غزله هم د عرفاني افکارو حاشنې لري. ددې غزلې مطلع دا ده:

دوش از مسجد شدم در میکده مهمان یار

بانګ نوشا نوش بود و قلقل مینا هزار

له دې سربېره ځینې اخلاقي وینا وې، پندونه او د عشق او محبت سندرې هم دده په دیوان کښې موندلی کېږي. چې دا ډول بیانونه هم د شرقي شاعرۍ تکراري موضوع ده. کوم نوښت نهٔ لري.

دمحمد رفیق پهٔ دیوان کښې ددهٔ دعصر دمعاشرتي او سیاسي ، اجتماعي وضعې انعکاس نهٔ موندل کیږي .که نهٔ وي دمحمد رفیق د اوسېدو زمانه پهٔ دې سیمه کښې د اجتماعي ، سیاسي کشمکشونو او تحولاتو دوران و . مګر دهٔ دغو حالاتو ته څهٔ اشارې نه دي کړي . د دې نهٔ یادونې یو علت هم ښایي دا وي چې محمد رفیق استاد یو مدرس او د دیني او اسلامي علومو ښوونکی و . چې دخپل تدریس او تألیف او ترجمو پهٔ کاروبار بوخت و او نورو اجتماعي ،سیاسي مسایلو ته یې پام نهٔ اوښت .

۳ : هنري او ښکلاییز ارزښتونه : که څرې دیوان شمس الفلک موږ د هنري ارزښتونو او ښکلاییزو ښتونو له پلوه وګورو نو راښکاري چې د دې دیوان درې واړه دفتره ټول د هنر او ښکلا پهٔ کانه پسولي هم نهٔ دي او ګرده د یوان پهٔ وچو منظوماتو هم ډک نه دے . پهٔ نسبي لحاظ دا دیوان ځینې هنري او ښکلاییزې خوبۍ لري .

د دفترونو پهٔ اساس که موږ د دیوان شمس الفلک پهٔ هنري ارزښتونو خبرې وکړو . نو به ووایو :

ړومبی دفتر سره لهٔ دې چې د پند نامې ترجمه ده . د پند نامې مضامین محمد رفیق هم هغسې پهٔ وچه ژبه ترجمه کړي دي . خو ابتکارېې پکښې دا کړے دے . چې د پند نامې د هرې موضوع تر ترجمې د مخه یې دوه درې داسې بیتونه ،چې پهٔ نسبي لحاظ ښکلي دي . او شعریت هم لري پکښې ورزیات کړي دي . کله چې دے دکتاب هره موضوع ترجمه کړي نو بیا دوه داسې ښکلي بېتونه وراضافه کوي . لکه دا نمونه :

در بیان خلق حسنه ګوید

د چمن پهٔ لور ګذر وکړه نسیمه
بسته شونډې د ګل واکړه لهٔ شمیمه
ګل لهٔ ورایه خنده زن ستا پهٔ راتله شي
چې دا ستا مهر و الطاف ورسره مله شي

څلور څیزه بزرګي لهٔ دي دلیل
هر سړے چې دا لري وي به اصیل
یوعزت دعلم کاندي بې حسابه
دخبرې جواب کاندي لا ثوابه
چې مومن لري دانش ، عقل تمیز
عالمان او حلیمان لري عزیز
بل پهٔ وصل ددوست سعې کړي کامله
لهٔ دښمن نه ویره خوف کوي عاقله
داوره وروره که خبر لرې تمام
لهٔ مخلوق سره شیرین کوه کلام
هر سړے چې تلخ ګویه ترش روے شي
محبان به کناره ترې په هر سوے شي
هر سړے چې لهٔ دښمن نه کا حذر
عاقبت به ترینه وموهي ضرر
هم پهٔ منځ کښې ددوستانو مسرور اوسه
خبردار شه لهٔ دښمن څخه دور اوسه
مهٔ کړه ځے د دښمنانو پهٔ جوار کښې
چې دښمن لري بهتر دے پهٔ دیار کښې
لهٔ دوستانو سره اوسه همنشین
څ مهٔ ګوره د دښمن ناکس لعین
دحشر دلارې تل سازه توښه کړه
دغه دواړه ځے د زړهٔ پهٔ بنهٔ ګوښه کړه

اے ساقي راکړه شیرین شربت دمیو
چې څېره مې شي صفا دغم له خُوَیو
دا قسم خاصه په خُم کړم د شرابو
روښنايي ده د ایمان له ځے نابو

ددې لوړې ټوټې په آغاز کښې دوه خطابي بیتونه "نسیم" ته او په انجام کښې هم دوه خطابي بیتونه "ساقي" ته ویل شوي دي. دا څلور بیتونه څهٔ د هنر مالګه لري. چې په منځ کښې د راغلي اخلاقي وینا وچوالے یې له منځه وړے دے. او د پند نامې مواعظ، پند ونه او اخلاقي بیانونه یې له وچوالي ژغورلي او په دې طریقه یې په دې ترجمه کښې د هنر او ښکلا یوڅهٔ تومنه پیدا کړې ده.

د پند نامې د ټولو مطالبو او مختلفو مضامینو د ترجمې په پیل کښې دهٔ دغسې خطابي بیتونه د باغبان، نسیم سحري، بورا، چمن، بلبل، کبک دري، ابرنیسان په نومونو او د پاے خطابي بیتونه د ساقي په نامه دي. البته دا ښکاره خبره ده. چې په مشرقي شاعرۍ کښې نسیم سحري، بورا، چمن، بلبل، کبک دري، باغبان، ابرنیسان د ښکلا د سمبولونو په توګه استعمال شوي او په هنري انداز کښې کارولو یې د وینا وو او شعرونو د ښکلا ییزو ارزښتونو په لوړولو کښې خپل خاص مقام درلودلے دے.

پند نامې د ټوټو په پاے د ساقي په نامه راوړل شوي خطابي بیتونه سربېره پردې چې ښکلاییز ارزښتونه لري. په ټولو دغو بیتونو کښې عرفاني مفاهیم هم نغښتي دي. او محمد رفیق په صمدغو دوو بیتونو کښې څهٔ داسې نتائج پرې مرتب کړي دي. چې یوازې "اصل دل" پرې پوهېږي. د ساقي نامه ته د هرې ټوټې د پاے له خطابي بیتونو سربېره د دې ترجمې د بېلا بېلو ټوټو د پیل خطابي بیتونه هم کله کله په عرفاني مفاهیمو پسولل شوي راغلي دي.

لکه دا بیتونه :

اے بلبل له باغستان د جبروت
خبردار یې له اسراره د لاهوت
د چوګان ګوے دې شو تېرله ملکوت
راشه نن تر سلطنته د ناسوت

په لوړو بیتونوکښې راغلي جبروت ، لاهوت ، ملکوت او ناسوت دصوفیانوله نظره څلور عالمونه دي. ځانته یو عالم دے.

یا دیوې بلې ټوټې دانجام خطابي بیتونه :

ساقي راکړه د نبیذو پیاله زرده
ستا پیاله په حواله کښې خورشید فرده
میخانې له مې راوړے نقد روح دے
خرابات مې دے طوفان ساقي مې نوح دے

په لوړو بیتونو کښې ساقي ، پیاله ، خرابات ، میخانه ټول عرفاني مفاهیم بندي او په عرفاني اصطلاحاتو او تعبیراتو کښې خپلې خاصې معناوې لري - (۶۲)

مولوي محمد رفیق د دیوان شمس الفلک د لومړي دفتر د پند نامې په ترجمه کښې دلوستونکي دجذب لپاره له خپلې وسې او ادبي توان سره سم د شعري تومنې د پیدا کولو ترڅنګه ددې دفتر په تمهید ي برخو کښې هم ځاے ځاے دخپل نظم د ښکلي کولو کوشش کړے دے. دیوه منظر په ترسیم کښې ددغه شعري قوت دادے :

په جدول یې مسلسل خیابانونه
قسم قسم لون لون پکښې ګلونه
که پرتو یې له ورق شي د ګلاب
د نوري جلوه به یوسي له آفتاب

پهٔ جلوه پهٔ کرشمه یې ښشتي ګل دے
پهٔ شعاع کښې نوراني لهٔ یوهٔ بل دے
له سیمین دے که سمن دے که سوسن دے
یو لهٔ بله منجلي احسن احسن دے
شقایق یې جام دے پهٔ سرنیولے
پهٔ لقایې بلبل مست دے پرېوتے
هسې رنګ یې د نرګس سترګې آبدارې
پژمرده په میو مستې ناغه دارې
پېچیده زلفې مشکینې د سنبلو
دي پرتې حلقه حلقه په هر د ګلو
هر یو ګل یې بې حسابه بې شمار دے
د یو حسن افزونتر ترېل هزار دے
سرو ناز سروسهي ښکښې ولاړې
یو تر بله ښایسته نرۍ یې غاړې

پهٔ دې ترتیب موږ ګورو، چې د دیوان شمس الفلک لومړے دفتر یو څهٔ هنري مایه لري. او څهٔ داسې بیتونه او اشعار ښکښې شته - چې ښکلا لري او لوستونکو ته جلبولے شي.

دوهم دفتر زما پهٔ نظر تش نظمونه دي. ما ته د ښکلا، هنر او شعریت څهٔ څرکونه ښکښې نهٔ ښکاري. محمد رفیق دخپلو تعلیمي او دیداکتیکو اهدافو لپاره د دې شرحې پهٔ ترجمه کښې لهٔ نظم څخه د یوې وسیلې پهٔ توګه کار اخیستے دے.

درېیم دفتر کښې څینې غزلې او یا دڅینو غزلو څینې بیتونه موږ د هنر پهٔ ګانه سمبال اشعارو کښې حسابولے شو. پهٔ غزلو کښې چې دهٔ کومې اسطورې راوړې دي. دا اسطورې زیاتره د فردوسي د شاهنامې د داستانونو پهٔ قهرمانانو

او پښتنوانانو پورې اړه لري. لکه دا لاندې بیتونه :

د ایرج په تاخت وته وم له توره
لاهو شوے په جیحون یم الغیاث
تیغ ایستلے د جمشید په قصاص ګوره
په ضحاک تر فریدون یم الغیاث

* * *

رستم طوره کمانکش، کمند اندازشه
که دې نفس اشکبوس دے یا کاموس

* * *

دا کوان په نیول ځې محمد رفیقه
تهمتن غوندې محکم کړه یال و فش

* * *

د ایرج د ځان به سل افسوسه وکړې
که دې داوریده د سلم و تور قصص

دا او داسې نورې اسطورې سرے په دې باورې کوي. چې دهٔ حتی تر خپلې ترجې دغه د فردوسي د شاهنامې مطالعه درلوده او ددې شاهنامې حکایات یې یاد وو او د خپلو اشعارو په رنګینولو کښې یې ترې استفاده کوله. محمد رفیق په خپله شاعرۍ کښې د اسطورو داوړو ته ښه توجه کړې ده. او ادب پوهان وایي چې هغه شعر چې ارزښت نهٔ لري. چې اسطوره پکښې نهٔ وي. او دا اسطورې هغه خیال پالونکې او ارمان پاروونکې دور نماوې دي. چې لوړ انساني ایډیالونه پکښې پالل شوي دي (۶۳)

لنډه دا چې په دیوان شمس الفلک کښې ځینې بیتونه او اشعار نورې بدیعي او بیاني ښکلاوې او ارزښتونه هم لري. که چرې موږ په هره برخه کښې مثالونه

داوړو. نو ددې دیباچې خبره به ډېره اوږده شي. ګران لوستونکي به دا دیوان ولولي. او ددې دیوان له ځينو ښکلو بیتونو اوغزلو به خوند واخلي.

په دې ځای کښې زهٔ یوه لنډه یادونه بله داکوم. چې دمحمد رفیق پهٔ دیوان شمس الفلک کښې ځینې داسې شعرونه او پارکي هم شته. چې دهنري ارایش لهٔ پلوه پهٔ ځه مکبوتهٔ ولري. خو پهٔ جوړښت کښې ځینې داسې کلمات انتخاب شوي دي. چې پارونکي او پهٔ لوستونکي کښې دیو شور اوجذبې ژوندي کوونکي دي. یو ډول کشش لري. او داثر اندازه قوت یې لوړ دے.

۳:- **دمحمد رفیق دشعر سبک** :- که ځه هم د سبک دکلمې دتعبیر ساحه ډېره وسیع ده. خو پهٔ هنر او ادبیاتو کښې سبک یوه ابداعي ځانګړنه (خصوصیت) ده. چې یو لیکوال یې او شاعریې دخپلو ادبي آثارو پهٔ ترځ کښې تمثیلوي (۶۳).

محمد رفیق چې پهٔ دیوان شمس الفلک اوخپلو نورو منظومو آثاروکښې دکوم سبک پیروي کړې ده. هغه ددهٔ خپل فردي سبک دے. چې زماد مطالعې مطابق زموږ پهٔ قدیمه شاعري کښې دکوم مشخص شاعر پېروماته نه ښکاري.

دلته باید داخبره وکړو. چې شاعران اولیکوال هریوځانته خپل سبک لري. حتی دا سبکونه یې د لیکوالۍ او شاعرۍ په بیلا بیلو دورو کښې تفاوتونه هم مومي. خو دځينو شاعرانو اولیکوالو سبکونه بیا د یوه بل مشهور شاعر یا لیکوال د سبک تر اغیز لاندې وي. او دځينو هم خپل انفرادي مشخصات لري.

دمحمد رفیق کوم منظوم آثارچې ماکتلي دي. دحاضر دیوان پهٔ شمول ، د کلماتو دانتخاب ، داسطورو او سمبولونو دچڼولو او داوړلولهٔ پلوه ځینې خاصې ځانګړتیاوې لري. او داترې نهٔ ښکاري چې ده دې په مشخص ډول دیو بل چا پیروي کړې وي. البته لهٔ قدماوو مستفید ښکاري نه په مطلق ډول مقلد او دچا پیرو.

«۳»

# د دیوان شمس الفلک

## دحاضرمتن د ترتیب په باب څو ټکي

---

د دیوان شمس الفلک حاضر متن ، چې د پېښور پوهنتون دپښتو اکېډېمۍ په ابتکار د ړومبي ځل لپاره چاپ شوی دی۔ د دې دیوان د میسرې واحدې نسخې له مخې یې دترتیب مراتب په لاندې ډول بشپړ شوي دي :

۱:- دپښتو اکېډېمۍ له خوا ماته ددې دیوان یوه فوټو کاپي نسخه راوسپارل شوه. او داسې پېژتیل شوې وه - چې متن به په همدې فوټو کاپي شوې نسخه کښې سمېږي او چاپ ته به برابرېږي ۔

خو کله چې ما نسخه وکتله - دنسخې املایي تېروتنو او دپښتو اکېډېمۍ له خوا د نوې مجوزه املا له اساسونو سره سم دمتن د ترتیب مسألې او په متن کښې دله حد نه زیاتو کرانو ټکو موجودیت له یوې خوا او د فوټو کاپي شوې نسخې نواقص او نتوالحاله بلې خوا زه اړ کړم ۔ چې د معاصرې متن څېړنې له مېتودونو سره سم متن له دې نسخې څخه را نقل کړم ۔ دنقل کارې پېل کړ۔ او په نسخه کښې نه راغلو او تتو برخو ته مې په خپل نقل کښې ځاې پرېښود ۔ متن مې په نیم تخته یې کاغذونو کښې په داسې شېوه رانقل کړ چې په تصرخ کښې دحاشیو لپاره ځای پرېښوول شو۔

۲:- دنقل تر بشپړ تابه وروسته د فوټو کاپي شوې نسخې دکمبوتاتو د پوره کولو لپاره زه اړ وم۔ چې د متن اصلي نسخې ته رجوع وکړم۔ دپښتو اکېډېمۍ په وساطت د اسلامیه کالج پېښور په لایبریري کښې د اصلي نسخې دکتو زمینه مساعده شوه۔

ماد اصلي خطي نسخې له مخې د خپل نقل لمبوتات بشپړ کړل. او په کومو ځایونو کښې چې راته اشتباه وه. هغه ځایونه مې هم له اصلي نسخې سره مقابله کړل.

۱۳- د متن تر نقل او مقابلې وروسته زه د متن د نقل په بیا کتنه بوخت شوم. د بیا کتنې په وخت کښې راته څرګنده شوه. چې ما په خپل نقل کښې د پښتو اکیډیمۍ د وروستي مجوزه نوې املا (۶۵) خیال ډېر نه دے ساتلے.

د دې نقیصې د رفع او د متن د تحشیې په ارتباط ما په دې مرحله کښې دغه کارونه سرته ورسول.

الف: د متن املا د پښتو اکیډیمۍ د نوې مجوزه املا مطابق شوه.

ب: د اصلي نسخې ټولې لیکدودي او املایي ناسمې سمې شوې. په اصلي نسخه کښې له ډېرو لږو ځایونو پرته نور ځاے د "ښ" ګرافیم په "خ" کښل شوي دے. څنګه چې دغه ډول تېروتنې ډېرې وې. نو ځکه په لمن لیکونو کښې ونه لیکلے شوې. یو نیم ځاے کاتب یا شاعر د "خ" آواز د "ښ" په ګرافیم هم ښودلے دے.

نورې املایي تېروتنې هم په متن کښې زیاتې دي - دا ډول تېروتنې ما ټولې په متن کښې سمې کړې او اصل ناسم شکل مې یې په حاشیه کښې ښودلے دے.

د دې نسخې د املایي تېروتنو څو عمده نمونې دا دي:

سنګ : څنګ

سوک : څوک

کوځ : کوز

شړه : شګه

سانګه : څانګه

لږول : لګول

پیځوان : پېژوان

همدا رنګه په نسخه کښې ډېر ځله د "ږ" آواز د ښوولو لپاره د "ګ" له

گرافیم څخه استفاده شوې ده.

له دغسې املایي کمیو تیو سربېره په متن کښې ځینې کلمات دعامیانه محاورې سره سم هم ضبط شوي ، لکه سجع د شجع په بڼه ، حال دا چې سجع مقفی کلام ته ویل کېږي او شجعه ژړورو ته وایي. د مد د کلمه چې د مرستې په معنیٰ ده په نسخه کښې د «مدت » په بڼه ضبط ده. او مدت و یلے شي وخت او زمان ته ، صدا د ننګه پلید د پلیت په بڼه .

دغه راز شاعر په خپل دیوان کښې ځینې کلمات د خپلې لهجې مطابق راوړي. لکه د بنایسته پرځاے خېشته ، د اخیستل پرځاے اخیشتل ، د درو (آهسته) پر ځاے دو ، د سپور پر ځاے سور ، د درور پرځاے رور او داسې نورې ډېرې کلمې. ما دا ډول کلمې ډېرو مواردو کښې په خپل اصلي شکل پرېښې دي. ځکه بدلون یې د شعر جوړښت ته زیان رساوه. له بلې خوا د متن پوهنې اصول هم دا وایي، چې د متن محقق باید تر ممکنه حده زیار وباسي چې د شاعر خپل لهجوي خصوصیات په متن کښې مخدوش نه کړي. ځکه همدا متون دي چې د تاریخي ګړ دود پوهنې په څېړنو او ژبې د تحول د تاریخ په لیکلو کښې له ژبپوهانو سره مرسته کوي.

ج:- د لغاتو حل ، په دې مرحله کښې ما د متن د سمون تر څنګه په متن کښې راغلي لغات هم د میسر و فرهنګونو او د لغت د کتبو په مرسته حل کړل . په دې لغاتو کښې زیاته فیصدي د فارسي او عربي لغاتو ده . په دې لغاتو کښې ځینې ګران لغات دي. حتی داسې ګران لغات هم پکښې شته چې زما تر استفادې لاندې فرهنګونو او د لغت په کتبو کښې ونه موندل شول - او هماغسې پاتې دي. ځینې اسانه فارسي او عربي لغات خاص په دې نیامت معنی شول. چې د موبه سرحد د پښتنو لپاره مرستندوے وي. د لغاتو معناوې چې له کومو فرهنګونو اخیستل شوې. په زیاترو مواردو کښې د کتاب حواله ور سره موجوده ده . د زیاترو فرهنګونو نومونه بشپړ راوړل شوي دي. یوازې د دوو فرهنګونو نومونه په مخفف ډول (ظفر) او(عمید)

راغلي دي، چې يو يې ظفر اللغات او بل يې فرهنګ عميد دے.

د :- د املايي تېروتنو او نورو ډبنيو کمبوتونو ترڅنګه د نسخې په ځينو اشعارو کښې کمبوت او زياتوب هم ليدل کېده. چې دا برخې ما په اشعارو کښې د څه کمولو او يا اضافه کولو له لارې بشپړې کړې دي. ماخپل اضافات په دې ډول ( ) لېنديو کښې نيولي دي. دغه ډول که په متن کښې نور تصحيحات هم شوي دي. او اصل يې په لمن ليکونو کښې ښوول شوے دے.

ما د متن د تصحيح په مرحله کښې د لغاتو د حل په شمول د متن نقل د هر ځ توضيح طلب موارد په مسلسلو نومرو په هماغه ځ کښې راوړې او توضيح کړې دو. د ديوان د هر دفتر د شرحو او توضيحاتو نومرې بېلې، خو د هر دفتر ترمنځ مسلسلې راغلي دي.

په چاپي نسخه کښې کاتبانو د ځان د آسانۍ لپاره د هر دفتر حاشيې تر متن وروسته اچولي دي، چې د متن د تحقيق اصول له معقول عذره پرته دغه ډول کار ته اجازه نهٔ ورکوي.

د متن د تحقيق اصول وايي، چې که د متن نسخه واحده وي او متن نور واريا نښونه ونهٔ لري. نو لغات بايد د متن په هر ځ کښې حل شي او لنډ توضيحات هم د متن د هر ځ په حاشيو کښې راوړل شي. که توضيحات اوږده وي. کېداے په متن پورې تعليقات ونښلول شي. په هر ځ کښې د حاشيو د راوړلو روش ځکه ميتود پوهان غوره ګڼي چې دا کار له عادي او محققو لوستونکو سره مرسته کوي او د مطالعې سلسله يې نه شلېږي. که لوستونکے د هرې حاشيې او هر لغت لپاره د متن پاے ته مراجعه وکړي. نو د لوست چار به له ډېر کړاو سره ځ شي.

۳:- د حاضر متن لومړے او دوهم دفتر په پښتو مثنوي کښې نظم شوي دي نو ځکه له پيله او دوهم دفتر ترپايه متن کښې د اصلي خطي نسخې نومره هم

ښوول شوي ده او دا نومره د متن ښي اړخ ته په دې ډول [ ] ليندۍ کښې راوړل شوې ده.

د ديوان درېيم دفترچې پرغزليا تو او نورو متفرقو نظمونو مشتمل دے په دې دفترکښې ما د اصلي نسخې نومره په ټول متن کښې ونه ساتله شوه. صرف ددغه دفتر د ړومبي او آخرنۍ نومرې مې ضبطې کړې دي. څو لوستونکي ته ښکاره وي چې دا دفتر د خطي نسخې په کوم ځ کښې پيل او په کوم ځ کښې پاے ته رسيدلے دے.

په دې دفترکښې موځکه دا نومره په ټول دفترکښې ونه ساتله شوه. چې ما دا دفتر د اصلي خطي نسخې د ترديف مطابق مرې نبود. بلکې له او سنيو روشونو سره سم مې اول دا دفتر په دريو برخو ووېشه: اوله برخه د غزلياتو، دوهمه برخه د فارسي او اردو کلام او دريمه برخه د متفرقاتو. په لومړۍ برخه کښې غزلې له سره په داسې ډول رديف بندي شوې چې اساس پکښې د الفبا اصلي توري دے. د هر رديف دغزلو ترمنځ د خپل منځي ترديف خيال نه دے ساتل شوے ټولو غزلو يا غزل وشمه نظمونو ته مسلسله نومره ورکړل شوه. او هم د هر غزل د پاسه ښي خوا ته د هرې پټې دغزلو نومره او کيڼ اړخ ته دغزلو د بېتونو شمېر په دې ډول دد ›› قوسونو کښې ښوول شوے دے. دغه رنګه ددې دفتر د نورو دوو برخو د پاڼکو پر سر ښي خوا ته د هماغې ټاکلې برخې دپاڼکو شمېر او کيڼ اړخ ته د بېتونو شمېر په ليندۀکيو کښې ښوول شوے دے.

**ددې متن دتصحيح روش :-** په متن پوهنه کښې دتصحيح درې ډوله روشونه باب دي (٦٦) چې هر ډول يې د متن د نسخو لړ والي او ډېر والي او هم د نسخوکيفي خصوصياتو ته په پاملرنه غوره کېږي.

که د متن نسخه واحده وي. نو د متن پوهنې د ميتود ولوژي. د اساساتو له مخې چې دکوم روش پر اساس ددغسې متن دتصحيح عمليه سرته رسي. دتصحيح دې عمليې ته قياسي تصحيح وايي. دغه دا زکه د متن نسخې ډېرې خو ټولې مغشوشې

اوغلطې وي. هلته هم له دې روشه استفاده کېږي - میتود پوهان وایي. چې دیوې نسخې له څې دمتن برابرول ډېر دروند اوګران کاردے. صفحه هم چې نسخه غلطه لیکل شوي وي. او کاتب یې په لیکلو کښې اهتمام نه وي کړے (۶۷).

که چرې موږ ددیوان شمس الفلک دتصحیح روش ته نوم ټاکو. نو څنګه چې نسخه یې واحده وه. نوځکه یې دتصحیح روش قیاسي بللے شو.

دتصحیح دمسألې په ارتباط باید زهٔ داغرض هم وکړم. چې ددیوان د پښتو متن دمقابلې لپاره بله نسخه نه وه موجوده. نوځکه ما هم متن له بلې نسخې سره مقابله نهٔ کړاے شو. خو په دوهم دفتر کښې دقصیدهٔ امالي د پښتو شرحې په ترځ کښې دقصیدې عربي متن هم راوړل شوے دے.

مادغه عربي متن داسلامیه کالج په لایبریرۍ کښې ددې قصیدې له یوې بلې خوندي نسخې اوهم دملاعلي قاري هروي په شرح کښې دقصیدې له راغلي متن سره مقابله کړے دے. اختلافات مې یې په حاشیو کښې ښوولي دي او په دیوان شمس الفلک کښې دقصیدې په ضبط شوي متن کښې اصطلاحات مې ددغو دوو نورونسخو دضبطونو په مرسته دښاغلي فاضل حبیب الله رفیع په مشوره کړي دي.

۵:. د دیوان تر ترتیب اوتصحیح وروسته ما په څلورو برخوکښې د مولوي محمد رفیق پراحوالو او آثارو د شتو اسنادو په استناد یوه مقدمه هم ولیکله. چې ددې متن په پیل کښې ورسره چاپېږي.

زهٔ دانه وایم چې دامقدمه اودغه ترتیب شوے متن ګوندې جامع اوله هره اړخه بشپړ او پوره دے. ضرور به نیمګړتیاوې ولري، کمبوتې به پکښې وي. زهٔ دا اعتراف کوم چې د متن دځینو لغاتو ترڅنګه د مدارکود نشتوالي په وجه په متن کښې هم ځینې موارد داسې شته چې زهٔ خپله یې په صحت شکمن یم. په

مقدمه کښې بنايي دغسې کمبوتي وي.

خوشحاله شم چې ما دا ډېره کوچنۍ هڅه دا ده. چې ما ددې کار په بشپړتيا به کښې خپله هڅه نه ده سپمولې. هیله ده چې په آینده کښې د نورو اسنادو په پيدا کېدو سره پښتو اکېډيمي او ددې سيمې زمونږ پښتانه محققين د محمد رفيق او د ده د دغه حاضر ديوان او نورو آثارو په باب ژور تحقيقات وکړي.

ومن الله التوفيق

د ۱۹۹۳ء کال د مئ ۱۵

# حواشي او مآخذ

---


(۱) کاندید اکادمیسین پوهاند میرحسین شاه: د نورمحمد غلجي د نافع المسلمین سریزه، د کلتور دیاست کابل، ۱۳۶۳ هـ ش.

(۲) لباب المعارف العلمیه په دوو ټوکونو کښې مولوي عبدالرحیم جوړکړے دے- او د پېښور د اسلامیه کالج خطي او چاپي عمده آثار پکښې فهرست شوي دي.

(۳) مولوي عبدالرحیم: لباب المعارف العلمیه، لومړي ټوک، آګره، ۱۹۱۸ء، مطبع اخبار آګره، ۳۸۶ مخ.

(۴) رښتین، پوهاند صدیق الله: د پښتو د ادب تاریخ، پښتو ټولنه، کابل، ۱۳۲۵ هـ ش عمومي مطبعه، ۱۲۴ مخ.

(۵) جلالي - غلام جیلاني: د افغانستان ادبیات په لرغونو زمانو کښې، آریانا دایرة المعارف دریم ټوک، آریانا دایرة المعارف ټولنه، کابل، ۱۳۳۰ هـ ش، دولتي مطبعه ۵۹۱ مخ.

(۶) جلالي - غلام جیلاني: د افغانستان ادبیات په لرغونو زمانو کښې، افغانستان، آریانا دایرة-المعارف ټولنه، کابل، ۱۳۳۰ هـ ش. دولتي مطبعه، ۲۴۵ مخ.

(۷) راهي - قمر: کربښې، قند (مجله) غزل نمبر، ۱۹۵۹ء - ۶ - ۹ مخونه.

(۸) بخاري، عظیم شاه خیال: تاریخ ادبیات مسلمانان پاکستان و هند، دیارلسم ټوک، پنجاب یونیورسټي، لاهور ۱۹۷۱ء، ۱۳۴ - ۱۳۵ مخونه.

(۹) بخاري، عظیم شاه خیال: د دیوان شاه محمد خان مقدمه، پښتو اکېډمي پېښور، جدون پرېس، ۱۶، ۱۷ مخونه.

(۱۰) رفيع، حبيب الله : ادبي ستوري، لومړے ټوک، پښتو ټولنه، کابل، ۱۳۵۳ هـ ش، دولتي مطبعه ۱۳۹ - ۱۴۰ مخونه.

(۱۱) هېواد مل، زلمے : فرهنګ زبان و ادبيات پښتو، لومړے ټوک د تأليف او ترجمې رياست، کابل ۱۳۵٦ هـ ش، د ښووني او روزني مطبعه، ۴۴۲ مخ.

(۱۲) محمد رفيق اکبر پوری: ديوان شمس الفلک، خطي د ۱۹۱۹ء کال ليک، د اسلاميه کالج پېښور نسخه. ۳۵۵ مخ.

(۱۳) تشد، غزل نمبر، ٦ مخ

(۱۴) صابري، محمد شفيع : شخصيات سرحد، يونيورسټي بک ايجنسي، پېښور (دچاپ کال نه لري) ۱۱۳۲ مخ.

(۱۵) ديوان شمس الفلک، (خطي)، ۳٦۴ مخ.

(۱٦) ديوان شمس الفلک، ۳٦۱ مخ

(۱۷) تاريخ ادبيات مسلمان پاکستان وهند ج ۱۳، ۱۳۴ مخ.

(۱۸) هېواد مل، زلمی: بېديا نی کلونه، د افغانستان د علوموا کاډيمی، کابل، ۱۳٦۲ هـ ش، د ښووني او روزني مطبعه، ۲۰٦ مخ.

(۱۹) هوتک، محمد : پټه خزانه، عکسي چاپ، د اطلاعاتو او کلتور وزارت، کابل، ۱۳۵۴ هـ ش دولتي مطبعه، ۱۱۲ مخ.

(۲۰) هېواد مل، زلمی: د تذکرة الشعراء تعليقات، کابل ۱۳٦٦ هـ ش، کابل، دولتي مطبعه ۳۰۹ مخ.

(۲۱) هاشمي، عبدالقدوس: تقويم تاريخي، ادارهٔ تحقيقات، اسلام آباد، ۱۹۸۸ء، ادارهٔ تحقيقات اسلامی پرس، ۳۳۰ مخ.

(۲۲) کمالي، محمد اسلم خان: منتخبات کمالی، خليق سنز پرنټنګ پرېس، پشاور (د چاپ کال نه لري) ۱۲۴ مخ.

(۲۳) مولوي عبدالرحیم : لباب المعارف العلمیه ، دوهم ټوک ، لاهور ، ۱۳۵۷ هـ ق ، فیروز پرنټنګ ورکس ۵۸ مخ .

(۲۴) رفیع ، حبیب الله : ادبي ستوري ، دوهم ټوک دکلتور او هنر ریاست ، کابل ، ۱۳۵۸ هـ ش دولتي مطبعه ۳۷۹ مخ .

(۲۵) محمد رفیق ؛ شمع الهدایت ، لاهور ۱۳۰۵ هـ ق ، مطبع ، مارننګ ستار ، ۳۳ مخ .

(۲۶) هیوادمل ، زلمی ؛ فرهنګ ادبیات پښتو ، جلد دوم ، کمیتهٔ دولتی طبع ونشر ، کابل ، ۱۳۶۵ هـ ش ، مطبعه دولتي ۷۵ مخ .

(۲۷) محمد رفیق : شمس الهدایت ، لاهور ، ۱۳۰۵ هـ ق مارننګ ستار پریس ، ۴۰ مخ .

(۲۸) یوسفي ، الله بخش : یوسفزی افغان ، ګلورم چاپ ، کراچی ، ۱۹۷۳ء شریف آرټس پریس ۳۰۷ مخ .

(۲۹) محمد رفیق ؛ ترجمهٔ شاهنامهٔ فردوسی ، خطي ، پښتو اکېډیمي ، پېښور یونیورستي ۲۱۴ مخ .

(۳۰) پښتو (رساله) پښتو اکېډیمي ، پېښور یونیورستي ، ۱ - ۲ ګڼه ، ۱۹۶۱ء کال ، ۳۴ - ۳۹ مخونه .

(۳۱) فردوسي ؛ شاهنامه ، کتاب سوم ، جلد دوم به کوشش ژول مول ، انتشارات وآموزش انقلاب اسلامي - ۱۳۶۹ هـ ش ، چاپ شرکت افست ، ص ۶۹۰ .

(۳۲) رفیع ، حبیب الله : پښتو پانګه دوهم ټوک ، پښتو ټولنه ، کابل ۱۳۵۶ هـ ش کال ، دولتي مطبعه ۹۷۷ مخ .

(۳۳) رفیع حبیب الله ؛ پښتوکتاب ښود ، د بیهقي کتاب خپرولو مؤسسه کابل ، ۱۳۵۶ هـ ش ، دولتي مطبعه ، ۲۲۱ مخ .

(۳۴) مشتري ، عبدالقدیر ؛ فهرست نسخ خطي پشتوی آرشیف ملی ، آرسیف ملی افغانستان ، ۱۳۶۵ هـ ش ، مطبعه دولتی ص ص ۷۷ - ۷۸ .

(۳۵) هېوادمل، زلمی: هشتصد سال نثر پښتو، سپېدې (مجله) ۱۳ گڼه، ۱۹۹۲ء، ۲۲ مخ.

(۳٦) رشاد، پوهاند عبدالشکور: د مخارج الحروف تعلیقات، دافغانستان دعلومو اکاډیمي، کابل ۱۳۵۹هش، دولتي مطبعه ۳۵ مخ.

(۳۷) ادبي ستوري ۲/ ۳۷۹

(۳۸) حبیبي، پوهاند عبدالحی: پښتانه شعراء، لومړی ټوک، پښتو ټولنه، کابل ۱۳۲۰هش عمومي مطبعه ۲۸۵ - ۲۸۷ مخونه.

(۳۹) دا سنه په پښتانهٔ شعراء کښې ۱۱۸۵ ه ق ده (۲۸۵ مخ) په قند کښې په ناسم ډول راغلې ده.

(۴۰) محمد رفیق: قواعدالقرآن (خطي) د پېښور یونیورسټۍ پښتو اکېډیمۍ نسخه (۲۹۳ نمبر) ۱۳ مخ.

(۴۱) هېوادمل، زلمی: دپښتو د ادبي تاریخ د منابعو پېژندنه او ارزیابي، دافغانستان دعلومو اکاډیمي، ۱۳٦۷هش، ۲۸۱، ۲۸۳ مخونه.

(۴۲) قند، غزل نمبر ۸۳ مخ.

(۴۳) طایر، پروفیسر محمد نوازخان: روهي ادب، دویم چاپ، پښتو اکېډیمي، پېښور جدون پریس، ۱۹۸۹ء، ۵۳۰ مخ.

(۴۴) خانلري کیا، ډاکټر زهرا، فرهنگ ادبیات فارسي، تهران، ایران، چاپ سوم، ۱۳٦٦ هش ص ۳۸۲ - ۳۸۳.

(۴۵) شیدا، کاظم خان: دیوان کاظم خان شیدا، دهمیش خلیل په زیار، دوهم چاپ، پښتو ادبي مرکز سرای نورنگ، ۱۹۹۱ء، ۱ مخ.

(۴٦) آزاد، مولوي محمد حسین: نگارستان فارس، په حواله د اردو دایرهٔ معارف اسلامیه ج ۱۲، دانشگاه پنجاب، ۱۹۷۳ء، ٦۳۲ مخ.

(۴۷) پنج گنج، پند نامه، نوراني کتب خانه، قصه خواني پېښور، (دچاپ کال نهٔ لري) ۳۰ - ۳۱ مخونه.

اولسي داستانونو ته بدله ویل کېږي (د شیخ بستان بړیڅ بدله، شیخ بستان، ۱۳۶۰ هـ ش کال چاپ)

(۵۹) شاه افضل (کاتب) گلزار مدینه، مطبع کارونېشن، لاهور، ۱۳۳۵ هـ ق، ۳۶ مخ.

(۶۰) د تشریف ناې دغه خطي نسخه دري کاله دمخه ما سرمحقق عبدالله بختاني ته سپارلې وه، هغه دغه نسخه عطار ته له منسوبې پند نامې سره مقابله کړې ده. او په کابل نومې رساله کښې يې يو مقاله پرچاپ کړې ده.

(۶۱) درویزه (اخوند) مخزن الاسلام، پښتو اکېډيمي، جدون پریس پېښور، ۱۹۸۹ م، ۲ - ۸ مخونه.

(۶۲) ډاکټر سید جعفر سجادي: فرهنگ لغات واصطلاحات و تعبیرات عرفاني، کتابخانه ظهوري، تهران ۱۳۶۲ هـ ش، ص ص ۱۱۳، ۱۸۲، ۲۵۲، ۳۵۹.

(۶۳) روهي، سرمحقق محمد صديق: فوکلور پېژندنه، د افغانستان د علومو اکاډمي، کابل، دولتي مطبعه، ۱۳۶۵ هـ ش، ۷۱ مخ.

(۶۴) راعي، قیام الدین: نظریات ادبي، پوهنتون کابل، مطبعهٔ پوهنتون، ۱۳۵۸ هـ ش، ص ۱۱۸.

(۶۵) ختک، ډاکټر راج ولي شاه: پښتو نوې املا، پښتو اکېډيمي، حمیدیه پریس، پېښور ۱۹۹۱ م.

(۶۶) هېوادمل، زلمی: فرهنگ ادبیات پښتو، جلد سوم، کمیتهٔ دولتي طبع ونشر، کابل، مطبعهٔ دولتي ۱۳۶۶ هـ ش

(۶۷) هېوادمل، زلمی: دمتن څېړنې میتودولوژي، د افغانستان د علومو اکاډمي، د ښوونې او روزنې مطبعه، کابل، ۱۳۶۹ هـ ش.

(۴۸) تمثیل : مثال راوړلو او تشبیه کولو ته وایي او هم حدیث او داستان دمثل په ډول بیانول هم تمثیل دے.

(۴۹) رفیع ، حبیب الله: زرینې ځانګې ، پښتو ټولنه ، کابل ، دولتي مطبعه ، ۱۳۶۰ هـ ش ، ۵۹ مخ .

(۵۰) فروزانفر ، بدیع الزمان : شرح احوال و نقد و تحلیل آثار شیخ فرید الدین محمد عطار نیشا پوری ، چاپخانهٔ دانشگاه تهران ، ایران ، ۱۳۴۰ هـ ش ، ص ۲۷ .

(۵۱) ملا علی قاری هروی : شرح الامالی ، مطبع حیدری ، استانبول ، ۱۲۹۵ هـ ق ، ۵۷ - ۶۰ مخونه .

(۵۲) نوشهروي ، عبدالرؤف ، بحرالانوار ، پېښور ، ۱۳۸۴ هـ ق ، ۲۱۳ مخ ، دڅوکنو میان عمرؒ د ۵۹ مخ په حواله د ۱۳۶۰ هـ ش کال دکابل چاپ .

(۵۳) رشاد ، پوهاند عبدالشکور : دګلشن روه د دریم چاپ مقدمه ، د اطلاعاتو او کلتور وزارت ، کابل ، دولتي مطبعه ۱۳۵۶ هـ ش ، ۹۳ مخ .

(۵۴) احمد ، ډاکټر ظهور الدین : پاکستان میں فارسی ادب کی تاریخ ، مجلس ترقی ادب ، زرین آرټ پریس لاهور ۱۹۸۴ء ص ۵۰۰ .

(۵۵) مولوي ، سید روح الله ، شرح قصیدة الامالي ، اسلامی کتب خانه ، پېښور ، ۱۳۹۵ هـ ق ۱۳ مخ .

(۵۶) موتمن ، زین العابدین ، تحول شعر پارسی ، تهران ، ۱۳۳۹ هـ ش ، ۵۲ ، ۵۷ مخونه

(۵۷) حبیبی ، پوهاند عبدالحی : دپښتو ادب په تاریخ کښې قصیده ، پښتو ټولنه ، کابل دولتي مطبعه ، ۱۳۵۷ هـ ش ، ۱ - ۸ مخونه .

(۵۸) بدله : د افغانستان په جنوب غربي ، شرقي او شمال شرقي او ځینو مرکزي سیمو کښې هر ډول سندروته بدلې وایي . مګر د کندهار ، هلمند ، روزګان ، زابل او داوسني بلوچستان په ځینو سیمو کښې عام خلق هغو اولسي سندروته هم بدلې وایي چې ځینې یې ملي غزل بولي ، د سپرو بدلو او صحرایي بدلو نومونې په دوۍ کښې عامې دي . د صوبه سرحد په سیمو کښې

# دیوان شمس الفلک

## دري دفتره

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

---

[۱] نخلبند[1] ددې بستان دمعاني او نقشبند ددې گلزارجاودانې پر صفحهٔ رنگین مصفا تر ماء معین[2] پر قلم اعجاز الرقم چې يو غصن[3] دےلهٔ اغصانو د حيات او رايت[4] دے، د علو پس لهٔ ممات[5]. پهٔ دا رنگ عرض پر[6] داز شو. که اګرچې پر بساط[7] د نشاط[8] د پښاور شاعران دلکش او سحبان[9] منش

[۲]

ډېر پهٔ اشعارو د ژبې د پښتو پېدا دي چې پهٔ کمال خوش نفسي او زبان آوري. او پهٔ نغمهٔ د داؤد الحاني[10] سره گل او بلبل پهٔ ځان پهٔ دل شيدا کوي او اداکوي او طوطي فصيح زبان د آفاق وته الفاظ شيرين نمکين پهٔ مرآت[11] بابرکات د سحر سازي او خوش طرازي[12] کښې پېدا کوي. چې پهٔ محفل آرايي او کاريگري او تلازمات او استعارات او تشبيهات د هغو زېور او خلخال[13] زرعين عروس د سخنداني وته اغوستۀ[14] دے. لهٔ دې جهت دا فقير حقير کم تقرير معذرت ددې نکتې پېش کوي. چې پهٔ ذهن او درجات عليه د دوئي کښې يوه گلدسته گلشن شاهي لره ور وړل دي. يا پهٔ ولايت د هند کښې فِلفِل[15] خرڅول دي.

چشم د امېد لهٔ عين تلطف د کريمانو دا رنګ لرم چې پهٔ قبول ددې معذرت سره عيب پوش زما شي. لکه دا رنګ قول د پارسي د شاعر دے. بيت!

مريز آبروي کسی رابه کوے

که دهرت نه ريز د به شهر آبروے

او پس د نسخ[16] د غلطی نه پهٔ قلم سبز رقم د تصحيح سره زينت ورو بخښي[17] وبالله التَّوْفِيْق.

* * *

## شمس الفلک

# دفتر اول

بِسْمِ اللّٰه الرحمٰن الرحیم

---

[۳] چې زبان مې یې شجرکړ د توحید    پهٔ تجید[۱۸] یې شو ګواه بارِ د تحمید[۱۹]

دردانه چې د خرد نهٔ وه موجوده    موجودات نهٔ وو خبر لهٔ خپل بهبوده

چې دانه یې د شرف پهٔ صدف کښېوه    شب چراغ[۲۰] د هدایت تجلي پر ښوه

دوباره ترې د الست[۲۱] جواب طلب شو    د دانش او د بینش روان مکتب شو

پهٔ اول روح د سید المرسلین شو    مهیمن[۲۲] ته پهٔ تعظیم او پهٔ تمکین شو

د ازل د باغ بلبل هسې ګویا شهٔ    چې ګلبن پرې د مقصد غنچه کشا شهٔ

تلامیذ[۲۳] یې شو کونږ پهٔ دا سبق کښې    د بلیٰ[۲۴] سبق یې لوست پهٔ دا ورق کښې

پهٔ دا هسې رنګ بلیٰ یې داره خپل کړهٔ    هم لهٔ خپلو نعماتو یې واصل کړهٔ

هم یې ورکړله وعده د خپل دیدار    مقید یې د بلیٰ شو دستګار[۲۵]

العیاذ[۲۶] چې سرکشان لهٔ دې بلیٰ شو    الامان تل یې پهٔ قهر مبتلا شو

پهٔ خاطر د رحمة للعالمین    پهٔ خاطر هم د شفیع المذنبین[۲۷]

پهٔ خاطر د بشیر او د نذیر    چې یې ورکړ د لولاک تاج و سریر[۲۸]

[۴] تر ابده پرې سلام و صلوٰة اوسه    د غلام ضعیف پرې لب د حیوٰة اوسه

رفاقت د محمد دا لهٔ رفیق

چې شي سپه قِلا ده[۲۹] دار ددې شفیق

# در توحید

چې خطاب یې "قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ" دے — بې نیازه له انباز[30] ازل ابد دے

مستغنیٰ دے شریک نهٔ لري پهٔ ذات کښې — نهٔ همال یې پهٔ تکمیل شته د صفات کښې

مبرا دے له کل شکه له کل عیبه — یګانه واحد احد دے بلا ریبه[31]

نه پهٔ دهٔ باندې تکلیف د دوران شته دے — نه پهٔ دهٔ باندې ګردش د زمان شته دے

نهٔ مادر نهٔ یې پدر نهٔ یې فرزند شته — نه پهٔ دهٔ باندې حساب د چون و چند شته

نهٔ دے جسم نهٔ جوهر نهٔ مرکب دے — بې له کامه بې زبانه ګویا رب دے

نهٔ آواز یې د کلام نهٔ یې حروف شته — نهٔ پهٔ دهٔ باندې هیڅ راز چرته ملفوف[32] شته

بې له غوږو دے پهٔ هسې شان سمیع[33] دے — د خرد پهٔ کارخانه باندې رفیع[34] دے

بې له سترګو بصارت لري سبحان — چې د ده دے له عقله د انسان

صفتونه د یکتا داره یکتا دي — چې ګڼې د دهٔ هستا[35] هغه خطا دي

نهٔ یې ځائے نهٔ یې مکان شته نهٔ یې برید[36] — دے قریب موږ ته له حبل د ورید[37]

پهٔ هر ځائے باندې حاضر دے هم ناظر دے — د خسته دو ګنهګارو دے غافر[38] دے

لهٔ دې هسې ناظره پرې تکلیف نشته — د دې هسې حاضره یې توصیف نشته

پر هغه چې پهٔ هر ځا دے دے شفیق

پرې صلوٰة کړي هم سلام محمد رفیق

# در قربت باریتعالیٰ عَزَّ اِسْمُهٗ

[۵] پهٔ قدرت یې هفت طباق[39] رخشنده دي — پهٔ پرګار د هوا باندې ګردنده[40] دي

بې ستونه بې تکیې استوار کړي — هم پهٔ خپله دایره برقرار کړي

مزين شو لاجور دي اووهٔ طباق    نمکخوار د هر طبق اووهٔ آفاق

دقدرت پهٔ دردانه چې يې نظر کړ    هم لهٔ جوشه کف د دوئي يې رابهر کړ

مرتفع اووهٔ تختې يې دغه دود کړ    هم پهٔ شان د لاجوردو يې کبود کړ[۴۱]

شوې لهٔ کف اووهٔ تختې دغبرا مسازې[۴۲]    پهٔ مغاك[۴۳] باندې خوشو تختې خوشطرازې

مصابيح[۴۴] يې سياره پهٔ فلك بل کړهٔ    پهٔ شعاع يې جهانونه پرې پرغل کړهٔ

جواهر يې پرې دوه نورکښېنوهٔ فيروزه    يو پهٔ ورځ شو او دوئم شو شب افروزه

پهٔ نامه باندې يو شمس بل قمر دے    رڼا يې لره يې وقت مقرر دے

پهٔ هوا کښې يې پيدا کړهٔ دريا بونه    هم پيدا يې پهٔ آسمان کښې کړهٔ سيندونه

د ملکو فوج پرې هسې لوئي افراط دے    چې حيران پهٔ ځا يې دوسم الخياط[۴۵] دے

ځوک ولاړ دي پهٔ قيام ځوک پهٔ رکوع دي    ځوک پراته[۴۶] دي پهٔ سجود ځوک پهٔ خشوع دي

هم پيدا يې پرې دا رنګ لوح وقلم کړ    کاروبار د عالمينو يې پرې رسم کړ

هم خاصه خلور ملک پکښې اعلیٰ دي    مقرب هم دهغه حضرت والا دي

پهٔ اووم آسمان پيدا شوو جنتونه    پکښې جوړ يې د دوستانو کړه ځايونه

خشت پهٔ خشت يې ديوالونه نقره زر کړه    هم لهٔ حده د بلند يې بلند تر کړه

تر مرآت يې مصفیٰ کړه سر د سره    چې د ننه ئې ليدهٔ شي لهٔ بهره

هم يې زمکه شوه لهٔ سيمو[۴۷] مشک يې خاوره    سنګريزه يې مرواريد دي لهٔ ما واوره

نيم د سپينو نيم د سرو يې هر شجر دے    ځوالوانه[۴۸] پهٔ هر ښاخ کښې يې ثمر دے

هر ثمر يې هم پهٔ ځو قسمه لذيذ دے    چې پيدا پکښې پهٔ ځواسمه لذيذ دے

دې بڅوڼې[۴۹] پهٔ هوا شاخوني[۵۰] کوز دي    چې رضا د تکاليفو لهٔ رموز دي

لهٔ هر قسم نه طيور[۵۱] پکښې زرين دي    منقش[۵۲] پهٔ ښه صورت پهٔ ښه تزئين دي

هسې رنګ پهٔ خوشنوا سره ګويان دي    پهٔ تکريم او پهٔ ثناد رب سبحان دي

که يوه نغمه يې راشي پهٔ جهان کښې    عاشقان به د رب وسوځي دا آن کښې

[٦] پهٔ جدول يې مسلسل خيابانونه    قسم قسم لون لون پکښې ګلونه

که پرتو یې له ورق شي د ګلاب[۵۳] | د نوري جلوه به یو سي له آفتاب

په جلوه په کرشمه یې ښښتي ګل دے[۵۴] | په شعاع کښې نوراني له یوه بل دے

که سیمین[۵۵] دے که سمن[۵۶] دے که سوسن دے | یو له بله منجلي[۵۷] احسن احسن[۵۸] دے

شقایق[۵۹] یې جام دے په سر نیولے | په لقا[۶۰] یې بلبل مست دے پریوتلے

هسې رنګ یې د نرګس سترګې آبدارې | پټ مرده په مېو مستې ناغه دارې

پېچېده زلفې مشکینې د سنبلو | دې پرتې حلقه حلقه په مخ د ګلو

هر یو ګل یې بې حسابه بې شمار دے | د یو حسن افزونتي تر بل هزار دے

سرو ناز سروسهي[۶۱] پکښې ولاړې | یو تر بله ښائسته نوې یې غاړې

هر طعام هسې لذیذ پکښې معلوم دے | چې د عقل له ادراک څخه مکتوم[۶۲] دے

نوراني څلور ولې پکښې جریان کا | چې په څنګ به یې سرسته بهشتیان کا

له اوبو روښه والا بله د شیر ده | هم د شهد و د شرابو په تطهیر[۶۳] ده

بل له نور پکښې پیدا حوض کوثر[۶۴] دے | په بهشت کښې یې قاسم[۶۵] نبي سرور دے

بهشتیان چې یو څڅه[۶۶] ورڅنې نوش کا | د بهشت نعمت به واړه فراموش کا

پکښې حورې بې حسابه نور آفریدې[۶۷] | یو تر بله په تحسین باندې مزیدې

[۷] چې کاکل د مخ په ګل باندې پېچ پېچ کا | د مومن ته به انعام د جنت هېڅ کا

پټ مرده سترګې خمارې چې بالا کا | په غمزه به مومنان واله شیدا[۶۸] کا

هر ماڼۍ یې اراسته په هسې شان ده | چې وتلې له بیانه لا بیان ده

مروارید و نه پیدا پکښې تختونه | پرې پراته د استبرق[۶۹] دي فرشونه

هر مومن له به رب درکړي اووه سرایه | په لویې یې څوک خبر دي بې له خدایه

اعلی تر ترې ښه دیدار د پاک سبحان دے | له مومنه عهد شوے په فرقان دے

صفتونه د جنت دي بې حسابه | پوره نه شي له قصیر بنده ګیا به

ولې موږه نمونه د خردار[۷۰] بویه | زر نکتې کړي نمایش له یوه مویه

الهي د خپل حبیب له برکته | هم ددې له نیک سیرته لوے عزته

ګردنۍ (۱) په ګردن غواړم له تا لويه — هر يو سپي ته نشانه د خاوند بويه

په عزت د محمد له «رفيق» خواره — رفاقت د احمد وا نخلې غفاره

که دده د رفاقت نه يم لايق
له کمتره (۲) سپو دده يې کړې لاحق (۳)

# درقدرت باريتعالیٰ عَزَّ اِسْمُهٗ

---

هغه کف چې شوله دود په مغاک پاتې — تر صفا اوده تختې شولې اثباتې

[۸] په پرونبي تخته آباد اوده اقليمه — زېبنده شوله حکمته د حکيمه

دغه داړه مهصافي د دوست دپاره — چې فراش (۴) دقدر فرش کړه په يکباره

نبکته پورته يې فرشونه آراسته کړه — مزين يې د حکمت په ګلدسته کړه

نعمتو نه يکښې کېښوده شوه بې شماره — شوه رنګ رنګ (۵) د عنايت خوانچه طياره

دغه داړه ضيافت د محمد وه — چې دده دپاره کړه پاک احد وه

پسې جوړې (۶) کو کالبوت (۷) د بابادم — هم يې ده کړ په خپل فضل مکرم

په لويې يې د هر چا نه بالاتر کړ — دا عزت يې د احمد خيرالبشر کړ

هم خطاب يې پرې د خپل خليفه وکړ — په دا هسې خلافت يې آدم ښه کړ

پس ملکو يې روان تخت روان کړ — چې داخل يې د بهشت په باغستان کړ

دوباره چې په بهشت کښې شو بې امره — د خطا و د نسيان (۸) له غافل خبره

دا بهرون يې له بهشته کړو دنيا ته — له هغه تخت زرين تحت الثرى (۹) ته

دوباره يې په خاطر د دوست بخښه — هم په خپل خاصه خلعت (۱۰) يې ونمانځه

هغه نور چې د په دُر نوراني کښې — خالق کېښود د آدم په پېشاني کښې

چې دا نور يې په تندي شو ځلېدونکی — د آدم و ته هر څه شو سجده کړونکي

هم روحونو وعده دکړه یو له بله      په دامن[81] د پاکه خښه شوه منګوله
پښت په پښت د دغه نور تر زیږیدلو      له بې ځایه خرکانو نه سا تلنو
دغه نور چې په هر چا کښې درخشان و      هغه کس به شهنشاه دخپل زمان و
[9] کانو بوټو به د هغه مدحې کړلې      هم بې ونې[82] استقبال نه ورغللې
بې قدمه په پښو به وې روانې      په صلوٰة او په سلام به وې ګویانې
ترهغه چې په دنیا وجود دا نور شو      تر قیامته جهان واړه پرې معمور شو
پس آباد په دا زمین ربع مسکون شه      په اووه اقلیمه اسم یې نمون شه
ماسوایې بعض خطه[83] شو ځنګلو نه      او په بعض احاطه شو دریابونه
او په بعض دقیقه باندې جبال شو      او په بعضو یې دشتونه مالامال شو
بعض ځمکه چراګاه[84] او مرغزار شو      چې روان د چرنده وو باندې کار شو
بعضې بعضې ارم[85] طوره باغستان شو      د قمرې او د بلبل خاصه مکان شو
یاسمین و نسترن ګل د داؤد شه      بعضې ګل د نور پرس[86] پکښې موجود شه
هم ګلونه د ګلاب پکښې څو رنګ شو      ځینې خاندې ځینې بند په غنچه تنګ شو
ځینې شاه سپرغم[87] ځینې سوسن شو      پرې شاخونه د سنبل شکن شکن شو
بېد مشک[88] که سفیدار دے که چنار دے      سم قامت ولاړ په سر د جویبار دے
پکښې سرو آراسته په څو عنوانو      شوې ولاړې، لکه قد د محبوبانو
هم اشجار پکښې دسیب و د انار شو      پېچ در پېچ پکښې تاکونه انګوردار شو
بعضې ونه شفتالو بعضې بهي شوه      ناشپاتې ورغځنه[89] لا په فربهي[90] شوه
[10] د انګورو هر خوشه په منځ د سورې      ګویا عقد ثریا[91] معلق بنورې
د منځې هره دانه ملګونه غوره      لکه زنه د معشوق دې ناز پروره
هر انار د افانینو[92] په منګولو      لکه دیې دوشیزه[93] پستان د جلو
هم او به یې د انهارو مسلسل ځي      لکه زلفې دخوبانو دل په دل ځي
په اوبو کښې یې د بېد د ورق سورې      په چشمه کښې د زلال[94] کبوړے[95] بنورې

په خو رنګ پکښې طیور نوا ګویان شو[96] په سحر په نمانځګی ثنا خوانان شو

ځینې ښاخ کښې سکونت مرغ زرین کا د خالق په موجوداتو آفرین کا

ځینې ښاخ کښې سکونت کوي طاووس په جلوه په کرشمه ، لکه عروس

سره مښوکه شین لباس ولاړ په ښاخ کښې کړي طوطي حمد و ثنا په بلند کاخ[97] کښې

هم یو را یې د ګلونو په کالو کښې لکه نښتې[98] حبشی په دوشالو کښې

سرې منګولې سره چشمان په کرشمه کښې زرکې عیش کوي د ګلو په خیمه کښې

قمري طوق د بندګۍ اېښې په غاړه په ګلبن د ګل ثنا کړي پرې ولاړه

بلبل پروت دے مستغرق په منځ د ګلو لکه پروت په میخانه مُسک[99] د ملو

په هزار ژبې ثنا هزار داستان[100] کا ساکنان پرې د چمن واړه مستان کا

د هر ګل جدا جامه جدا جلوه ده هر ورق له سبزه سره ښېله ښېوه ده

[11] هر ګیاه چې په ریاض د باغ[101] پیدا ده تازه ګي یې په چمن جدا جدا ده

په دفتر کښې د بهار نکتې باریکې دي بېشماره وحدهٗ لاشریکي[102]

دلې نشته دے امکان د هیڅ انسان چې به ځکه کاندي دنیم د ښیته بیان

چې چې و نغښت[103] د بهار خرم بساط په خزان به د بلبل ورک کړم نشاط

هر یو څیز ته چې حاصل حد د کمال شي دا دستور دے سرنګون بیا په زوال شي

بې له تا نه چې ته حق یې لایزال د قدرت پیاله دې تل ده مالا مال

موجودات چې د کونینو په چارسو دي

نورځهٗ نشته لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ دي

په بهار کښې چې چمن جنت نظیر شي په نسیم یې کل جهان مښک و عبیر[104] شي

ناګهانه[105] پرې محصل باد خزان شي پرې تاراج د بلبلانو خانمان[106] شي

له تا نجو نه شي رینبه کلګه[107] د ګلو لکه تورې شي په سبزه رشحې د ملو

د سنبلو تورې زلفې خاکستر شي تر ګلخنه[108] د چمن روضه ابتر شي

هم صفه ګیاه چې وي خوشبوله مشکه په مرمر شي هم په خپل مرقد کښې خشکه

هسې تو ے واړه اوراق شي د اشجارو[109] لکه توې شي په توبه گناه د خوارو

ونې پاڼې شي بې برګ بې زينتــه د سرما[110] او له صرصر[111] له حرارتــه

[12] سر تر پايه بې لباسه شي بربنډې لکه لوټ شي په بلوا[112] کښې کور د کونډې

په يوه دم کښې بستان دې خارستان شي په يوه دم کښې جنت دې بيا زندان شي

واړه ستا په قدرت کيږي لاين اله نه برتر يې له قياسه له خياله

لم يزله دا هم ته يې بل څوک نه کا

ستا په حکم به څوک چون و چراو کا

کله پورته په جهان کښې ظلمات[113] کې د انسان د بصارت له چشم زيات[114] کې

بيا له هسې ظلماته پيدا نور کړې چې خلقت پرې د جهان واړه مسرور کړې

کله پرېباسې په نور سايه د ابر کله ته له پيغمبر پيدا کړې گبر

هم د گبرو نه پيدا پيغمبران کړې په دوستۍ يې رهنما د کل جهان کړې

د مرده له آبستن[115] ژوندے وزيږي اے خالقه واړه ستا په قدرت کيږي

د ژوندي له آبستن پيدا مرده کړې له ظهوره باندې باد د خاک توده کړې

له مشرقه نور کړې پورته و آسمان ته بيا يې کوز کړې[116] د مغرب وخاص مکان ته

د قدرت کمال دې وته له حسابه څه به دبنگي[117] يو عاجز بنده کميابه

و ليکن په خپل طاقت بنده نيولے د دې بحر عمق چا نه دے موندلے

[13] چې خبر نه دے په تلل د خپل نفس ستا قدرت به څه حساب کا مغه کس

ستا قدرت وته له حده د کمال دے د خرد[118] مرغ يې له سير شکسته بال دے

په يوه نقطه د کن شوه فيکون[119] نابينا دي ترې د عقل دهنمون[120]

چې قلم يې شو عاجزه له شماره څکه پرېوتو ستومانه څيگر پاره

اے خاونده په خاطر د صغه پاک چې بادشاه د تاج و تخت دے د لولاک

افريد دې کړه کونين د ده له نوره هم په خپل خلعت د نور دې کړه مسرور

په احمد او په محمود په محمد په فرقان دې معزز کړه هم امجد[121]

تحایف د ده هزار صلوٰة سلام — وي پهٔ دهٔ هم یې پهٔ آل اصحاب تمام

خوار بنده محمد رفیق هومره خوشنود کړه
چې یې سپېره قلا ده دارد خېل محمود کړه

## در ستایش و آفرینش[۱۲۲] و جلال و کبریایي[۱۲۳] باریتعالیٰ عزاسمه[۱۲۴]

---

[۱۴] ستائش کوم د هغې خالق پاک — چې دانا کړي هم بینا کړي موټه خاک
د میږي په جنګ هلاک کړي نره شېر — هم کړي ماشه پهٔ هاتي جنګي دلېر
تېغون[۱۲۵] باز ورکړي پهٔ جنګ د کبوتره — ماته یوسي لنګ شغال لهٔ غضنفره[۱۲۶]
د زمین اوهٔ طباق پهٔ لړ و بر کښې — دهٔ ورکړي دي د ماشي پهٔ یو پر کښې
بیا یې ماشه پر هوا دے و دروے — پر هوا هومره آفاق[۱۲۷] دے چا لیدلے
د باران قطره دننه پهٔ صدف کا — بیا ترې جوړه مرغلره د شرف کا
د حکمت هسې آثار پکښې ببدارکا[۱۲۸] — چې شاهان د زمانې یې خریدار کا
پهٔ قدرت لعل پیدا کاندي لهٔ سنګه — پکښې آب د شرف کښېږدي پهٔ څو رنګه
سره غنچه د ګل پیدا لهٔ سبزه شاخ کا — د هغه شاخ ددې د زیب و زینت کاخ[۱۲۹] کا

هم چینجي پیدا پهٔ کاږو کښې مطلق کا
پهٔ قدرت سره خوراک یې شین ورق کا

د طیورو[۱۳۰] پهٔ هوا کښې روزي ګرده — زمونږ هسې رنګ خالق غالب اکبر دے
[۱۵] هم دهقان تخم لهٔ خاکه آګنده کا — پهٔ قدرت کامله یې رویېده کا
پهٔ دا رنګ رزق بنده له ورکوینه — پهٔ تقسیم کښې دازل چې یې څهٔ وینه
نهٔ پوهېږو څهٔ حکمت یې پرې درون دے — چې پهٔ دا پورې مشتق زمونږ ژوندون دے
هم او بهٔ یې پهٔ دنیا کښې راپیدا کړي — چې لهٔ داړو جواهرو یې صفا کړي

بې جوسې[۱۳۱] او بې لهٔ روحه[۱۳۲] د دوئ يون دے — چې ذيروح د دې جهان لوه ډونددون دے

د صفرا لښکر[۱۳۳] چې تاخت وکړي چا باندې — د اوبو پهٔ تېغ يې قتل عالم کاندې

هم نبات ارامي چې مستسقي[۱۳۴] شي — جام د آب يې استسقا لره[۱۳۵] ساقي شي

بې جسده وزن د پر لري بېښا نه — ثقالت[۱۳۶] يې د پراکش له هر اشيا نه

نهٔ پوهېږو چې داخهٔ جوهر يې کيت دے — چې پهٔ دوئ هم داکش ښيږونو زيست دے

ورحم وته له صلبه نطفه[۱۳۷] را شي — پهٔ لذت د جانبينو حق روا شي

لهٔ نطفې نهٔ يې کړي خون رګ وپوستونه — هم پکښې شي رويېده[۱۳۸] غوښې هډونه

سرتهٔ پايه يو جسم لطيف صورت شي — آراسته او پېراسته پهٔ څهٔ زينت شي

[١٦] پهٔ قدرت يې بيا پهٔ روح سره زنده کا — څو ګردشه باندې چرخ ګردنده کا

بيالهٔ هسې تنګ مکان يې رابهر کا

چې حېران پرې د خرد راى البصر کا

ځينې ځينې پهٔ دنيا کښې انبياء کړي — ځينې ځينې لهٔ وليانو اولياء کړي

ځينې غوث ځينې اقطاب[۱۳۹] ځينې ابدال[۱۴۰] کا — پهٔ دنيا کښې يې اعلى بدر مثال[۱۴۱] کا

پهٔ چا باندې عنايت خپل صحبت کا — پهٔ دنيا عقبى يې دواړه پهٔ خلعت کا

ځينې ځينې بادشاهان کاندې د دهر — چې يې دور د سلطنت وي پهٔ هر ښهر

ځينې هسې ګدايان او ګليم پوش[۱۴۲] کا — چې شاهان يې د دربار حلقه بګوش کا

چا جامې دي پهٔ ټکله سره رنګ کړي — ګويا پرې دي د ښکو[۱۴۳] چې يې غړي

ځينې ځينې علما شو د خپل عصر — صاحبان[۱۴۴] د زمانې شو پهٔ دا حصر

ځينې ځينې عامي پاتې لا يعلم شو — د وحوشو بهائمو[۱۴۵] سره سم شو

ځينې ځينې پهٔ انکار شو کافران — الامان[۱۴۶] او الامان هم الامان

# قدرت ايزدي

[۱۷] سلسله که دې د فضل په جنبان شي    ستا په نوم[۱۴۷] بدو چې مېږے به سليمان شي

خوار ګدا په يو ساعت کښې سکندر کړې    د قيصر[۱۴۸] عزيز خطاب درلره در کړې

سکندر لکه ګدا په ديران ولې    چې حيران شي د ماښام په نوره خپلې[۱۴۹]

په طرفه[۱۵۰] کښې به کونبن[۱۵۱] زير و زبر کړې    په چا حکم د جنت په چا سقر کړې

جنتونه دې د رحم يو قطره ده    دوزخونه دې د قهر يو ذره ده

جنتونو کښې پيدا حورې غلمان دي    دوزخونو کښې پيدا لړم ماران دي

جنتونو کښې انعام د ډېر رحمت دے    جهنم کښې زبانۍ[۱۵۲] د ډېر هيبت دے[۱۵۳]

په جنت کښې عيش ژوندون[۱۵۴] دے تر ابده    د کفارو جګر خون دے تر ابده

چې دوستان صدرنشين د خلد برين کړې    دښمنان به تر ابده په سجين[۱۵۵] کړې

هر اژدر يې ډېر مهيب له عظيم غره    هر يو کنده د آتش ډېره ژوره

هر اژدر له د اور ژرندې دې پډکام کښې    پرې د لېږي کافران[۱۵۶] سحر ماښام کښې

[۱۸] د صراط په پول به کړي واړه ګذر    که امي دے که ولي که پيغمبر

که کافر دے که شقي[۱۵۷] دے که فاجر دے    په فرقان کښې يې احوال واړه ظاهر دے

صراط پول دے د دوزخ د شا د پاسه

چې پوښتنه به پرې کېږي له هر ناسه

له ويښته نه دے باريک له تېغه تېز دے    په نرمۍ کښې له اوبو سره آمېز دے

هم له تورې شپې تياره دے په څو ماله    تېرېده دي پرې په دېرش زره کاله

پرې د پاسه اووه غرونه بلند تر دي    پيدا کړي پرې حکيم خالق اکبر دي

په اووه غرونو به شي اووه پړسانه    ملايک به پرې ولاړ دي يکهمانه

دا دېرونه پړسان د رب د وحدانيت دے    هم په دا رنګ د حضرت د رسالت دے

پهٔ دویم غرهٔ کښې پوښتنه د صلوٰة ده — پهٔ دریم باندې پوښتنه د زکوٰة ده
څلورم کښې د روژې د رمضان ده — پهٔ پنځم د حج پوښتنه پهٔ دا شان ده
پهٔ شپږم پرسان د حق د مور د پلار دے — پهٔ اووم د صدقې پهٔ دا مقدار دے
[۱۹] الامان که ترې دوزخ ته څوک گوزار شي — پهٔ مومن به مهربان پروردگار شي
ترې آتش د جهنم به گرځان شي — را بهرون به سلامت ترې پهٔ دا آن شي
کافران به پکښې پاتې تر پایون[۱۵۸] شي — افتیده او غلطیده به سرنگون شي

## ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوْا وَّنَذَرُ الظّٰلِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا ۝ (۱۵۹)

---

دغه درځ ده د پنځو سو زرو کالو — خلایق به بخرې درې لهٔ خپل افعالو
هم بر پایه به بیا تله د میزان وي — د عمل وزن به هر چا ته رسان وي
څوک به داخلي دا یمي شاهي امجده — څوک به پاتې په دوزخ وي تر ابده
اې خاونده پهٔ خاطر د هغه کس — چې دوستي دې شوه پرې ختم وایم بس

معزز دې پهٔ یٰسین او پهٔ طٰهٰ[۱۶۰] کړ
پهٔ خطاب دې د بشیر نذیر دالاً[۱۶۱] کړ

[۲۰] انبیا یې معزز پهٔ شا طرې شو — معزز دې دولت پهٔ چاکرې شو
جبرائیل یې جاروب کش دخاصه درشو — میکائیل یې د نعلینو[۱۶۲] یو نوکر شو
اسرافیل یې د سیسې[۱۶۳] دولت موندلے — عزرائیل یې رکاب بوس دے ودرېدلے

محمد رفیق یې سپے دے ناقابل
چې ددهٔ لهٔ خدماتو دے غافل

که اگرچې ناقابله ده غافل دي — پهٔ حلقه ددهٔ د سپو کښې دې داخل دي
لهٔ ازله تر ابد صلوٰة سلام — شهٔ پهٔ دهٔ هم یې پهٔ آل اصحاب کرام

# درحمد باریتعالیٰ عزاسمه

موجودات د کائناتو چې پیدا دي　　خداونده مشتغل[١٦٤] ستا په ثنا دي

تل یې ژوند[١٦٥] ستا د ثنا په اشتغال دے　　که بې فهمه که بې عقله که بې خیال دے

عنایت د امانت دې په انسان کړ　　درحمت د مغفرت دې نګران کړ

إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ ٥ (١٦٥)

[٢١] ځکه زمکو آسمانونو ایاء[١٦٦] وکړه　　چې بخښنه[١٦٧] درحمت دې هم په دهٔ کړه

ستا دې خاص د مرحمت نظر پرې وشي　　چې ترې دغه امانت خیانت نهٔ شي

کل اشجار دې پهٔ ثنا او پهٔ رکوع دي　　ځوک ولاړ دي پهٔ قیام ځوک پهٔ خشوع[١٦٨] دي

کهٔ زړې دي اوکهٔ ځوانې که هلکې　　کړي ادا ستا د ثنا پهٔ هرې زمکې

که مرغان دي پهٔ بېشه[١٦٩] یاپهٔ دشتونو　　پهٔ هر وخت دې کړي ثنا پهٔ ځوقسمونو

که بلبل د صبحدم پهٔ باغ ګویان وي

اې خالقه ستا ثنا یې پر زبان دي

که ګلونه که ګلبن[١٧٠] دے که غنچه ده　　ستا په حمد یې تازګي[١٧١] ده هم چرچه ده

پهٔ هرځای کښې چې سبزه ده یاګیاه ده　　سرتهٔ پایه یې* زبان ستا پهٔ ثنا ده

که حجر دے که قمر دے که آفتاب دے　　همېشه ستالهٔ ثنا یې التهاب دے

هم که بحر، بحیره که جزیره ده　　یا چشمهٔ صغیره که کبیره ده

یا پهٔ دوې کښې اوسېدونکي ترپایان دي　　که سمک[١٧٢] دے که ناقه[١٧٣] که سرطانان[١٧٤] دي

[٢٢] یاچې نورځهٔ ساکنان دي په دریاب کښې　　تاله حمد وثنا وایي پهٔ هر باب کښې

درنده که چرنده که حیوانات دي　　که پیدا دي نباتات که جمادات دي

که ریګونه د دریاب که بیابان دي | اې معبوده همګي دې ثناخوان دي

ته خالق یې نور همه خلقت د تا دي | همه واړه زنده سر ستا په ثنا دي

یې لایق د هر ثنا پروردګاره | بې عدده بې حسابه بې شماره

که خلقت دې همه واړه سر د سره | تر ابده ثنا وایي اې اکبره

یو ثنا به پوره نه کړي تر انجامه | په یقین به شي ترې پاتې ناتمامه

د ابدي ، حي[175] وقیوم[176] لایزال[177] ته یې | هم لایق د کبریا د جلال ته یې

هم رحیم یې ، هم کریم یې هم رحمن یې | هم د واړو خلقاتو نګهبان یې

هم قهار[178] یې هم جبار[179] یې هم غفار[180] یې | هم ستاره پرده پوښ[181] د ګنهکار یې

چې دې یاد کړي په مشکل ضعیف عباد | ستا د لورې ورته رسي ډېر امداد

د بېکسو بېچاره وو چاره ته یې | د تور مخو ګنهکارو اسره[182] ته یې

[۲۳] هر چې ستا له دره رد شو شرمنده شو | عزازیل[183] غوندې په لعن[184] آګنده شو

هر چې ستا له دره رد شو شرمېدلے | تر ابده یې بل درنه دے موندلے

ابداً به په عذاب کښې معذب دي | یو غضب به باندې زیات تر بل غضب وي

هر چې ستا په کینه وو سپو قبول شو | سلطنت یې ابدي ورته حصول شو

له یو رحم نه یې بل پرې بالاتر وي | په دیدار به دې مسرور او منور دي

لایزاله په خالص د پاک حبیب | په دولت مې کړه د خپلو سپو قریب

دغه هومره په دامشت[185] خاک شفیق شه

ته راضي له دې عاصي "محمد رفیق" شه

## در ستایش رحمة اللعالمین جناب سید المرسلین صلی الله علیه وسلم

د لولاک د تخت و تاج شاه محموده | کائنات یې کړه موجود ستا له وجوده

هم قسیم[186] یې هم جسیم[187] یې هم نسیم یې | په پخه د نبوت باندې وسیم[188] یې

[۲۴] د قرېشو پهٔ کافه کښې شهسواره[189] ابطحي[190] او هاشمي عالي سرداره

پهٔ علو کښې د آدم د اولاد فخره نور[191] سپوږمۍ ستالهٔ بنایست مونډلې بخره

پهٔ یوهٔ لاس دې گوهر پهٔ بل دې تېغ شهٔ منعدم[192] لهٔ دې جهان دکفر مېغ[193] شهٔ

دگوهر شعاع دې هسې شوه اوچته چې جهان پرې منجلي[194] شو تر قیامته

مبارک مخ دې پهٔ حق بدرالدجی[195] دے بلکه لا ترې بالاتر نورالهدی[196] دے

زما څهٔ ستا د صفت د حسن توان دے چې د حسن ثناگو دې پاک سبحان دے

انبیا دي که ملک دي پهٔ زدگونه همه داږهٔ ستاله نوره پېدا شونه

که لهٔ مخ نه تتق[197] بېرته یو زمان کړې د کنعان نور به غلام پهٔ دغه آن کړې

پهٔ جلوه د یوسف پر بکړ شو لاسونه ستا دیدار ته به بسمل کاندي ډېر زړونه

د یوسف دحسن مصر خریدار شو ستا دحسن ثنا خوان پروردگار شو

چې پهٔ هسې شان طالب هسې مطلوب دے هم پهٔ هسې شان محب هسې محبوب دے

بل څهٔ کس دے چې صفت ستا د جمال کړي تمام هسې* عزیز کړي ذوالجلال

[۲۵] دلېکن چې دې صفت فرض واجب شو هم زمونږه لهٔ طاقته مناسب شو

صدقې نه دې د حسن عالم ټول دے پهٔ دا طمع اوږان د نور کچکول دے

چې د حسن خدمتگارې دې شوې حورې د جنت لهٔ ساکنانو شوې منظورې

ستا د حسن به څوک کوم صفت ادا کا چې عین حسن دې پهٔ درد خبر صدا کا

پهٔ جهان چې پهٔ جلوه جمال شاهان دي گدایان دي ستا د حسن گدایان دي

جمال هسې کمال هسې د حیا یاد چې بې لوستو به استاد شي د استاد

بې لهٔ خطه به منسوخ کا سل خطونه نا خوانده به ولولي هزار نقوط[198]

بې تعلیمه نږه باز دے چا لیدلے چې مرکب یې پر هدف دے څغلولے

ناز پرور چې پهٔ براق د زمان سورشهٔ د سبقت یې پهٔ زمان کښې بلند شورشهٔ

هم ملکو پهٔ غرا[199] کړه نوبتونه[200] سره جوړ شوو د ملکو عضلونه

پهٔ څو قسمه آراسته شو جنتونه دربسته شو تر قیامته دوزخونه

[۲۶] قاف تر قافه تر سما نورشو برپایه (۲۰۱) | دا انوار ددهٔ د مخ وو عالیرا یه

پهٔ دنیاکښې که مرغان که حیوانان وو | پهٔ غبرا یا اوچت سپرته دآسمان وو

که اشجار وو که انهار وو که سیندونه | که ابار (۲۰۲) که جویبار که گیا هونه

درنده (۲۰۳) که خزنده (۲۰۴) که چرنده وو | که سکان (۲۰۵) وو د بیوت (۲۰۶) که رونده وو

پهٔ هر ځ که نباتات که جمادات وو | که مرده ددې جهان وو که حیات وو

هر ذی الروح که بري وهٔ که بحري وهٔ | که طوطی وهٔ که بلبل کبک دری (۲۰۷) وهٔ

که قمر وو که آفتاب که سموات وو | که بروج که کواکب پهٔ تحیات (۲۰۸) وو

تحیات د الصلوٰة وو لهٔ هر خوانه | لهٔ سکانو د زمین او د آسمانه

تحایف د الصلوٰة د السلام وو | پر هغه خیر البشر خیر الانام (۲۰۹) وو

هر احد پهٔ خپل زبان دي لهٔ وجوده

الصلوٰة والسلام پهٔ تا محموده

هم حورانو د بهشت سرود برپاکړ | چې صفت یې د نبی خیر الورا (۲۱۰) کړ

[۲۷] هم ملکو دا سرود کاوه بې حده | الصلوٰة والسلام پهٔ تا احمده

دوی لا څهٔ د اتحیات دو لهٔ احده | شه صلوٰة سلام پهٔ تا یا محمده

د ابلیس پهٔ فوج شوې توره داور سکروٌ | چې یې وسولې جوسې مانده وغتې

دوٌې چې نیت به د ختلو د آسمان کړ | ملایکو به پهٔ دوٌې د اور باران کړ

ابالیس (۲۱۱) شو لهٔ آسمان ختلو بند | معجزات شو د حضرت رسول څرگند

د کسری د قلالس (۲۱۲) اعلی (۲۱۳) بروج | چې سیالي یې لهٔ آسمان کړه پر عروج (۲۱۴)

پهٔ یو ځل شو افتاده هم پر مغاک | منعدم شو هم لهٔ خاکه سره خاک

چې دریاب پهٔ دا قلا کښې بهېدلو | ځ پهٔ ځ وچ شو چنې وکے وددرېدلو

چې چنې وکو لهٔ به لاس درود ورکفارو | سرتهٔ پایه به لهٔ اوره یو انکار و

هم اوردونه یې اوبه شوهٔ (۲۱۵) لهٔ دې وخته | نهٔ یې اور نهٔ یې اوبه وې شوه پرې سخته

لهٔ آسمان زمکو صدا ده لا اله | الا الله محمد رسول الله

له هر کاڼي له هر بوټي دا صدا وه — په جهان کښې خوشحالي لويه پيدا وه

[۲۸] پر بروج د سماواتو نو بتونه — ملايکو غږول په څو قسمو نه

آراسته فلک، ملک په پر و بال شه — چې بنادي ته يې هر يو په استقبال شه

څلوېښت ورځې په هر ځي کښې بنادنامې وې — د ملکو د محفلو هنګامې وې

د کفارو ملا په غم سره شوې ماتې — دغه ماتې تر قيامته شولې پاتې

غيب ګويان، منجمان واړه مردود شول — کل ځينونه په سجود د خپل معبود شول

تر يې د کفر ورق پرېواته د لاسه — نه له دوے ووځه خبر نه له خناسه

دغه واړه معجزات د پاک نبي وو — د سرور قرېشي او عربي وو

شهسوار شو د عزة په هسې شان — سېر يې ووتو له کون او له مکان

د خاوند په روے زما مخدومه خوره — (۲۱۶) خاص سرداره د کونېنو د کوثره

محبي مرېے دې نه کړې فراموش ته — کمينه سپے کړه د در قلاده پوش ته

که زه ورک د بېګانه ووپه توده شم (۲۱۷) — پېژندلے به هم ستا په قلاده شم

چې په غاړه يې پرته ستا نشانه وي — په محشر به دې ښکاره سپے کمينه دي

[۲۹] په قانون د سردارانو کښې ښکلو يه — هر يو سپي ته نشانه د خاوند بويه

بې نشانه سپے چې ورشي تر هر دره — په کوتکو دې وهل شي يا سروده

دا قدر په رفاقت يې ځان شفيق کا

محمده! سګ د در مفلس "رفيق" کا

## در معراج حضرت رسالت پناه صلى الله عليه وسلم

---

هغه شپه چې منوره وه تر قدره — د زينت ککول يې سوے وه له بدره

دغه هسې شپه نه کون وه نه مکان وه — نه هرګز په خوب ليدلې دې جهان وه

جنتونو خلعت واغوستو د نور(۲۱۸) — په شرابو د ښادۍ کښې شو مخمور

هم حوراني مه پېکرې رخ قمرې — په جامه او په جلوه شوې منورې

منتظره د دیدار د خپل سردار شوې — شکرګویه د خاوند پروردګار شوې

سمواتو کړه جامه د غم بدله — د ښادۍ جامه یې نوې واغوستله

دوې له خپلې بلندۍ په انفعال(۲۱۹) دوه — چې محرومه یې د دوست له خاص جمال دوه

[۳۰] مزین(۲۲۰) هسې خورشېد دویم قمر شو — منتظره د دیدار د پاک سرور شو

له دې رنګه ثوابت(۲۲۱) که سیاره(۲۲۲) دوه — که اسعد(۲۲۳) که له سعدې نه بې بهره دوه

په دا رنګ هره فرقه خوش وخورم شوه — چې عالي به د سرور په پاک قدم شوه

هم ملکو سره وتړل صفونه — له هر خوا دوه ملکوتونه سلامونه

آراسته په کروفر(۲۲۴) عرش عظیم شه — په څوشان یې استقبال ته په تکریم شه

شو مسرور چې سرفراز به په دولت شم

معزز به په قدم د پاک حضرت شم

حاملانې یې د عرش واړه یکاني — په تعظیم او په تکریم شوې صلوة خواني

نوراني لباس یې واغوست د بخملو — چې همه په جواهرو مکللو (۲۲۵)

په برجونو کښې د عرش شو نوبتونه — هرچا واغوسته پرنوره خلعتونه

په دې طور په بروجو د آسمان کښې — نوبتونه غږېده په دغه آن کښې

نه فلک(۲۲۶) له جنبشه برقرار شو — په خپل ځای باندې دیدن ته استوار شو

دروازې د آسمانونو شولې لرې — ملایکو پرې پاشلې مرغلرې

[۳۱] که ملک دوه که طیور د سموات دوه — منتظر د حضرت د دیدن زیات دوه

پس طباق دا را ضینوله(۲۲۷) جنبشه — برقراره شو له تابه له تپشه(۲۲۸)

هم د نور له فوجه مات د تیرې فوج شه — په غبراکښې د انوارو بلند اوج شه

د چمن په ګلو پېر(۲۲۹) د بلبل نه وه

بلکه وته له پردې څخه ګل نه وه

د چمن په لورګندر د نسیم نه وه — له تشویره (۲۳۰) د لاله قدرې بیم نه وه

بنفشه شوه د نهال له پیچه بنده — د نهال شاخچه قراره وه خورسنده

د سمن له تبسمه لبان بند وو — پرې سربنې شوې هم دخپلو شونډوقند وو

هرمرغه وه غنوده (۲۳۱) په خپله ځاله — هیڅ خبر نه وو دیو د بل له حاله

هم بورا وه شال له ګله غنچه غوښته — په دا خپله دوشاله او ده وه نغښته

هم خروس (۲۳۲) ته وه پانسي دځانګ پرهوتې — تر صباحه یې مرې وه پټې نښتې

[۳۲] د مرې سرنا یې پاتې وه له بانګه — چې یې سرنه شو ایښی (۲۳۳) له خپله ځانګه

هم سګانو ته پانسي وه لګې خپله — لکه څوک انتقام اخلي له قاتله

چپ له چغو له نعرو نه هم له غپه — وه مرې یې په حلقه د لګې تپه

دور دهونګي د شاهانو په دربارکښې — دو پرانه لکه د لنګ شغال په غارکښې

زمانه وه په آرام له حرکاتو — سر ته پایه له جنبش د سکناتو

په دا هسې معزز معلی (۲۳۴) وخت — چې په خوب کښې به لیدلې نه وي بخت

حکم وشه په جبریل امین هسې — له جناب دجهان دار حاکمین هسې

کړ یې زین هغه براق په دستورهسې — چې بدن یې واړه غرق وه په نورهسې

که یې زین که یې رکاب که غاشیه (۲۳۵) وه — که لګام که یې ستام (۲۳۶) که حاشیه وه

مرصع وو د بهشت په مرواریدو — هم له هغه مروارید نور آفریدو

سیاره یې له انوارو منفعل وو — بلکه لا شمس و قمر ترېنه خجل وو

په رفتن هسې سریع وه برق بنیانه — په لمحه کښې ووت له کونه له مکانه

[۳۳] په سیران (۲۳۷) کښې هسې شان په زمان فرد وه — چې یې برق نابینا د سېرله ګرد وه

رام له حده وه په وخت د سورېدلو — تند له برقه وه په وخت د ځغلېدلو

آراسته شو مقرب ملک څلور هم — له براق یې دنیوه دجهان لور هم

هغه شپه چې مبارکه وه تر عیده — وه له سعدو په جلوه جمال سعیده

پاک حضرت هسې د نور په پیمانه کښې — خوابیده وه خاص د ترور دولتخانه کښې

هغه دم روح الامین پېک[۲۳۸] د جناب      له دیداره د حضرت شو دولتیاب
پېک لاځهٔ مرغ زرین د شاخ اقدس وهٔ      را الوتے خاص د عرش لهٔ کاخ اقدس وهٔ
د براق واګه پهٔ لاس ولاړ مسروره      سرنهٔ پایه پاک جدهٔ رشک[۲۳۹] حوره
څهٔ عجب بنا دي د عشق پهٔ بیمار راشي      چې لهٔ هسې یاره هسې رېبار راشي
څهٔ عجب اخش پهٔ هغه عاشق خوب شي      چې مطلوب یې شي طالب ، طالب مطلوب شي
ځکه پهٔ بستره ناست د دیدار وي      انجمن یې پاک لهٔ غشه د اغیار وي
مستغني د مهجورۍ لهٔ ازالت[۲۴۰] وي      مستغرق د معشوقې پهٔ وصالت وي
[۳۴] پهٔ خوږو سترګو دیدار کا نهٔ مړېږي      دم پهٔ دم یې اشتیاق د حب زیاتېږي
غمازانو له یې لار نهٔ وي پهٔ جمع      نهٔ پتنګ شي الوتے د دوے پهٔ شمع
نهٔ طاقت د بنېدلو د مګس وي      بې نیازه لهٔ آوازه د عسس[۲۴۱] وي
محبت یې یو لهٔ بل سره ساقي وي      پهٔ ظاهر او پهٔ باطن کښې ملاقي وي
عشق دُر دے پر بها لهٔ جواهرو      پرده ساز شو بند و بست د عناصرو
کائنات شو آفرید لهٔ درد عشق      هم پهٔ دا یې سر درس کړهٔ پر د عشق
هر یو تن چې بې لهٔ عشقه دے حیوان دے      ذرهٔ بې عشقه پهٔ قالب د بنیمن دځان دے
عشق هغه چې یاد خدائے یا د رسول وي      نهٔ چې فسق له فاعل وي یا مفعول وي
آبادي د کائناتو ده لهٔ عشقه      سرخرو یې د موجوداتو ده لهٔ عشقه
دا بها چې ده د عشق پهٔ دردانه کښې      نشته دا د هیچ بادشاه پهٔ خزانه کښې
عشق دُر دي پهٔ معدن د دل و جان کښې      بې لهٔ عشقه سړے خر دے پهٔ جهان کښې
دا یقین دے چې بې عشقه هر انسان شي      خاصتاً به یې نقصان د دین ایمان شي
[۳۵] حالي مهٔ شه مسلمان د رب لهٔ عشقه      وعده شوې د دیدار سبب لهٔ عشقه
الغرض پېک د جناب طاووس د عرش      چې یې ولید ناز پرور د ناز پهٔ فرش
لهٔ اول یې د صلوٰة پېغام ادا کړ      لهٔ خالق یې بر هغه خیر الوریٰ کړ
دست بسته په خجسته لاس د تعظیم      پهٔ سینه ایښے حضرت ته پهٔ تکریم

له اول یې التماس د بنده ګۍ کړ — بیا یې عرض له بنده ګۍ، فرخنده ګۍ کړ

چې خـالـق د کائناتو ته بللے — زهٔ یې خاص قدمبوسۍ ته رالیږلے

د خالق سلطنت سلام پهٔ تا تمام دے — د لقا (۲۴۲) طالع هم ختم ستا پهٔ نام دے

نور ور وړاندې یې براق پهٔ ښهٔ آئین کړ — ور پهٔ سر یې تاج د عزود تمکین کړ

چې قدم یې پهٔ رکاب (۲۴۳) د براق کښېښهٔ — نه براق بل (۲۴۴) یې د عرش (۲۴۵) پهٔ ساق کښېښهٔ

مقرب یې شو لو یو پهٔ ښې طرف کښې — او دویم پهٔ کیڼ طرف ته پهٔ شرف کښې

یو پهٔ دروستو له براقه دخلیل شهٔ — پهٔ دولت د شاطره کښې جبرائیل شهٔ

یو لمحه چې ناز پرور هسک پهٔ هوا شهٔ — تر لمحې اول داخل دے پهٔ اقصٰی شهٔ

[۳۶] چې اقصٰی یې لهٔ دیداره دولتیاب شهٔ — پکښې کوز هغه سرور عالیجناب شهٔ

هغه ځاے شو مقتدا د انبیا وو — دے د واړو انبیاوو مقتدا وو

هم ملکو پسې د تړل صفونه — ورپسې یې د نمانځه وکړه نیتونه

چې یې نمونځ او دعا دواړه کړل تمام — هر یوهٔ ته یې پهٔ لاس کړ د نور جام

چې یې واړه مشرف شو پهٔ دیدار — ورکاب ته د براق شو پهٔ اختیار

چې شو سور پهٔ براق باندې پرفتوح — لهٔ قالب د جهان ووت، لکه روح

د وړومبي آسمان پهٔ در راغے شادان شهٔ — چې حیران یې د جمال وته دربان شه

سر تهٔ پایه یو عالي جسد د نور وهٔ — بلکه نور د دهٔ لهٔ نور نځنه معمور وهٔ

جبرائیل، لکه شاطر ځغاسته (۲۴۶) دوړاندې — نو ر آواز کړ جبرائیل پهٔ دربان باندې

چې درخلاص کړه پهٔ طالع باندې مسعود شوې — مشرف پهٔ ښهٔ دیدار د پاک محمود شوې

دربان دوېل دا څوک دے جبرائیله — چې جمیل فخ یې لهٔ نور دے د جلیله

جبرائیل دوې اشرف الانبیا دے — معزز د کائناتو مقتدا دے

[۳۷] هم دے ختم الانبیا هم اولین دے — ظهور شوے رحمة للعالمین دے

نو دربان یې پهٔ قدم مبارک پرېوت — پهٔ ثنا پهٔ صفت، مدح در ته کښېوت

معزز شو پر هغه اقدامو بزرګو — چې یې خاورې کړې رانجه د خپلو سترګو

پهٔ ادب يې ور كړلې لهٔ خپل لاسهٔ     حضرت وخوت د دړونبي آسمان د پاسه

پهٔ دړونبي آسمان چې څهٔ فرښتګان وو     پهٔ سرور باندې صلوٰة سلام ګويان وو

نوبتونه د دړونبي آسمان په شورشو     چې راتلهٔ د شهنشاه پهٔ دغه لورشو

د صلوٰة او د سلام لهٔ دوئې نزول وهٔ     د حضرت خيرالبشر څخه قبول وهٔ

ملايكو تعظيمات او تسليمات     ښهٔ ادا كړهٔ د سرور تر حده زيات

پهٔ ادب پسې روان شو فوج فوج     ترې هر خوا وو ملايک روان پهٔ اوج

سياره چې د دړونبي آسمان پهٔ سر وو     حاضر شوي پهٔ سلام د نازپرور وو

لهٔ حضور يې د تعظيم پهٔ بېله بېله     مرتبه د ښهٔ اعزاز كړله حاصله

كه وو سعد سعادت يې پسې زيات شهٔ     كه وو نحس نحوست ترې واړه مات شهٔ

[٣٨] معزز شو د قدم پهٔ ښكلولو     پهٔ سرونو او پهٔ سترګو ېې منبلو (٢٤٧)

آراضي اول بهتر وه لهٔ آسمانه     د حضرت پهٔ ختو دواړه شو يكسانه

چې فيض ياب شو د دړونبي آسمان لهٔ چته     خپه يې كېښوه پهٔ ركاب د برق اوچته (٢٤٨)

جبرائيل د شاطرۍ چوړۍ پهٔ لاس كړه     په فرس يې د هوا پسې خپه پاس كړه (٢٤٩)

نيم طرفه چې طۍ د عرش په پرواز شهٔ     د دويم آسمان پهٔ در پرتو انداز شهٔ

د دويم آسمان دربان راغۍ ادب ته     هم يې لاس كړه د براق ركاب جلب ته

تحايف يې د تعظيم او د صلوٰة هم     د سرور پهٔ مخكښې* راوړهٔ د حد زيات هم

هم يې ښكل كړهٔ قدمونه پهٔ سرسترګو     شو پهٔ فوج د ملايكو كښې لهٔ بزرګو

لهٔ دې قسم به د هر آسمان دربان هم     تعظيمات كړهٔ د نبي آخر زمان هم

هم ملک هم سياره چې به پرې وو نه     كړل ادا به واړو واړه خدمتونه

هر يوه به زيات له حده چاپلوسي كړه     ورپسې بې د حضرت قدمبوسي كړه (٢٥٠)

نحوست د ثوابتو مبارک شه (٢٥١)     چې بادشاه پهٔ هر طبق كښې د فلک شه

[٣٩] نه عيسى يې پهٔ چهارم آسمان فرموش كړ (٢٥٢)     بلكه لا پهٔ ښهٔ خلعت يې خلعت پوش كړ

پهٔ سدره كښې تر ښه پاتې جبرائيل شهٔ (٢٥٣)     پهٔ عذرونو معذراتو د خليل شهٔ

حضرت دوېل چې اې دوست یکسانه — له ما مهٔ کړه د دوستیه واله گردانه

چې مخلص دې پهٔ دوستئ کښې زما ځان کړې — بیا دې څهٔ لره پرتاب لهٔ ما عنان کړې

جبرائیل وې اې سرور د کائناتو — معزز او مفخر د موجوداتو

لهٔ دې ځې که سرمو ځان بلندتر کړم — پهٔ فروغ (۲۵۴) بې (۲۵۵) د جلوې سوخته وزر کړم

نور مې نشته دے طاقت د پورته تللو — ما معذور گڼه پهٔ دا پاتې کېدلو

د صلوٰة تحفې یې راوړې لهٔ حد زیاتې — پهٔ سدره کښې لهٔ حضرت نه شولې پاتې

نیم طرفه چې د حضرت براق پران شو — لهٔ سدرې نه د بهشت پهٔ خاص مکان شو

لهٔ بهشته چې ترعرشه حضرت تلل — لکه کل یې یو تر بله وسپارلے

هر احد یې لهٔ دیداره منور کړې — هم پهٔ عطرو د الطاف (۲۵۶) یې معطر کړې

چې د عرش پهٔ شرف کښې پرشرف شهٔ — پهٔ دولت یې مشرف تخت در رفرف (۲۵۷) شهٔ

[۳۰] چې رفرف یې له دولته و نما ځنه — پهٔ خپل حد کښې ترې رفرف هم پاتې شنه

پس لهٔ هغه یار د یار راغ رهبر شهٔ — لامکان یې لهٔ دیداره منور شهٔ

هسې ځاے کښې یار لهٔ یار سره واصل شهٔ — چې زبان تر ېنه پهٔ ځې وېل خجل شهٔ

نهٔ گردش پرې باندې وهٔ څهٔ د دوران — نهٔ وهٔ ځه نهٔ وهٔ مکان نهٔ وهٔ زمان

نهٔ پرې ورځ شپه تېرېده نهٔ ساعتونه — قبض، بسط تر ېنه کل منعدم دونه

پهٔ حضرت باندې آواز وشهٔ لهٔ غیبه — بې آوازه بې حروفه بلا ریبه

مرحبا هرکله راشه زما دوسته — سرته پایه پورې مغز خالي لهٔ پوسته

نور حضرت شاه د لولاک شرف بنیان — پهٔ هغه ارحمده جواب کړې پهٔ ښهٔ شان

په شمه یې د تجلیس گواه فرقان دے — چې آیات قاب، قوسین ادنیٰ عیان دے

دوه لیندې د دوو محبوبو پهٔ منځ ځاے وهٔ — یا لهٔ دوئې ځنه ادنیٰ هسې ځاے وهٔ

چې حضرت لهٔ پاک دیداره هم آغوش شهٔ — بې آوازه د اکلام دده پهٔ گوش شهٔ

اې زما معشوقه پاکه مبارکه — سرته پایه د تقدیس لهٔ نوره ډکه

[۳۱] چې یو یار ته دویم یار پورې ورځینه — دادستور دے پیشکشي ورله وړینه

ته چې ما لره راتلې تر دغه ځایه　　ځه پېشکش دې دے داوړے وایه وایه

حضرت دوې ما داوړے تحیات　　پاک جناب له د صلوٰة او د زکوٰة

زکوٰتونه که مالي که بدني دي　　پېشکشی مې په دربار سبحاني دي

کړه قبول دا تحایف پروردګاره　　هم سلام یې په حبیب کړه په بارباره

هم دده په آل اولاد خالق سلام کړ　　دا دولت یې کل په دهٔ باندې تمام کړ

محبت دواړو یارانو تېر له حد کړ　　هر یو سوال چې کړو محمود قبول احد کړ

نازپرورکه زیات له حده نیاز و ناز کړ　　ناز بردار به د قبول قبول آواز کړ

جهاندار هسې خلعت ورته دربر کړ　　ځ د فخر یې د آدم خیرالبشر کــړ

نبوت خلعت په دهٔ باندې تمام شهٔ　　خاص نامزد په معشوقۍ د الف لام شهٔ

ترې یې وکړله د خوار امت غوښتنه　　د بخشش په خاص خلعت یې ونمانځنه

زما دوسته په محشر به تا راضي کړم　　په جمال مې ستا قسم د تا مرضي کړم

[۴۲] زیاتي حد د حرکت نشته دے دلته　　د ویلو ځهٔ طاقت نشته دے دلته

نا خبر ورڅخه کون، مکان زمن دے　　څوک خبر د دوو یارانو په ګفتن دے

په دنیا چې دوه یاران سره یوځېږي　　پرې کرام الکاتبین هم نهٔ خبرېږي

دوه یاران چې په کوم رمز کړي خبرې　　فرښتې دي لهٔ دې رمزه ناخبرې

خصوصاً چې د خالق غوندې عاشق وي　　معشوقه یې د محمود غوندې صادق وي

د هر څهٔ دے طاقت په دغه میاں کښې　　چې مدرک شي دے په راز د پاک سبحاں کښې

چې د حق لهٔ بنهٔ دیداره دولتیاب شو　　په رخصت شاه د لولاک لهٔ لوے جناب شو

هر نعمت چې دربار رحیم مولا کړ　　هم یې وخوړ هم یې موږ ته راعطا کړ

د لولاک تاج یې په سر مشرف راغے　　په لمحه کښې د جهان په طرف راغے

(۲۵۸)

د عزت لوایې هسې سر فراز شو　　لهٔ دوو کونو یې بلند تخت د اعزاز شو

د غیرا فخ سر د سره نورانې شو　　چې داخل پرې هغه نور سبحانې شو

هغه شپه وه په شماره اتلس کاله　　څوک خبر نهٔ شهٔ هرګز لهٔ هسې حال

[۴۳] لهٔ قالب چې دجهان و تلے روح وهٔ ... بیا راغلے پهٔ صدار رنګه فروح وه

دوباره راغے ددې دنیا وکورته ... هم خاصه بیا وهغې مشفقې ترورته

چې اوده پهٔ کوم بستر خیر البشر وهٔ ... دا بستر لهٔ هغه طوره ګرمتر وهٔ

پهٔ کوم حوض چې آبدست کړے پاک حضرت وهٔ ... حوض لهٔ آبه هغه شان پهٔ حرکت وهٔ

پهٔ دا هسې ساعت تلے بیا راغلے ... هیڅ احد پرې باندې نهٔ وهٔ پوهېدلے

دو اتلس کاله تېر پهٔ دغه میان کښې ... شکې نشته پهٔ قدرت دپاک سبحان کښې

هرچې شک یې پهٔ قدرت یا پهٔ معراج کا ... پهٔ تحقیق به ځان لهٔ حق دینه اخراج کا

هغه خوان چې دنعمت دپاک سبحان وهٔ ... نهٔ خوړلے یک تنها آخر زمان وهٔ

و هر چاته یې حصه خپله ورکړې ... هم د هر احد پهٔ نام نعمت نوسرېږي

اې ساقي راکړه دوه جامه پیالے ... چې تازه کړم پهٔ دا عمر د حمد سفے

زړهٔ اوځان مې ستا پهٔ جام باندې خوښې کا ... چې جام نهٔ وي نو مستي او سرکشي کا

اې عالي والا جنابه د کونینو ... (۲۵۹) انتظار کښې مې نور کم شو د عینېنو

[۴۴] منتظر خسته خاطر ستا پهٔ خیمه یم ... زهٔ یو سپے ستا لهٔ سګانو چار چشمه یم

د نسیم پېره پهٔ مړاوي ګلبن پربېږده ... خاص قدم د کمین سپي پهٔ ستر ګو کښېږده

که اګرچې دا خجل سپے ناقابل دے ... پهٔ حلقه ستا د سګانو کښې واصل د ے

پهٔ حلقه که ستا د سپو نهٔ وي منظور ... لهٔ خدمت د خپلو سپو یې نه کړې دور

اې محمود ده خوار "رفیق" همره مسرور کړه ... پهٔ خدمت د خپلو سپو کښې یې منظور کړه

پهٔ محشر همره آواز کړه پهٔ ده باندې ... اې خادم زما د سپو راشه د وړاندې

ګردنۍ هم ستا د لاس ده درپهٔ غاړه ... لخ د ناز پهٔ دوشاله تړېنه مهٔ نغاړه

# در محمدة ابو بکر صدیق رضی الله عنه[۲۶۰]

ابوبکر مشر یار چې د حضرت وهٔ     پهٔ جهان باندې خورشید دهدایت وهٔ

پهٔ تصدیق یې شرافت داسلام زیات شو     پهٔ تحقیق سره عزت داسلام زیات شو

داسلام د لوا اوج شو تر فلکه     چې صدیق صدق اظهر کړ پهٔ دا نمکه

شبچراغ پس لهٔ حضرت دے د دین وهٔ     استوار پرې داسلام حبل متین وهٔ

[۴۵] لکه وویل حضرت پهٔ شان د دهٔ کښې     پهٔ دا هسې رنګ بلند عنوان د دهٔ کښې

چې آفتاب پس لهٔ نبیانو پهٔ تحقیق     منجلی نه دے پهٔ ما زیات لهٔ صدیق

پهٔ دا رنګ یې حدیث ګوهر آمود دے[۲۶۱]     ظاهر شوے لهٔ وجوده ددې جود دے

نبوت که پس لهٔ ما چا له را تللے     دا به وو صدیق اکبر له رسید لے

بل حدیث دے پهٔ دا رنګ لهٔ پاک سرورهٔ     چې خالق پهٔ مسلمانو کړلو غوره

څوک چې دوست دپاک احد د پاک رسول وي     پهٔ دوستۍ به د صدیق کله ملول وي[۲۶۲]

دوست دخدا اودوست زما دوست دصدیق دے     د صدیق دښمن پهٔ کفر کښې غریق دے

پهٔ دښمن د ابوبکر رب قاهر دے     پهٔ دنیا او پهٔ عقبیٰ کښې دے کافر دے

پهٔ دنیا کښې د سرور یار غار دے دے     زیات لهٔ صدقه د یارانو یې یار دے دے

لهٔ حضرته پس دے دے دریاب د علم     کله چا ته یې معلوم پایاب د علم

سرتهٔ پایه نورانی دُرد شرف دے     دین پهٔ دهٔ باندې عزیز پهٔ هر طرف دے

دین روښانه هم ددهٔ پهٔ صداقت شو     شرافت یې هم ددهٔ پهٔ شرافت شو

[۴۶] پهٔ جنت کښې هم رفیق د حضرت دے دے     هم رفیق او هم شفیق د حضرت دے دے

هم منصف د عدالت پهٔ میزان دے دے     پس حضرت نه د امت نګهبان دے دے

سخره یار دوست جاني دے د سرور دے     کوم احد پهٔ منزله ترې او لاتر دے

هم سخي وهٔ بې اندازه هم شجاع وهٔ     اسلام واړه روښنتر ترې پهٔ شعاع وهٔ

مقرب پس له نبیانو هم نزدیک ... نهٔ وهٔ بل تی وحده او لا شریک

بې لهٔ دهٔ چې ملقب شو پهٔ صدیق ... هم حضرت پرې لهٔ هر چانه دے شفیق

پهٔ جهان یې هر صفت دے بالاتر ... خو یو مهٔ وایه وده ته پیغمبر

نور پهٔ سر دکل جهان ددهٔ معراج دے ... د شاهانو د دیهیم درة التاج دے (۲۶۳)

د تصدیق دفتر پرې ختم بالیقین دے ... پهٔ دهٔ باندې استوار حبل المتین دے (۲۶۴)

لهٔ میدان یې وړے ګوے د صداقت دے ... هم پهٔ واړو بهادرانو یې سبقت دے (۲۶۵)

لکه شېرچې یې شمشېر پهٔ کفر کش کړ ... لهٔ جهان یې ورک د کفر کشمکش کړ

پاک لهٔ کفره یې بلاد دې جهان کړهٔ ... چې مردار یې لهٔ اسلامه سرکشان کړهٔ

[۳۷] لهٔ جهانه سره ورکه سرکشي شوه ... د اسلام چبوتره واړه زرکشي شوه (۲۶۶)

چې اسلام به چا د کفر پر بدې خوړ (۲۶۷) ... لهٔ صدیقه به یې تیغ محمدي خوړ

یا پهٔ تیغ د کمې کفر مقتول وهٔ ... یا لهٔ تیغ د صدیق مرګ د نامقبول وهٔ

هر کافر افسوس پهٔ خپله خون بهاخوړ ... چې ګردن یې لهٔ صدیقه اژدها خوړ

که کافر به په تکفیر کښې تیغ آموز وهٔ ... د صدیق پهٔ لاس نهنګ جهانسوز وهٔ

د کفارو یې بنیاد هسې برکند کړ ... تر فلک یې د اسلام بیرغ څرګند کړ

سرتهٔ سره جهان پاک شو لهٔ اغیارو ... توری پربوتې له لاسو د کفارو

د چا خونه لهٔ اسلامه شوه پرنوره ... د چا خونه یې تباه کړله پهٔ توره

د اسلام خیمه شوه هسې ارجمنده ... قاف ترقافه پهٔ جهان کښې شوه څرګنده

دغه واړه برکت د پاک صدیق وهٔ ... لهٔ خالقه شرافت د پاک صدیق وهٔ

هسې شمع پرې د دین شوه روشنتره ... منجلي شوه لهٔ خورشیده لهٔ قمره

شریعت ددهٔ لهٔ شانه درخشان شهٔ ... چې بیان یې پهٔ بیان باندې حیران شهٔ

[۳۸] طریقت یې لهٔ همه وو اولاتر وهٔ ... منزلت یې لهٔ همه مخلوقه بر وهٔ

ساقي بڼه کړه پیاله لهٔ هغه جامه ... چې مې لرې کړي لهٔ زړهٔ نه سوداخامه

چې دماغ دا ستالهٔ میو پیمانه کړم ... سود سودا به د خرد پهٔ کارخانه کړم

اې خاوندہ پهٔ خاطر د پاک صدیق چې هم ته اوهم دې دوست پردهٔ شفیق
رفیق سېږ د محمدؐ د پاک دربار کړہ خاک پا يې د صدیق پهٔ څوڅو بار کړہ
پهٔ سکانو د سکانو د صدیق کښې (۲۶۸) خدایه شمار پهٔ عمل خوار محمد رفیق کښې

## در محمدت عمر خطاب رضی اللہ عنهٔ

---

دویم یار یې شهسوار حضرت عمر وهٔ تر ملکو پهٔ اعزاز باندې بهتر وهٔ
نقارہ شوہ د اسلام پهٔ دہ څرگندہ شجرہ یې د کفارو کړہ برکندہ
مشرف چې پهٔ دولت دہ د اسلام شهٔ د اسلام بدر پهٔ دهٔ کامل تمام شهٔ
هم بلند شو پهٔ اسلام کښې اذانونه هم بنا شو پهٔ هر ځاے کښې مسجدونه
سرته پایه د علومو یو دریاب وهٔ (۲۶۹) هر یو سوال یې پهٔ درگاه کښې مستجاب وهٔ
[۴۹] پهٔ ظاهر کښې شبچراغ د شریعت وهٔ (۲۷۰) پهٔ باطن کښې لوے قلزم د معرفت وهٔ
لهٔ صدیق وروستو صاحب د سلطنت وهٔ پهٔ جهان باندې اعلیٰ پهٔ منزلت وهٔ
سرتهٔ پایه یې جوسه د بخر دي وهٔ (۲۷۱) پهٔ تندي کښې یې فرهٔ (۲۷۲) ایزدي وهٔ
هم حلیم، هم بهادر دے د شمشېر وهٔ د کفارو پهٔ رمه کښې نهار شېر وهٔ
هم تقي وهٔ، هم نقي وهٔ هم سخي وهٔ هر عمل یې د نیکي پهٔ فراخي وهٔ
د کعبې څخه یې مات واړہ بتان کړهٔ پهٔ هیبت او پهٔ زلزل یې کافران کړهٔ
چې غضب یې پهٔ دماغ کښې مؤثر شهٔ هغه دم به ترقیدہ (۲۷۳) د زمکې سر شهٔ
چې یې توره کړہ برکښه لهٔ نیامه صفدري (۲۷۴) یې پهٔ نامهٔ شوله تمامه
هم بېرغ (۲۷۵) یې د اسلام پهٔ لوړہ ښخ کړ چې جهان یې لهٔ گرمي د کفرہ یخ کړ
چې وصل یې د کفارو گردنونه پهٔ اژدر یې وو د تېغ حلال خونونه
تابه دي چې برق څخ ښکارہ پهٔ صبغ کړ چې څرگند ښې (۲۷۶) پهٔ پره د کفر تېغ کړ (۲۷۷)
چې مرکز به یې د تېغ پهٔ خون آلود شهٔ د فلک قوس قزح (۲۷۸) به ترې نمود شهٔ

[۵۰] لهٔ ځوکان به یې د توري په هر سو (۲۷۹) — د سرونو به پر ان وو هزار کو ے

څوک یې راغلهٔ د اسلام په روشنۍ کښې — څوک یې لاړهٔ د شمشیر ګردن زني کښې

نهٔ له چا څخه اسلام یې دریغ کړلو — نهٔ لهٔ کفره یې د توري حق ساتلو

عدالت یې هسې ټینګ وهٔ لهٔ بیانه — چې دوران ددهٔ لهٔ عدله ډک روښانه

عدالت یې هسې خاص نه رسیدلے — چې خیال نوښتد یې وهٔ وحد ته رسولے

هسې نور د عدالت به په هیڅ آن کښې — دوبیم رانهٔ شي هرګز پهٔ دا جهان کښې

پهٔ سریر د خلافت چې کښېناستلو — لهٔ جهان یې ورک د ظلم بنیاد کړلو

مزري ګډېږي به په یوځے څرېدلې — پهٔ یوه آخور به دواړو اوبهٔ څښلې

هیڅ د عزم خوف به نهٔ کېدهٔ لهٔ شېره — بې پروا بهٔ پرې راتهٔ پهٔ زړهٔ دلېره

نهٔ به یو حیوان پهٔ بل کول شوه زیاته — هسې ملا وه پهٔ جهان د ظلم ماته

پهٔ مرغانو کښې که باز چنګ آهني دے — درنده چنګ و منقار لري خونې دے

[۵۱] پهٔ شلولو د چرچنې نهٔ درتللو — که هر څو به دے لهٔ ولږې مړ کېدلو

هسې نور د عدالت د داد روښان وهٔ — چې برپا یه پهٔ دنیا د حق میزان وهٔ

پهٔ دنیا کښې وه برپا د میزان تله — بلکه هر چا به ساتله د ځان تله

اې خالقه پهٔ خاطر د دهٔ سردار — چې پهٔ دین کښې د اسلام وهٔ د دهٔ دار

پهٔ دره د معدلت (۲۸۰) یې شکاره دین کړ — کل جهان یې پهٔ اسلام باندې امین کړ

بېرغونه یې د کفر سرنګون کړهٔ — واړه قتل یې پهٔ توره د شبخون کړهٔ

ریښان چې دو د کفر لري بېرته — لاس تړلي د لښېل (۲۸۱) واړه سقر ته

څوک یې وویسته د کفر لهٔ ظلامه (۲۸۲) — تر فلک شوه شمعه هسکه لهٔ اسلامه

په دا هسې جد و جهد یې آفرین دے — آفرین پر دهٔ د رب العالمین دے

دا عاجز بیچاره خوار ډوب پهٔ ګناه کښې — لاهو شوے د عصیان بحر سیاه کښې

د عمل نامه یې توره لهٔ عصیان وي — چې کرام الکاتبین ورته حیران وي

چې ملک یې لهٔ لیکلو درمانده وي — څهٔ جواب به یې (۲۸۳) د دې بنده ګنده وي

[۵۲] ولېکن ستا و بخښش ته برګ کاه وي　　　اې خالقه که هرڅو يې بخت سياه وي

دغفار او د ستار په نوم څښتنه　　　اې رحيمه خاص د رحم کړه پالنه

اولو العزم مرسلان چې په لرزش وي　　　د دې خوار بنده به څه جواب دهش[۲۸۴] وي

په محشر باندې صدا د خاص کرم کړه　　　دغه سپی د پاک حبيب دې پرې خورم کړه

چې يې سپی شمارمه ځان مجد سابق يم　　　دا په دا د دې لويې کله لايق يم

ولې خاص کرم که چېرې ستا رهبر شي　　　دغه مس به له دغه اکسيره[۲۸۵] زر شي

که نامزد د محمد په رفاقت شوم　　　دلېکن نه يې د سپو په منزلت شوم

هسې فضل خاص په نوم ددې صديق کړه　　　له سګانو يې د سپو محمد رفيق کړه

# در محمدت عثمان غني رضی الله عنه

---

اې بلبلې د خبراء[۲۸۶] سحر آموزې　　　راشه راشه د اقدس د باغ فيروزې

هم له مانه شې پيدا او له مانه يې　　　کړې نوا په باغ زما او زما نه يې

نه پوهېږم چې ته راشې له کوم ځايه　　　بيا په کوم چمن جلوه کړې وايه وايه

[۵۳] منقش صورت له قسمه د طاووس کړې　　　آراسته او پېراسته، لکه عروس کړې

په نوا کښې تويوې خوږې شکرې　　　فرېفته دې دا جهان کړ افسونګرې

اوس په نعت ددې مير شيرين زبان کا　　　څنو[۲۸۷] حق د محمدت ددهٔ بيان کا

هسې دايم درېيم يار ددهٔ عثمان دهٔ　　　چې جامع دے د علومو د قرآن دهٔ

له عمره دروسته دے صاحبقران دهٔ　　　دے په تخت د خلافت باندې سلطان دهٔ

پر همه جهان افضل وهٔ هم بهشتي وهٔ　　　هم لايق د خلافت د پاک سرور وهٔ

له علومو نه يو بحر بې پايان وهٔ　　　هم حليم وهٔ حيادار د حيا کان وهٔ

د حيا نور يې ختلے وهٔ آسمان ته　　　چې يې نه کتل له شرمه پرې حيا ځان ته

معزز دے په دوه نوره د نبي وه    ځکه نوم يې ذوالنورين[288] عربي وه

چې په تخت د خلافت باندې سرور شه    د اسلام شمس و قمر پرې روښنتر شه

هم د کفر ظلمات واړه برهم شو    څوک چې نه شو مسلمان په جهنم شو

چا حاصل ترې شبچراغ د بنه اسلام کړ    خو کافر له خپل ځيګر يې خون آشام[289] کړ

[۵۴] د غنا حديې وتلې وه له حده    چې پرې وه مهرباني له پاک احده

هيڅ سلطان[290] يې همال نه وه په غنا کښې    مستغني وه له دولته په دنيا کښې

دے د غيب په خزانو باندې سلطان وه    دا انعام ورته له در د پاک سبحان وه

هم سخي وه هم کريم وه هم شجاع وه    له پرتوه يې جهان ډک له شعاع وه

مريده[291] يې دريې ترې يې په دربار کښې    وه څرګنده يې سخا په هر ديار کښې

کافران يې کړه ماړه له کفره خپله    هم د حق توره په خون يې مړه کړله

هدايت يې شمع هسکه د اسلام کړه    شجاعت يې بېرون توره له نيام کړه

آفرين په هسې لاس په هسې توره    چې جهان يې په اسلام کړلو پرتوره

لکه برق چې ورېشمخ[292] پر مخ د ميغ شو    هسې غرق د ده له لاس په کفر ميغ شو

په فوجونو د کفارو يې برے وه    جوړ د ګړو په کنډک نهار زمرے وه

يا په سېل کښې د چرچنو تېغون بازوه    يا هماے وه په زاغانو په پرواز وه

چې مرکز به يې د تېغ په چمکاره[293] شه    زړه او ځان به د کافر په تاراه[294] شه

[۵۵] په يوه ګوزار[295] به يې پرې کړل هزار سره    په يوه حمله به[296] مړل[297] هزار کافره

که رستم وه د دوران مخ له ورغلے    تېغ ايسته ته يې امان نه وه موندلے

که ايمان کو چا قبول ده په امان کړه    په کفارو يې ماړه د دشت لېوان کړه

د کفارو په خون سره شو ګيا هونه    کېږدے يې ورلې باد په فرسنګونه

هم د غرونو درنده چاق و چالاک شو    چې له غوښو د کفارو په خوراک شو

لکه رعد په غرا د اسلام دور ده    چې ورک شوے له جهان د کفر جور ده

په ظاهر کښې کليم پوش فقير حيران وه    په باطن کښې شهنشاه د کل جهان وه

سلاطین د زماني سګان دي وو | په تعظیم او په تکریم دهٔان دده وو
هسې وروستو له صدیقه له عمره | سلطاني یې په جهان وه روښنتره
هسې شمع د جهان د شبستان شو | چې روښن یې له پرتوه کل جهان شو
اې ساقي داکړه پیاله له مې لبریزه | په خاص نور د معرفت سره آمین ه
چې په کنج د خرابات کښې خرابه شم | له حیاته شم ممات، ممات زنده شم

[۵۶] جهاندار په خاطر ددې سلطان | چې هادي وه د جهان نور کیهان[۲۹۸]
خاصه دوست د حبیب محفل آرای وه | په دوستي او په اخلاص انګشت نما وه
په ده بانډې آراسته د دین بساط شو | د اسلام په محافلو کښې نشاط شو
د امسکین مداح دده چې تل په شور دی | په سیاهي د ګناهونو یې مخ تور دی
هسې توره د عمل نامه د ده ده | چې ترې توره په ګناه جامه دده ده
هسې ومې کړه ګناه پاکه سبحانه | چې کرام الکاتبین مې کړه ستومانه
ولې ستا فضل، کرم که مې همراه شي | امید کړمه چې به عفوه داګناه شي
کمترین یې د سګانو خاک پا[۲۹۹] دی | امید داره ستا د لطف د عطا دی
جود وجود طمع کوي له تا ذیجود[۳۰۰] ه | اې زما خالق احد ربه معبوده
چې هر سپي نمک پرور د کوم خانه وي | په ګردن یې د خاوند یو نشانه وي
هومره سوال ستا له کرم "محمد رفیق" کا | در په غاړه ګردنئ ددې صدیق کا

## در محمدت حیدر کرار[۳۰۱] رضی الله عنه

[۵۷] ځلورم یار یې علی ابن طالب وه | چې لقب یې اسد الله الغالب وه
چې خطاب ورته د رب د اسد شنه | د کرم د شجاعت وه لویه ونه
هم په شان کښې یې حدیث د پاک سرور دی | چې زه ښهر یم د علم علي در دی

سر تهٔ پایه لوے قلزم د شریعت وهٔ — شکته پورته عظیم یم[۳۰۲] د معرفت وهٔ

پهٔ کرم پهٔ شجاعت باندې نامن د وهٔ — خاصه دوست د پاک احد د محمد وهٔ

پس لهٔ درې داړو یارانو د رسول — دے پهٔ تخت د خلافت شولو مقبول

پهٔ جهان کښې پس لهٔ دوئ نه دے بهتر — تر قمره تر آفتابه روشنتر دے

پهٔ جهان به پېدا نهٔ شي بل بل هسې — چې لهٔ دهٔ نه به افضل وي افضل هسې

نیا یې نوم ایښے حیدر رسول کرار وهٔ — چې درغلے دے پهٔ جنګ دبد پهٔ دار وهٔ

شهنشاه د ذوالفقار دلدل[۳۰۳] سوار وهٔ — د قرېشو پهٔ حلقه کښې شهسوار وهٔ

چې دا هسې شهسوار ذوالفقار نشته — نورم قسم پهٔ دا جهان کښې سوار نشته

آفرین پهٔ هسې لاس و پهٔ شمشیر شه — هم په هسې شهسوار د شېر و شېر شه

ګردنونه یې کړه مات د ګردن کشو — هر چې کفر کښې پېدا وو لهٔ سرکشو

[۵۸] تېرله تېغ یې هسې هتې غتې کافران کړه — پهٔ انکار یې جهنم وته روان کړه

که ګوزار یې د خنجر پهٔ سر د پیل شهٔ — لکه موش به یې د ضرب لاندې ذلیل شهٔ

کهٔ ګوزار د ذوالفقار به یې پهٔ غر شهٔ — صفه غر به دو پاره لهٔ بېخ تهٔ سر شهٔ

که ګوزار یې پهٔ سرین[۳۰۴] د شېر شمشیر شهٔ — پهٔ یو زخم به یې لاړ پهٔ زمکه زیر شهٔ

بل دلېر نشته پهٔ نورو پهٔ مېخ هسې — چې یې لاس ایښے پهٔ موتي د تېغ هسې

نهٔ حیدر غوندې سور داغ پهٔ جهان کښې — نهٔ دلدل غوندې فرس پهٔ هسې شان کښې

هم پېدا پهٔ غبرا نهٔ شو شمشېر هسې — چې لهٔ یو زخم یې زېر کړلو شېر هسې

چې قدم به یې د زمکې له ناف پاس کړ — بل قدم به یې پهٔ غرهٔ کښې د قاف پاس کړ

پهٔ هر وخت چې به یې تاخت یالغت[۳۰۶] کړ — دا یې داړه د حضرت پهٔ برکت کړ

چې به ګډ شو د کفارو په پړو کښې — لکه شېر په اصطبل[۳۰۷] لاړ شي د خرو کښې

منهزم به شو[۳۰۸] د شېر لهٔ ډېرې وېرې — الوتې به یې د ګوے غوندې کېږې

[۳۰۹] چې څرګند به ذوالفقار زبانه دار شهٔ — تا به وې عظیم اژدر بېرون له غار شهٔ

[۵۹] مهماني به د کفارو صورتونه — بسته شوې پهٔ خنجر د اسد[۳۱۰] وونه

پہ تیښ بہ یې رابنکل پۂ فراخ کومې (۳۱۱) — لکہ څوک چې د زلال پیالہ وښــو مې (۳۱۲)

دښمنان کہ بہ دخدا ے د رسول وونہ — کہ بہ سل کہ بہ هزار کہ بہ کرو ړونہ

دغہ داړہ مهمانی د ذوالفقار وو — پۂ گردن بہ یې اختہ غاښ د ښامار وو

کہ وړہ تېرہ دحیدري اژدر دندان وو — ولې پڅ دوئې پۂ گردن د مسلمان وو

چې خطاب ددۂ حضرت علی حیدر دۂ — پۂ صفونو دکفارو کښې صفدر دۂ

هم دلدل چې پۂ سرعت باد سبا دۂ — بلکہ باد سبا پس یې لۂ هوا وۂ

پۂ هر وخت چې د سرعت پۂ یو یوتک شو — گویاکښ بہ پۂ غبرا کښې ډک ورک شــو

دمطلب څې تہ بہ تللې پۂ یو آن وۂ — بلکہ آن بہ پۂ رفتن ورتہ حېران وۂ

چې دلدل غوندې فرس حیدر سوار وي — هم دې هسې سور پۂ لاس تېغ ذوالفقار وي

کہ د قاف غوندې دکفر بلند غر وي — هم لۂ دیگہ کافران زیادہ تر وي

چې دحق مدت لہ دوئې سرہ همراہ شي — پۂ یوہ طرفة العین کښې بہ تباہ شي

[۶۰] دغہ هسې شجاعت حضرت علی کــړ — چې جهان یې لۂ اسلامہ منجلی کــړ

لکہ دۂ حق د اسلام ادا پۂ تېغ کــړ — کوم احد هسې ادا پۂ نورو مېغ کړ

خو لۂ درې یارانو کوز پۂ منزلت دے (۳۱۳) — دا مذهب هم د سنت دجماعت دے

چې لۂ دې لارې خطا شو روافض دي (۳۱۴) — روافض دي هم دحق لارې ناقص دي (۳۱۵)

اې خاوندہ پۂ خاطر د شېر علي هم — چې فضل پرې د اسلام شو منجلي هم

هم ددۂ پۂ هغہ جد دجهد تمام — چې یې کړے دے دپارہ د اســـلام

هم ددۂ پۂ سلطانۍ پۂ درویشي — چې لۂ دۂ شوۂ پۂ جهان ددین بیشي (۳۱۶)

هم ددۂ پۂ تېغ کشي د وړہ اخلاص — چې یې کښ کړ د اسلام دپارہ خاص

دا کمتر بندہ مسکین چې بېچارہ دے — دگناہ پۂ تېغ یې زړۂ پارہ پارہ دے

بې لۂ تا وسیلہ نۂ لری جمیلــــہ — پۂ دنیا او پۂ عقبیٰ رب الجلیلــہ

تۂ آگاہ دانا بینا پۂ حال زما یې — هم رحیم ، کریم ، غفور و بې پروا یې

هم ددۂ پۂ دوے مې و بخښــہ خښــتنہ — زۂ عاصي ستا لۂ درگاہ کوم څوښتنہ

[٦١] امان راکړه د ابلیس له حرکاتو        هم د خپل رحم له خاصو برکاتو

پهٔ خپل سگ دغه منت کښېږده منانه        امان ورکړه لهٔ غار ته د ایمانه

گنهکار "محمد رفیق" چې ښه ترې عارکا        نالایق ښه دي لایق د خپل دیدار کا

# در مدحت پیر دستگیر روشنضمیر رحمة الله علیه

---

اې ساقي ډک دباقي خمرو ساغر کا        هم دې خپل بادہ کشانو لره ور کا

دا پهٔ دا چې پهٔ جنت کښې موندهٔ نشي        بې فنا نه پهٔ بقا کښې لیدهٔ نهٔ شي

اوره لبرېز یې پهٔ تعجیل شفق زیاتیږي[٣١٧]        د میخوار دستاریې[٣١٨] وخت تیرېږي

یو خو نشته اعتبار پهٔ عمر هو مره        بل دښمن د میخانې دے قاضي دومره

دروازه د میخانې کړه مستتره[٣١٩]        قلقله[٣٢٠] د صراحي کړه خفیه تره

لهٔ دې خم جاوداني لرې سرپوش کړه        ساکنان د خرابات باندې بیهوش کړه

اې ساقي ستا پهٔ پیاله کښې چې دولت دے        نهٔ پهٔ علم د قاضي کښې دا نعمت دے

چې پیاله دې د شرابو ده پر نوره        میخوارهٔ بې[٣٢١] تر محشره وي مخموره

[٦٢] چې دا ستا پهٔ پیاله سبزه کښې نعمت دے        خالق کله پیدا کړے پهٔ جنت دے

کهٔ دا ستا د پیالې یو ر شحه پهٔ څکه[٣٢٢]        هشت بهشت به داړه خرڅ[٣٢٣] کا پهٔ کڅکه

ته پهٔ خپله زمانه فرد الزمان یې        پهٔ جلوه او پهٔ جمال ته نور رخشان یې

اولیا د زمانې دې پېرو دان دي        که او تاد[٣٢٤] دي که ابدال دي که قطبان[٣٢٥] دي

زمانه دې قاف تهٔ قاف ده مسخره        هم اولاد یې د حضرت حسن غوره

اولیا دو کښې شاهي پهٔ نامه ستا ده        مفلسي او گدایي پهٔ نوم زما ده

جهاز ډوب وهٔ پهٔ دریاب د دولس کالو        تا ایسته[٣٢٦] پهٔ مدت د ذوالجلالو[٣٢٧]

پهٔ دعا چې دې لاسونه پاس پر نور کړهٔ        سوالات دې مستجاب رب الغفور کړهٔ

چې په ورځې د امید او هم د بیم ‌‌ ‌ وین بدان به بخښي نیکو ته کریم

ګوندې وي چې ماته ستا په روے کریم ‌ ‌ ګناه عفوه کړي غفور، رحمٰن، رحیم

رب دپاده اې زما پیر دستګیره ‌ ‌ د ایمان تسلیم مې غواړه له قدیره

چې دا نصیب ابدي نعمت له مانه ‌ ‌ خیرن نه کاندي ابلیس اېخوږ ته ځانه

[۶۳] لکه څوک چې شفقت کا په فرزند خپل ‌ ‌ ما دپاره عرض وکا په خاوند خپل

چې مې عفوه کړي ګناه رب الودود[۳۲۸] ‌ ‌ په عزت او په حرمت د خپل محمود

پسې وبخښې زما ما در پدر هم ‌ ‌ استادان چې مالکان مې دي د سر هم

هم په دارو مؤمنانو مهربان شې ‌ ‌ په صدا د رحم خاص عفوه ګویان شې

پاتې نه شې په حلقه د بیګانه کښې ‌ ‌ په عقبیٰ او په دا هسې زمانه کښې

هم طاقت مالره دا کاندي دوچند ‌ ‌ کړمه جوړ دغه کتاب چو شهد و قند[۳۲۹]

هم مقبول شي په کافه د مومنانو ‌ ‌ خصوصاً بیا په حلقه د عالمانو

د حضرت په سجاده چې همنشین دے[۳۳۰] ‌ ‌ له سروره مخاطب خیر الامین دے

د نبیانو د میراث دوئ وارثان دي ‌ ‌ هم د دارو مخلوقاتو هادیان دي

نور مخلوق دے زر خرید د عالمانو ‌ ‌ که څوک نوړ دے که جدید د عالمانو

هر سړے چې به دعوه د دین اسلام کا ‌ ‌ له اول به د عالم نه ځان غلام کا

چې غلام د عالم نه شي کار ظاهر دے ‌ ‌ په آیات او په حدیث سره کافر دے

[۶۴] هر سړے چې ځان مریبې دعالم نه کا ‌ ‌ دا بنده به پرې د کفر حکم و کا

عالمان دي صاحبان په هر زمان کښې ‌ ‌ د جهان دي هادیان په هر زمان کښې

دا بنده حلقه بګوش د عالمانو ‌ ‌ سعادت کړ خلعت پوش د عالمانو

همیشه ده زندګي د عالمانو ‌ ‌ په قیامت فرخنده ګي د عالمانو

عالمان پس له نبي نه شافعان دي ‌ ‌ په محشر پرې رستګاره عاصیان دي

له دیدار یې تازه ګي د دین ایمان ده ‌ ‌ هم به دوئ فرخنده ګي[۳۳۱] د دین ایمان ده

که دوئ کښیني فراغت به دا جهان کښې ‌ ‌ شي به پورته ضلالت په دا جهان کښې

"محمد رفیق" یې سپه قلاده داردے دایمی د عالمانو خدمتگار د ے

# مناجات بردرگاه مجیب الدعوات[۳۳۲] جلشانه

---

اې زما رحیم رحمانه مهربانه مهربان په بنده گانو له هر چا نه
ته غفور، حلیم بادشاه بوزش پذیریې[۳۳۳] په دا خپلی بادشاهی کښې بې نظیریې
بیا راغلے دا بنده چې گرېخته[۳۳۴] دے آب د مخ یې په عصیان سره رېخته دے[۳۳۵]

***

[۶۵] د خجلت سترگې مې پښت پاته گوري لکه څوک چې په غره سوراد په مخ توري[۳۳۶]
د عمل نامه مې ډکه له گناه ده سر ته سره په گناه سره سیاه ده
بیا راغلے دا بنده چې گرېخته دے آب د مخ یې په عصیان سره رېخته دے

***

دلې ته یې مستغني له هر حاجته محتاج نه یې د بنده تر عبادته
د خلاصې دروازه نه وینم بله یم راغلے پښېمان په گناه خپله
بیا راغلے دا بنده چې گرېخته دے آب د مخ یې په عصیان سره رېخته دے

***

په خاطر د رحمة للعالمین په حرمت هم د سید المرسلین
چې صاحب د تاج و تخت دے د لولاک عفوه غواړي ستاله درسگ بې باک
بیا راغلے دا بنده چې گرېخته دے آب د مخ یې په عصیان سره رېخته دے

***

په خاطر د اهل بیتو مشرفو په خاطر د اصحابانو معرفو
په خاطر د بزرگانو صالحانو په خاطر د عالمانو هادیانو

بیا راغلی دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره ریخته دے

***

[٦٦] هر چې ستاله حسې لوېږي درګاه رد شي — په کوم درکښې به قبول هغه اشد شي

چې مالک پروردګار زما ته یې — په محشر کښې دستګار زما ته یې

بیا راغلی دا بنده چې ګرېخته دے — د آب مخ یې په عصیان سره ریخته دے

***

په عزت د هغو پاکو شهیدانو — په مردي په شجاعت د غازیانو

چې یې سر د حق د پاره ورکولو — زه امید ستاله درګاه کړم د بخښلو

بیا راغلی دا بنده چې ګرېخته دے — د آب مخ یې په عصیان سره ریخته دے

***

که هر څو زه په ګناه کښې آلوده یم — هم له خپلو ګناهونو شرمنده یم

چې مې کړي ګناهونه بې پایان — پرې کرام الکاتبین مې کړه ستومان

بیا راغلی دا بنده چې ګرېخته دے — د آب مخ یې په عصیان سره ریخته دے

***

که بنده له خپل خاونده فرار وکا — دې مشکل چې په بل درکښې قرار وکا

عاقبت له خپل کرداره شرمنده شي — لکه دې هم د هغه خاوند بنده شي

بیا راغلی دا بنده چې ګرېخته دے — د آب مخ یې په عصیان سره ریخته دے

***

[٦٧] شهنشاه یې ته د عرش د سماوات — له اوله تو آخر د کائنات

پادشاهي دې همېشه ده بې زواله — هیڅ تغیر تبدیل یې نشته له هیڅ حاله

بیا راغلی دا بنده چې ګرېخته دے — د آب مخ یې په عصیان سره ریخته دے

***

که قبول دا ناقبول کمینه بنده کړې — د غفران په بنه صدا معزز دے کړې

خاص د تا د مرحمت ته نهٔ ده گرانه — هره گرانه ده پهٔ تا ډېره اسانه
بیا راغلې دا بنده چې گرېخته دے — د آب مخ یې پهٔ عصیان سره ریخته دے

***

چې د بنکلې لهٔ گناه توبه کړم ماته — بیا امید د مغفرت لرم و تا ته
گرېخته شه لهٔ نفس و لهٔ شیطانه — التجا مې ده پهٔ تا ربه سبحانه
بیا راغلې دا بنده چې گرېخته دے — د آب مخ یې په عصیان سره ریخته دے

***

که هر څو چک پهٔ گناه یم زهٔ الله — لولم زهٔ پهٔ هر زمان حَسْبِیَ الله [۳۳۷]
کل امید یې په آیات لَا تَقْنَطُوا [۳۳۸] دے — هر زمان مې پهٔ زبان کښې وَاشْکُرُوا [۳۳۹] دے
بیا راغلې دا بنده چې گرېخته دے — د آب مخ یې پهٔ عصیان سره ریخته دے

***

[۶۸] تهٔ پهٔ مونږ یې مهربان لهٔ موره پلاره — هم لهٔ دوسته لهٔ عزیز لهٔ جانې یاره
پهٔ خفیه گناه خبر د گنهکار یې — بیا دستر د گناه یې ته ستار یې
بیا راغلې دا بنده چې گرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره ریخته دے

***

پهٔ غضب که تېغ د حکم کشیده کړې — مقرب ملک به داړه لرزیده کړې
که صدا د هیبتهٔ کړم لهٔ تا جلیل شي — امید وار به لهٔ نصیبه عزرائیل شي
بیا راغلې دا بنده چې گرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره ریخته دے

***

نا امیده ستا لهٔ رحمت څخه شیطان دے — امید وار دې د خاص رحم مسلمان دے
امیدوار ستا لهٔ رحمة یمه منا نه — هغه وخت چې مې ځي روح جدا لهٔ ځانه
بیا راغلې دا بنده چې گرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره ریخته دے

***

ته خپل خاص فضل وکرم زما همراه کړې — بند له ما شدید لعین ابلیس ګمراه کړې
هغه وخت چې مې رفتن دې له جهانه — زړهٔ سلیم غواړم له نوره د ایما نه
بیا راغلے دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره رېخته دے

***

[۶۹] چې انیس مې شي لحد او خاورې توري — شي تختې د تنهایي راپسې پورې
راته عفوه کړې د زمکې سخت عذاب ته — اې رحیمه د مخ تورو یې وحساب ته
بیا راغلے دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره رېخته دے

***

چې پوښتي سوال وځواب منکر نکیر — خاصه فضل کړې همراه له ما فقیر
ماګویا ربه په خپل وحدانیت کړې — هم ګویا مې د حضرت په رسالت کړې
بیا راغلے دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره رېخته دے

***

نور لحد راته د خپل فضل (۳۴۰) خوانچه کړې — تر محشر یې په بهشت کښې باغیچه کړې
په محشر مې له سکانو د دوست شمار کړه — یا دده د سپو د سپو مې خدمتګار کړه
بیا راغلے دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره رېخته دے

***

په صراط (۳۴۱) مې لکه برق لامع تېر کړې — دښمنان مې په دوزخ کښې نګون زیر کړې
د میزان حساب کتاب په ما آسان کړې — مرحمت په دا ضعیف بنده حیران کړې
بیا راغلے دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره رېخته دے

***

[۷۰] د عمل نامه په ښي لاس راعطا کړې — زما عفوه مسترې کل ګناه کړې
له دوزخه امان راکړې ما ربه — د حضرت په روے له قهره له غضبه
بیا راغلے دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره رېخته دے

هم داخل مې په جنت کښې جاودان کړې — په شرف مې د لقا معموره ځان کړې

په دنیاکښې مې خم پښت په عبادت کړې — په امان مې له حرام له معصیت کړې

بیا راغلې دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره ریخته دے

* * *

کاهلي د بې نمازي له مانه دور کا — هسې چست په عبادت کښې مامعذور کا

امان راکړه د زمان له درنده وو — بر ناحق د مسلمانو کشنده وو

بیا راغلې دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره ریخته دے

* * *

امان راکړه د دوران له غمازانو — دیو سیرته په صورت د آدمیانو

په ظاهر کښې د آدم په شکل شان دي — په باطن کښې ټول له پښته د شیطان دي

بیا راغلې دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره ریخته دے

* * *

[۱۰] بر ناحقه ستا په ذات باندې قسم خوري — دا د پاره د دینار یا د درهم خوري

په څلور انې به ښځه کړي طلاقه — دا ړه ډک دي له بهتانه له نفاقه

بیا راغلې دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره ریخته دے

* * *

شېطانت له سینه بېره په شا نه کړي — ځان و خلقو ته هادي په زمانه کړي

په سر وتړي پګړه ببره سپینه — دا حکمت یې دے یاد کړے له لعینه

بیا راغلې دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره ریخته دے

* * *

هم هسا د شېطانت داخلي روان شي — د ناحقو شاهدو باندې شېطان شي

امان راکړه له دې هسې شېطانانو — اې خاونده په خاطر د مرسلانو

بیا راغلې دا بنده چې ګرېخته دے — آب د مخ یې په عصیان سره ریخته دے

نوم پهٔ خان باندې حاجي سید زاده کړي — بر ناحقه باندې خان حرامزاده کړي

پهٔ احمد باندې بهتان وایي بدرګ شي — لهٔ تحقیقه د دوزخ د کندې سګ شي

بیا راغلا دا بنده چې ګربخته دے — آب د فخر یې پهٔ عصیان سره ریخته دے

***

[۷۲] چې عالم پهٔ دا صفت سره موصوف شو — پهٔ آخره زمانه باندې معروف شو

خصوصاً دي دوه کسان پهٔ اکبرپوره — چې دي خاص پهٔ شیطانۍ سره مشهور

بیا راغلا دا بنده چې ګربخته دے — آب د فخر یې په عصیان سره ریخته دے

***

ظاهراً د دوئي تسبیح مسواک پهٔ لاس دے — پهٔ باطن پهٔ مورخطے یې خناس دے

که پهٔ دوه انې خوکان څوک دلاسه کا — پرې طلاقه منکوحه پهٔ ثلاثه کا

بیا راغلا دا بنده چې ګربخته دے — آب د فخر یې په عصیان سره ریخته دے

***

دا عاجز موسی د خاک ترې پهٔ امان کړې — غلطیده پهٔ جهنم کښې شیطان کړي

محمد رفیق «که پسه د خپله حبیب کړې — د تقدیس[۳۴۲] د چمن زاریې عندلیب کړې

بیا راغلا دا بنده چې ګربخته دے — آب د فخر یې په عصیان سره ریخته دے

## دربیان مخالفت نفس اماره گوید

---

اې ساقي راوړه باده خرد افروزه — باده هسې چې د دل مې وي غم سوزه

د دنیا لهٔ ناکسانو نه مې دور کړه — پهٔ خپل نور مې دغه وریت زړګے معمور کړه

[۷۳] د غضب آتش مې ووځي لهٔ دماغه — یم روان ددې آیت[۳۴۳] لهٔ شبچراغه

## وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ ط وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ○ (۳۴۴)

---

چا چې قهر کړلو تېر پهٔ ځان قهار شو — پهٔ دنيا او پهٔ عقبیٰ کښې رستګار شو
هغه کس به احمق تر پهٔ دا جهان وي — چې پهٔ نفس او پهٔ هوا پسې روان وي
لا پهٔ دا دپاسه دے کوي ګمان — ما به وبخښي غني قادر سبحان
پهٔ دنيا که ډېره سخته درويشي ده — و ليکن پهٔ عاقبت ځے د خوښي ده
هر سړي ته چې دا نفس سرکشه دام شو — پهٔ کاڼه د خرد مندو کښې نيک نام شو
پهٔ مراد د نفس به هله زور آور شي — چې د صبر پهٔ کشور کښې سکندر شي
ګو شمالی کوه د نفس تل پهٔ دين کښې — هسې نه چې دې ګذار کا پهٔ سجين کښې
رو ګردان که لهٔ جاهلو پهٔ هرحين شي — نور پهٔ ګنج د سلامت به همنشين شي
سر تهٔ اسره ډوب پهٔ خوب کښې دا جهان نه — بېدار هغه چې يې ځے پهٔ ګورستان دے
که لهٔ چا شوې رنجيده عذر قبول کا — مغفرت لره خوشحاله ځان ملول کا
[۴۲] چې دښمن د ذوالجلال دے خلق آزار دے — دا خصلت کله د پاک سړي ديندار دے
پهٔ ستم که د مومن خاطر دې ريش کړ (۳۴۵) — دغه ريش دې پهٔ تحقيق پهٔ وجود خوېش کړ
هغه کس چې يې تل کار دل آزاري وي — پهٔ قيامت کښې به اخته پهٔ صد خواري وي
اې مومنه پهٔ هېڅ وخت دل آزار مهٔ شه — پهٔ دې کار کښې لهٔ خالقه بېزار مهٔ شه
زړهٔ د چا مهٔ رنځوه واوره نېکخو يه — دا به زخم ستا د زړهٔ شي واوره زويه
نوم د هر سړي پهٔ نيکو ډېره بهتر وي — دغه کار کړي چې پهٔ دين کښې معتبر وي
که قوت دې د نيکۍ نهٔ وي بد مهٔ کړه — پهٔ وجود خپل باندې ظلم بېحد مهٔ کړه
هم کړه ژبه لهٔ غيبت د خلقو بنده — چې رها شي تل د بند لهٔ بد ګزنده
چې يې ژبه لهٔ غيبته بسته نهٔ وي — پهٔ قيامت به لهٔ عذابه رسته نه وي (۳۴۶)

ساقي پورته کړه پياله طرب انگيزه  زوړ نهال مې کړه د عمر پرې نوخيزه

نقد د عمر هسې غرق شوله رفيقه  لکه شي د ے پياله په خم غريقه

# دربیان فواید خاموشی گوید

---

[۵۵] اې بلبله دا قدس د باغ چراغه  په نوا مې آلم دور کړه له دماغه

پسې پرې مې د سکوت په تيغ زبان کا  پس له دې بريده گي يې غوش الحان کا

واوره دروره که طالبې[۳۳۷] حق طلب ته  بې له حکم د رب مه پرانيزه لب ته

که خبر لرې له حُ لايموت ته  مدام کښېږده په خوله مهر د سکوت ته

اې مومنه دغه پند کړه بنه په گوش ته  که نجات غواړې مدام اوسه خاموش ته

هر سړے چې په هر وخت ډېر بسيار کا  په سينه کښې به د ننه زړه بيمار کا

مدام کسب د عاقلانو خاموشي ده  هسې کسب د جاهل فراموشي ده

خاموشي له زور غيبته ده واجبه  ډېر احمق چې ډېر ډېر کوي طالبه

بې درب له ثنا مه اوسه گويان ته  بې ثنا بېهوده مه وايه پرېشان ته

چې په بند د عبارت کښې شولو پاتې  د شکر نخښى ترې لوټ شي زياتې زياتې

په بدن کښې زړه شي مړ په ډېر گفتن  که يې هر خبره دُر شي د عدن

چې خبره بېهوده کښې فصاحت کا  په تحقيق د زړه خبره[۳۳۸] به جراحت کا

[۵۶] لاړ شه ژبه په دهان کړه محبوسه  ځان پنهان کړه شه له خلقونه مايوسه

هر سړے چې په خپل عيب باندې بيناشي  د ده روح له به عظيم قوت پېدا شي

د ساقي قدمبوسي په صبحدم کړم  په پياله د محبت يې لرې غم کړم

که باده د محبت د ساقي نه وي  زنده گي به د مستانو باقي نه وي

# دربیان عمل خالص گوید

سره مینوکه جامه سبزه خوش الحانه ‏ ‏ ‏ ‏ شکر خوره طوطي (۳۴۹) داشه تر بستانه

لکه تېره په بهار جلوه د ګل شوه ‏ ‏ ‏ ‏ هسې پاتې ستا نوا په (۳۵۰) تجمل شوه

څوک چې اصل د ایمان وي اې عزیزه ‏ ‏ ‏ ‏ څلور څیزه به کړي پاک له څلور څیزه

پاکیزه ځان د کینې له ګرد غبار کا ‏ ‏ ‏ ‏ پس له هغه ځېل دجود په مومن شمار کا

پاک له کذب له غیبت څخه زبان کا ‏ ‏ ‏ ‏ ځان په بیرته له نقصانه د ایمان کا

که عمل دې پاک وصاف تل له ریا وي ‏ ‏ ‏ ‏ د ایمان شمع به تل ستا په منیا وي

که دې خېټه کړله پاکه له حرامه ‏ ‏ ‏ ‏ سلامت به په دوه کونه شې نېکنامه

[۷۰] هر سړے چې دا صفت لري شریف دے ‏ ‏ ‏ ‏ اوکه نه لري، لري ایمان ضعیف دے

چې یې خېټه له حرامه نه دي پاکه ‏ ‏ ‏ ‏ روح یې کله موې لاړه تر افلاکه

چې ناپاک یې عملونه له ریا وي ‏ ‏ ‏ ‏ بې حاصل په شان د نقش د بوریا وي

چې عمل کښې د بنده نه وي اخلاص ‏ ‏ ‏ ‏ د خالق له بنده ګانو نه دے خاص

هر سړي له چې عمل خاصه د حق وي ‏ ‏ ‏ ‏ د ده کار به پېوسته تل د رونق وي

اې ساقي صراحي راوړه خوش نفسه ‏ ‏ ‏ ‏ په قلقل مې یې زړه بېل کا له ناکسه

د ناکسو انجمن نقص د ځان دے ‏ ‏ ‏ ‏ بلکه زیات پکښې نقصان د ښه ایمان دے

# (۳۵۱) درسیر مذمه ملوک گوید

اې بلبل د صبحدمه صفت خوانه ‏ ‏ ‏ ‏ په سیر د شاهانو نکته دانه

د سرو ملو په چمن شناسا ته یې ‏ ‏ ‏ ‏ د هر ګل د اصل وبو، (۳۵۲) مواسا ته یې

څلور ځیزه اې عزیزه پهٔ جهان کښې — سلطانان ګوزار دي تل پهٔ نقصان کښې

بادشاهان چې پهٔ ظاهره پهٔ خندا شي — بې ګمان یې پهٔ هیبت نقص پیدا شي

[۸] که کښیني به پهٔ محفل کښې لهٔ فقیره — دا مجلس به یې بېشک کاندي حقیره

که لهٔ ښځو سره دے کښیني خلوت کا — دا بادشاه به هیبتي ځان بې هیبت کا

هر سلطان له چې فره جهانداري وي — همېشه به ددهٔ خوے کم آزاري وي

هر سلطان لره لازم دے عدل داد — چې لهٔ عدل نهٔ یې تل وي جهان ښاد

چې آهنګ د ظلم وکاندي بادشاه — نابکار دے که لري ګنج و سپاه

لهٔ زنانو چې سلطان پهٔ خلوت کښیني — پهٔ خیمه بې د حباب مملکت کښیني[۳۵۳]

هر سلطان چې پهٔ سپاه باندې کرم کا — ځان به قتل دهٔ دباره پهٔ یو دم کا

تعجیل وکا اې ساقي باده پیمایه — د ګل بوے دے په دفتن د باغ لهٔ سرایه

د بلبلو محفل جوړ پهٔ ګنج د باغ دے — مطرب پورته کړه صدا وخت د فراغ دے

# در بیان خُلقِ حسنه ګوید[۳۵۴]

د چمن پهٔ لور ګذر وکړه نسیمه! — بسته شونډې د ګل واکړه لهٔ شمیمه[۳۵۵]

ګل لهٔ دایه خنده زن ستا پهٔ راتلهٔ شي — چې دا ستا مهر و الطاف ورسره مله شي

[۹] څلور څیزه بزرګي له دي دلیل — هر سړے چې دا لري وي به اصیل

یو عزت د علم کاندي بې حسابه — د خبرې جواب کاندي لهٔ ثوابه

چې مومن لري دانش، عقل، تمیز — عالمان او حلیمان لري عزیز

بل پهٔ وصل د دوست سعې کړي کامله — لهٔ دښمن نه وېره خوف کوي عاقله

داوره دروره که خبر لري تمام — لهٔ مخلوق سره شیرین کوه کلام

هر سړے چې تلخ ګویه ترش روے شي — محبان به کناره ترې پهٔ هر سوے شي

هر سړے چې لهٔ دښمن نه کا حذر — عاقبت به تر ښه د موي ضـرر

هم پهٔ صنځ کښې د دوستانو مسرور اوسه — خبردار شه لهٔ دښمن څخه دور اوسه

مهٔ کړه ځے د دښمنانو پهٔ جوار کښې — چې دښمن لري بهتر دے پهٔ ديار کښې

له دوستانو سره اوســه همنشين — ځ مهٔ ګوره د دښمن ناکس لعــين

د عشق د لارې تل سازه تو ښه کړه — دغه دواړه ځے د زړهٔ پهٔ ښه ګوښه کړه

اې ساقي راکړه شېرين شربت د مېو — چې څېره[٣٥٦] ځي شي صفا د غم له څو يو[٣٥٧]

[٨٠] دا قسم خاصه پهٔ خُم کړم د شرابو — دو ښنايي ده د ايمان لهٔ ځے نابو

# دربيان امل[٣٥٨] سعادت گويد

باغبانه دروازه د چمن دور کړه — پهٔ محفل د نازنينو يې پر نور کړه

مفرش[٣٥٩] يې هم تخت ګوهر نګار کړه — جواهر او زبرجد باندې نثار کـړه

څلور څيزه دي اې درورة[٣٦٠] پر خطره — څو طاقت دې وي ترې ګرځه پر حذره

د سلطان قرب هم آتش سوزان دے — لهٔ هر يو سره الفت هلاک دځان دے

د نياز هر سرته سر پهٔ شان د مارده — آراسته ظاهر پهٔ نقش و پهٔ نګار ده

پهٔ ظاهر دې حسن داره پهٔ نظر کښې — خولهٔ زهرو يې تل اوسه پهٔ خطر کښې

د دې مار منقش زهر قاتل دي — تر ښه دور هغه کسان دي چې عاقل دي

طفل طور مهٔ کړه نظر پهٔ زېړو سرو کښې — زن صفت مهٔ شه مغرور پهٔ رنګ د بو کښې

د دنيا بوډۍ له نادې آراسته وي — پهٔ ساعت لهٔ څښتن بله پيوسته وي

څو مقبول چې شولهٔ دې جفتې نه طاق — درتې[٣٦١] شا کړه هم يې ورکړهٔ سه طلاق

[٨١] دواړه لب به وشو هر وته خندان کا — هم هلاک يې بيا پهٔ زخم د دندان کا

اې ساقي د سعادت ساغر کا پورتــه — دا تسبيح د ديا اچوم داور تــه

دل مې سرتهٔ سرلهٔ میو پیمانه کړه    پس لهٔ دې نه مې ملنګ په میخانه کړه

## دربیان اهل سعادت ګوید

راشه راشه د سحر خوشبو نسیمه    [۳۶۲] شقایق دې لهٔ فراقه شوهٔ دوه نیمه

ساکنان د چمن ګل بسته لبان دي    ستا راتلو ته پېچیده ولاړ حیران دي

چې دلیل د نېکبختۍ دي څلور څیزه    چا چې یاد کړهٔ پهٔ حرمت شو اې عزیزه

اصل پاک د نېکبختۍ دلیل سراج دے    چې بد ذات کله لایق د تخت وتاج دے

نېکبختان دروي پهٔ لاره د ثواب    بد ذاتان دروي پهٔ لاره د عذاب

چې بېغمه لهٔ عذابه څوک د حق دے    مسلمان نهٔ دے هغه کافر مطلق دے

د دنیا عمر څو ورځې نهٔ دے بېش    غافل هغه دے چې نهٔ شو پېش اندېش

لذتونه د جهان پرېږدئ یارانو    هم لمنې ونیسئ د کریمانو

[۸۲] واړه ترک لذتونه نفساني کا    هم دوستي ترکه دې دنیا فاني کا

بې حاصل دنیا دپاره زحمت وړل دي    عاقبت لهٔ دغه سرایه پهٔ مړګ تلل دي

چې له تن تخته دې روح روان نعیم شي    [۳۶۳] پهٔ غبن کښې به دې خاک عظیم رمیم شي

بې لهٔ روح درکول ستا څهٔ چاره نشته    [۳۶۴] هم رهزن یې بې لهٔ نفس اماره نشته

اې ساقي ستا پهٔ پیاله کښې برکت دے    چې ورکړې پکښې د سرو شونډو شربت دے

که رشحه ستا لهٔ شربت مې چشیده شي    لاله ګل به مې تر قبره دمیده شي

## درسبب عافیت ګوید

که بورا غوندې د خار لهٔ زخمه خېل شي    پهٔ چمن به شهنشاه پهٔ سر د ګل شي

لهٔ خلیل به همنشین شې پهٔ جنت کښې — زندهٔ گی به کړې پهٔ نازو پهٔ نعمت کښې

عافیت که دې پهٔ کار دے اې عزیزه — تل موندهٔ شي دغه کار لهٔ څلورڅیزه

بېغمي ده، بل نعمت د خاندان دے — تندرستي او فراغت پهٔ دغه شان دے

که نعمت د عبادت دې امانت وي — دا به څښه بېشک ستا د عافیت وي

[۸۲] چې تندرست فارغ پهٔ دل یې پهٔ ماواکښې — نورڅهٔ مهٔ کوره پهٔ دې فاني دنیا کښې

روان مهٔ شه لکه ړوند پهٔ کام د نفس — چې بندنه شې ناګهاپهٔ دام د نفس (۳۶۵)

د چل نفس هوا لره د څپو د لاندې (۳۶۶) — هم یې مهٔ منه هرګز چې وېل کاندې

نفس شیطان به دې غلط کاندي دلارې — غورځوي دې وکوهي ته که هوښیارې

نفس مدام لره سرکوب بخره یې خواره — څو توانېږې ورله ورنهٔ کړې مرداره

هر سړے چې نفس بد پهٔ څښته سېرکړي — پهٔ کولو د ګناه به یې دلېر کسړي

هم له هرې مزې خلق پهٔ امان کړه — چې پرې نهٔ شې ګنهګار فکر د ځان کړه

پهٔ خوردن مهٔ کړه ترشونډ وڅښته ډکا (۳۶۷) — چې انسان دې د حیوان خویونه نهٔ کا

پهٔ ورځ کم کوه خوراک که صائم نهٔ یې (۳۶۸) — پهٔ آخور باندې ولاړ بهائم نه یې (۳۶۹)

اې اودهٔ لهٔ شپې تهٔ ورځ پورې غافله — څوپورته کړه ډیوه ګور لره یله

ډېر خوراک بې د حیوان د خلقت نشته — هم اوده له څهٔ بهره د نعمت نشته

هسې مهٔ کوه ډېر خوب د غفلت پورته — بې دېلو د بل ګمان کړه اوچت پورته

[۸۳] پهٔ دنیا کمینه زرهٔ تړل خطا دي — که لمنه ترېنه ونغاړې روا دي (۳۷۰)

پهٔ کمینه دنیا څهٔ د زړهٔ تړل دي — پهٔ آخر ترې پهٔ افسوس روانېدل دي

آرایش د ظاهر تن مهٔ کړه فقیره — چې باطن وجود دې شي بدر منیره (۳۷۱)

هم طالب د هر وجود زیبا مهٔ شه — پهٔ طلب کښې د اطلس د دیبا مهٔ شه

لهٔ هوا کړه قدم تېر د رب بنده شه — پهٔ پوښاک د ګلیم باندې دل زنده شه

هم خرقه د پشمینې واخله بدوش کړه — پهٔ ساغر د نامرادي کښې شربت نوش کړه

هرچې تل د تن لباس پهٔ پشمینه کا — لهٔ کینې نه دې اول پاکه سینه کا

که نصیب دې ډې په کار له آخرته
له ځان لرې کړه لباس د فاخر تـه (۳۴۲)

په تکلیف مه شه د ځان په آرایش کښې
راحت مه غواړه د ځان په آسایش کښې

نه اغوستې دې دا ستا جامه زیباوي
نه تکیه دې ستا د پر په متکا دي (۳۴۳)

صوفي طوره په لباس کښې د صوف اوسه (۳۴۴)
د خالق په صفتونو موصوف اوسه

مرد راه له ، له دنیا نه څه سود نشته
هم یې فکر په خاطر د نابود نشته

[۸۵] مرد راه لره ساده پوزے قالین دے (۳۴۵)
دا په دا چې یې آخرجنته بالین دے (۳۴۶)

اې ساقي په سرو شرابو مې مخمور کړه
پس له صغه مې په دار ، لکه منصور کړه

ستا له اسمه مې قربان شه هزار ځانه
دغه مرګ مې دے ژوندون ته جاودانه

# در تواضع و صحبت درویشان

هر شجر چې د چمن ډک په ثمر شي
له دې خپلې ګرانیې ټکون سر شي

کړه دربرد تواضع خرقه جمیله
په هوا به شې همجنس له عزرائیله

که خود لرې له ځان سره قرین
شه درویش له درویشانو همنشین

مدام اوسه په صحبت د درویشانو
بېرته ګرځه له غیبت د درویشانو

له درویشه حُب کلید د بهشه جنت دے (۳۴۷)
په دښمن یې همیشه د رب لعنت دے

تل پوښش د درویشانو دے له دلقه (۳۴۸)
نه هوا یې د خپل کام نه یې د خلقه

څو کښېنې دې په تاراق د نفس پاے (۳۴۹)
کله لاړ مومې درګاه ته د لوے خداے

مرد د خداے کله په بند د قصر باغ دے
شقایق غوندې یې دل په سینه داغ دے

[۸۶] که دې سر د ماڼۍ رسي تر آسمانه
عاقبت به زمکې لاندې شې انسانه

د رستم غوندې که ستا قوت او زوروي
ځې به ستا لکه بهرام آخر په ګور دي

اې بنده له آخرته غافل مه شــه
په متاع د دې جهان څه خوشدل مه شه

د جهان پهٔ بلیاتو صبار اوسه (۳۸۰) (۳۸۱)
پهٔ نعمت باندې شاکر د جبار اوسه
ساقي مسته پیاله ورکه د مستي کړه
پرې لهٔ تنه مې بېرون وارۀ سستي کړه
چې دا ستا پهٔ پیاله نوش ے دخوښي کړم
پرې سوخته رخت د هوا د سرکشي کړم

# دربیان علامات شقاوت گوید (۳۸۲)

بیا عروس د فکر جوړ نوے جمال کړ
آراسته یې پهٔ زېور د نوي خیال کړ
جلوه زن شولهٔ دې خپل زېب و زینته
دا جهان یې کړ صفا له شقاوته
څلور څیزه چې آثار د بدبختۍ دي
جاهلي او کاهلي رخ د سختۍ دي
بېکسي او ناکسي وارۀ چهار شو
بدبختي لره پوره څلور آثار شو
هر سړے چې شي ساعي پهٔ عبادت کښې
دغه کس به شي پهٔ اهل د سعادت کښې
[۸۰] پهٔ هوا پسې چې چا قدم نهاد کړ
بې طاقت یې ځان د نفس لهٔ جهاد کړ
پهٔ جهان کښې چې مشغول پهٔ خواب وخور دي (۳۸۳)
پهٔ قیامت به یې پهٔ اور باندې گذر دي
دوگردان شه لهٔ مراد او لهٔ آرزوتهٔ
پس لهٔ هغه پهٔ دربار د رب کړه روتهٔ
کامراني راکاږي سرو ناکامي ته
مرد راه کړي خطکشي د نېکنامي ته
امر نهې دحق کړه پهٔ ځ مزید تهٔ
پېروي مهٔ کړه هرگز د نفس پلیدتهٔ
امر نهې دحق زده کړه لهٔ قرآنه
پهٔ دنیا ننشته بادي مهٔ شه شادانه
هر سړے چې د نفس ترکه کامراني کا
پهٔ خلاف تر بنه هېڅ زنده کاني کا
اې ساقي ډک لهٔ باقي مېو ساغر کا
هم د عشق باده کشانو لره ورکا
چې دا ستا د محبت لهٔ ے بېهوش شي
دوحدت پهٔ ترانه بې گوش وهوش شي (۳۸۴)

## دربیان ریاضت گوید وفرماید

بلبله گوره بلبل د انجمن شوه ــ قهقهه یې لکه کبک پهٔ دهن شوه
گل کوسر[۳۸۵] پهٔ گریبان لهٔ ریاضته ــ بلبل بند شو د دیدار لهٔ ښهٔ نعمته
[۸۸] شي بهٔ تل پهٔ کا ښاتو سربلنده ــ دروازه که د راحت کړي پهٔ ځان بنده
دروازه چې بند پهٔ ځان چاد راحت کړه ــ دروازه یې ځانته خلاصه د جنت کړه
بې لهٔ خدایه چې طالب شي د بل راه ــ پهٔ جهان کښې ترهغه ځوک دے گمراه
واوره دروره طلب ترک د عزوجاه کړه ــ ښایسته دې ځان درب پهٔ ښهٔ درگاه کړه
عزوجاه به دې سرکوز کړي وپستې ته ــ تا به کش کړي دایمي تن پرستې ته
تا به خوار کا دا طلب د عز د جاه ــ واوره دروره قرب غواړه د درگاه
نفس پهٔ ترک د هوا باندې مسکین وي ــ گو شمالي د احمق نفس همچنین دي
چې د زړهٔ لهٔ یاد د حق ځخه ایمن وي ــ دغه نفس اماره به دې رهزن وي
هر سړي له چې تکیه پهٔ پاک صانع وي ــ پهٔ جهان کښې پهٔ یوه توکړه[۳۸۶] قانع دي
اکتفا تهٔ پهٔ روزه پهٔ هر روزه کا ــ پهٔ هرځهٔ کښې لهٔ خاونده دروېزه کا
صبحدم دے ساقي ډک جام دشراب کا ــ زمانه معطلي نه لري شتاب کا
هغه مے چې دي روشن پهٔ جام دجم کښې ــ پرې به شم روشنضمیره پهٔ یو دم کښې

## دربیان مجاهدهٔ نفس گوید

اې بلبله هم قفسه له غرابه[۳۸۷] ــ ځو به یې پهٔ هر نفس کښې پېچ وتابه
پهٔ خوږه وینا صاحب وته ځان خاص کا ــ ځان ددې کریه[۳۸۸] منظر لهٔ دنسه خلاص کا

نفس وژلے شي بنده په خلور څیزه
دزته وایم ته یې یاد کړه اې عزیزه

په خنجر د خاموشي شمشېر د جوع
په نېزه د تنهایي ترک د هجوع (۳۸۹)

هر سړی لره چې نهٔ وي د اسلاح
هچېرې به یې نفس نهٔ شي په صلاح

په هر وخت چې زړهٔ بې یادو د الله وي
ملعون دېو به تل دده یار و همراه وي

دنیا دار لره چې سیم و زر بسیار وي
نور طعام چرب شېرین ورله بکار وي

هر سړے چې په بند د سیم وزر وي
عاقبت به په عذاب باندې مضطر وي (۳۹۰)

هر سړے چې د عقبٰی په بند وکار شي
شرافت به یې وخلقو ته بسیار شي

د دنیا مال دے همه د خاکسارانو
دلې بیاموند عاقبت پرهېز گارانو

پېر دي که د ابلیس غوندې دښمن کې (۳۹۱)
طوق د اور به دزته دا چوې گردن کښې

[۹۰] چې یې مخ کړو دنیا وته بدبخت
بې بصره شو لهٔ غصې څخه کمبخت

همېشه په یاد د حق کښې مشغول اوسه
لهٔ مخلوقه څخه دور، لکه غول اوسه

اې ساقي پیاله دے درې درجات کا
را په لاس یې خاص په وخت د نجات کا

ما به رب کاندي رها لهٔ هلاکته
په تشریف ستاد پیالې لهٔ برکته

# در بیان مهلکات فقر گوید

اې نسیم خجسته پے د سحر راشه (۳۹۲)
لهٔ پیغام د شېرین یار غنچه کشا شه

ستا په لور مې انتظار لهٔ حده تېر شو
دام دغم او د الم لهٔ ما چاپېر شو

فقرخېل مهٔ کړه ظاهر د چا د وړاندې
لکه څوک محنت د نن چې سبا کاندي

هغه څوک چې به سبا درکوي ځان
مهٔ خوره غم هغه به درکړي آب ونان

تا به کے به لکه موریې دانه کش (۳۹۳)
که تهٔ مرد یې کړه فاقه مردانه کش

که مدام په توکل دي فېروزي ستا
در د سینې به مرغه غوندې روزي ستا

لهٔ خپل خدایه وي شاکر سړے فقیر    که یو ټوک د ډوډۍ ورکاندي فطیر (۳۹۶)

[۹۱] مهٔ شه خم وتوانګر ته، لکه طاق (۳۹۷) تهٔ    چې جفت نه شې هم له اهل دنفاق تهٔ

مرد د خداے له نام ونګ لهٔ خلقه نښته    هم نفرت یې لهٔ جامې د دلقه نښته

هر سړي لره چې ذوق د نیکنامي وي    خاصه مهٔ شماره داکس دے به عامي وي

که دې زړهٔ چرې فارغ لهٔ زینت شینه    بې پروا به شې لهٔ آسه هم لهٔ زینه

که دې زړهٔ څخ لهٔ هوره کړې تهٔ ګردانه    پس له هغه به حق بیا مومې اې جانه

ساقي پورته کړه پیاله بدر منیره    چې په څښلو یې غش صفا کړم لهٔ ضمیره

دا پیاله چې د شرابو د شربت ده    بلا ریب خاص لهٔ نور د معرفت ده

(۳۹۸)

# در بیان اهل سعادت ګوید واحتراز نفس

---

داشه داشه مرحبا بلبل سعیده    سر و مال مې شه فدا ستالهٔ شنیده

سر و مال مې شه فدا ستا لهٔ اقدامو    چې ژوندون مې شو پیدا ستالهٔ اقدامو

شتر مرغ وګڼه نفس د هرخواته    چې نهٔ بار اخلي نهٔ الوځي هوا ته

که ترې غواړې الوته وایې شتر یم    اوکه بار پرې باندې بردې وایې طایر یم

[۹۲] لکه زهر داګیاه رنګ یې دلکش دے    ولې خوند یې تلخ تر بوے یې ناخوش دے

که طاعت وته یې بولې سستي کاندي    ولیکن په معصیت کښې چستي کاندي

دا بهتره ده چې نفس په زندان کړې    همېشه مخالفت یې لهٔ فرقان کړې

هر مقصد د نفس بدکول خطا دي    داپهٔ داچې د دښمن پالل خطا دي

یل دارو یې نښته بې لهٔ ولږې تندې    چې یې رام په عبادت کړې واخلې خوندې (۳۹۹)

لکه اوښ راکاږه یار داشه پهٔ لار    دغه بار د بنده ګۍ خاص د جبار

د خالق بار دې پهٔ دل وجان راکاږه    اوکه نهٔ پهٔ شان د سګ زبان راکاږه

هر سړے چې شو سرکش لهٔ دغه بار — پرې ورېږي به لعنت انبار انبار

هر سړے چې د دهٔ بار پهٔ تحمل دړي — لهٔ جهانه به پهٔ ځان کښې تجمل دړي

شتر مرغ يې لهٔ دې باره تېښتېدلو — د حيات لهٔ باغ يې ګل ورژېدلو

چې دې بار د امانت کړلو قبول — پهٔ رابنکهٔ يې طبيعت مهٔ کړه ملول

د ازل پهٔ ورځ هم تا فضولي وکړه — فضولي دې پهٔ دا خپل جهولي وکړه

[۹۳] بنده ګي کوه اې زويه غافل مهٔ شه — پهٔ ويلې د بلې کښې کاهل مهٔ شه

هر سړے چې پهٔ طاعت کښې يې کسلان وی (۲۰۰) — نور حاصد يې ګمراهي او ډېر خذلان وي (۲۰۱)

د طاعت پهٔ وخت کښې تېز لکه باد اوسه — لهٔ همه کار د جهانه آزاد اوسه

لار د ډېرې ده دزدان دي پهٔ کمين کښې — رهبر بوځه چې بندنه شې پهٔ زمين کښې

منزل لرې يار دې دروند دے د دزدو — کوشش کړه چې ورو ستونه شې لهٔ ملګرو

پهٔ منزل کښې هر سړے چې بارګران وي — پهٔ هر دم به يې لهٔ سترګو خون باران وي

د وجود خر دې ضعيف دے سبک بار کړه — او که نهٔ وي پرې به تنګ شې اعتبار کړه

څه دے څه دے د سرداري دنيا بار — چې په دې پسې دې ځان کو خوار و زار

ساقي بيا شو صبحدم پياله کړه پوره تهٔ (۲۰۲) — هم د دې پيالې لهٔ نوره کړه پر نور تهٔ

پس لهٔ صغه چې داخل پهٔ خرابات يم — زهٔ ژوندے ستا د پيالې پهٔ برکات يم

## در ترک خود رايي و خودبيني

دوباره ابر نيسان شو ګوهر باره (۲۰۳) — د صدف خېټه يې ډکه کړه له باره

[۹۴] درته ناست يم د حيرت نګراني کښې — که لري دُرِ يتيم (۲۰۴) ابتني کښې

پهٔ د ستارځهٔ آرايش کوې د سر — د مومن د زړهٔ صلاح کړه سر پهٔ سر

څو ترک نهٔ کړې خپل عزت او مال و جاه — د هر سر پهٔ سر به نهٔ شې چون کلاه

نهٔ مردي ده چې به جوړ کړي داخپل ځان — آرایش د تن کوي مدام زنان

پهٔ تن نښته لهٔ تقوی بهتر لباس — بې تکلیف سړي لهٔ نشته ډېر اساس

هر سړے چې به پهٔ بند د آرایش شي — پهٔ دنیا کښې به فرزند د آسایش شي

عاقبت یې بې لهٔ نامرادي نهٔ وي — هم حصه یې څهٔ لهٔ عیش و بنادي نهٔ وي

ځان ستاید همیشه کسب د شیطان دے — چې خپل ځان وکښې کم هغه انسان دے

شیطان ووې له آدم یمه بهتر — تر قیامت شولو ملعون مردود کافر

تواضع سره که خاک دي شي انسان — نور و نار له سرکشۍ شي گریزان

شیطان رد شو چې وهٔ تد مستکبري کښې — شو آدم قبول پهٔ دا مستغفري کښې

آدم شولو معزز له استغفار(۳۰۵) ده — او ابلیس شولو مردود لهٔ استکبار(۳۰۶) ده

[۹۵] زبردست شي چې پریوځي دانه پست — خوشه پست شي چې ځان کړي زبردست

اې ساقي راوړه ساغر چې لاله گون دے — پهٔ شرابو کښې یې طعم گوناگون دے

هم شکرې هم شراب هم زندهٔ گي ده — پس لهٔ مرگه پرې دوبار فرخندهٔ گي ده

## درآثار ابلهان گوید

پهٔ چمن کښې چې شور اوري د بلبلو — دغه گل حمد و ثنا کوي د گلو

که عاري دي گل لهٔ حسنه لهٔ جماله — دا کامل بلبل به کله ورتهٔ خواله

څلور څیزه نښاني د ابلهي(۳۰۷) وي — درته وایم که پهٔ دا دې آگهي وي

اول داچې عیب به نهٔ ویني خپل ځان کښې — د بل عیب به لټوي پهٔ هر هر آن کښې

پهٔ خاطر کښې به یې بخل بخیلي وي — هم پهٔ ځان به یې امید بیا د سخي وي

هر چې خلق یې له خُلق نه دي خوشنود — قدر دې(۳۰۸) نښته دے پهٔ در کښې د معبود

هر سړي لره چې کسب بد خویي وي — دده کار به همیشه پهٔ بد رویي وي

بد خويي په ځان کښې تل بلا د ځان وي | په حلقه کښې د سړو کله انسان وي

[٩٦] بخل بناخ هم له اشجارو د دوزخ دے | بخیلک هم له سکانو د مسلخ [٢٠٩] دے

و بهشت ته لاره نشته د بخیـل | ما شه پرېوتو ترخېي لاندې د پيـل

شه له بخل بخیلانونه په دوره | چې دې شمار په بخیل نه شي د ځان کړه

اې ساقي اشتياقي دې د ساغر يم | و دربان د ميخانې ته لاس په سر يم

مستغني مې په پياله د خوشحالي کړه | له ما لرې دغه بخل بخيلي کړه

## دربیان ریاضت گوید

د بلبلو نوا بيا سحر شوه پورته | بورا راغے دوباره خپل اصلي کورته

د بهار سحاب شو هسې فيض رسانه | چې يې کل مرواري اوري له بارانه

له بلا که رهايي غوارې عزيزه | مناسب چې ساته ځان له ځلور خيزه

لاس له نفسه له دنيا نه لره بېرته | چې بلا دربانديې رانه شي هيڅېرته

که دې ځان په ډېر حرص کښې مبتلا شي | در چاپېر به له هر خوا نه صد بلا شي

چې هيڅ نقد تر ملا نه لري انسانه | په هر ځاے کښې به يې ځان وي په امانه

[٩٧] پېروي مه کړه د نفس د دنيا ته | چې يې خلاص له هر خطره له بلا ته

ډېر کسان دي چې دپاره د نفس خوار شو | په بلا کښې پرېوته [٢١٠] په غم نزار شو

هم د نفس دپاره مرغ نامراد | راغه راغه په دام بند شو د صياد

کښېنه کښېنه په آرام کړه زړه اوځان | يکرنگ شمېره بود، بهبود ددې جهان

له عذاب قهر د خدايه ايمن [٢١١] مه شه | روا داره د آزار د مومن مه شه

په بلا کښې يارې مه غواړه له چا نه | فرياد رس نشته دے بد بې دسبحانه

رنجيده خپل لره ورشه عذرخواه | چې دښمن دې نه وي دے په عرصه کا

که غناله ذوالمنن[۳۱۲] غواړي انسانه     قناعت کښې به یې بیا مومې یکسانه

اې ساقي د مرحمت پیاله پر نوره     را ته راکړه چې شم خلاص له دې ضروره

د فلک د چېره جوره مې زړه دریت شه     پرې لنبه[۳۱۳] د اور بلېږي عین لیت[۳۱۴] شه

# دربیان عقل عاقلان گوید

د بلبل ناله مې دوش شوله تر گوشه     له دې سمعې یې عاري شومه له هوشه

[۹۸] گل په خپل خون کښې غرقاب ولاړ شکیل دی     درنگ ساعت له له چمن دده رحیل[۳۱۵] دی

چې لري عقل و دانش واوره عزیزه     دی به ځان ساتي مدام له ځلور ځیز

وید اصل ته به کار خپل نه سپارینه     ځوانمردي به له بدانو نه کوینه

که هو ښیار یې مه کړه میل په بدکاره کښې     مرور مه کړه په سبیل[۳۱۶] سبکساره[۳۱۷] کښې

هر سړي له چې له حلم زړه روشن وي     په دنیا به یې نیکي صلاح د تن دي

که سبقت غواړې په دور د فلک کښې     کړه لاسونه کشاده نان د نمک کښې

په دوران کښې عدالت کوه نېکخویه     د عاجزو آزار مه اخله اې زویه

هر سړی چې په گفتار خپل وي ملول     دده قول لره څوک نه لري قبول

هر سړی چې په خپل پند کښې استوار شو     دغه پند یې مدام نورو له په کار شو

هر سړی چې شریعت کښې وي ناپسند     ترېنه لرې شه که ځان گڼې هوشمند

که صواب وینې په کار کښې اې نېکخویه     په مراد خپل پسې مه ځه واوره زویه

ساقي سر ته سره جام د میو ډک کا     له کینې څخه ملا ماته د فلک کا

[۹۹] چې یې کج زما په ځان وي گردشونه     دده خونه دې تل ډکه وي دخونه

# در بیان رستګاري ګوید

د بلبل څېګر چي تل زخم پهٔ خاروي  مخانځ ورته جمال جلوه دیار دي
چي جمال د یار ییې کښېږوځي پهٔ نظر کښي  پرې څرخېږي خاریې لاړ شي پهٔ څیګر کښي (٣١٨)
تهٔ به بیا موې خلاص هم پهٔ درې څیزه  درته وایم تهٔ یې یاد کړه اې عزیزه
اول دا چي کوې خوف لهٔ ذوالجلال تهٔ  دویم دا چي لټوې رزق حلال تهٔ
دریم دا چي کړې رفتن پهٔ لاره راسته  دغه لاره د خلاصي ده یاره راسته
که دې خوی د تواضع کاوه اې ځوانه  تهٔ به دوست یې تهٔ کل خلق د جهانه (٣١٩)
هر سړی چي لهٔ دې حرص دنیا دار شي  بې ګمانه به لهٔ ده خالق بېزار شي
دنیا دار د زر پهٔ طمع کښې مهٔ ستایه  تهٔ به څهٔ کړې دا مرداره وایه وایه
مرده ګان دي اغنیا پهٔ هر ساعت کښي  لهٔ مرده وو سره مهٔ کښېنه خلوت کښي (٣٢٠)
که دې مال و زر پهٔ لاس کښې وې بېعده  هو مره چي پر حسرت به یوسې بې عدده
[١٠] ساقي چک ساغر پهٔ خمر نوراني کا  چي پهٔ څښل د دې پیالې مې مستغني کا (٣٢١)
چي لهٔ جام دا حدیثه دولتیاب شم  هم د دې اکسیر پهٔ نور به زرناب شم

# در بیان فضیلت ذکر ګوید

بیا سیاله دم د کرګ ووېست زبان  وخت د خوب راغی د سګ د پاسبان
هم خروس غنوده د تکول بال خپل  د څډ زن پهٔ تپیدهٔ* سم کړه دوال خپل (٣٢٢)
غافل مهٔ شه پهٔ دا وخت دحق لهٔ یاده  شه خبر دحق لهٔ عدله هم لهٔ داده
څان ژوندی لره لهٔ ذکره صبح وشام تهٔ  پهٔ غفلت کښي مهٔ کړه تېر دور د ایام تهٔ

چې بې شکه یاد د حق ذکر د روح دے ‎ ‎ هم ملهم بیا همېشه د زړهٔ مجروح دے

(۳۲۳)

یاد د حق که دې مونس د زړهٔ اوځان وي ‎ ‎ کله شوق به دې د کاخ او د ایوان وي

پهٔ یو دم کښې که غافل تهٔ د رحمان شې ‎ ‎ هغه دم کښې به همدم تهٔ لهٔ شیطان شې

د رب ذکر پهٔ هر دم کښې کوه زویه ‎ ‎ چې تهٔ شې په کاشانو کښې سرخرویه

ولې ذکر لهٔ اخلاص باید نخست دے ‎ ‎ بې اخلاص که ذکر کړې کله درست دے

(۳۲۴)

[۱۰۱] ذکر داغهٔ پهٔ درې وجه بې خلافه ‎ ‎ درته وایم تهٔ یې مهٔ گڼه گزافه

عامیانو لره ذکر د زبان دے ‎ ‎ هم خاصانو لره زړهٔ ذکرګویان دے

(۳۲۵)

خاص لهٔ خاصه څخه ذکر بیا د سر دے ‎ ‎ هر سړے چې به ذاکر نهٔ وي خاسر دے

هر چې ذکر بې تعظیم کوي بدعت دے ‎ ‎ بې تعظیمه چې به ذکر کړي حرمت دے

(۳۲۶)

ذکر چشم تل لهٔ خوف د حق ژړل دي ‎ ‎ بیا هغې د سوز ژړا ته نهٔ کتل دي

هر اندام لهٔ ذکر شو جدا جدا ‎ ‎ پهٔ اووهٔ اندامه ذکر شو پیدا

(۳۲۷)

د لاس ذکر دے مدت لهٔ عاجزانو ‎ ‎ د خپو ذکر زیارت کړهٔ دې لهٔ دوستانو

اورېدل قول د رحمٰن ذکر د گوش دے ‎ ‎ شپه او ورځ ذکر د حق کړه که دې هوش دے

همېشه حب د خالق ذکر د دل شي ‎ ‎ کوه سعي چې دا ذکر دې حاصل شي

هر سړے چې کړي لهٔ جهله تل گناه ‎ ‎ لذت نهٔ مومي لهٔ ذکره د إله

د قرآن لوستهٔ تل ذکر د لسان دے ‎ ‎ چې دا نهٔ لري مفلس پهٔ هر زمان دے

د خالق د نعمت شکر کړه مدام ‎ ‎ نعمتونه به پهٔ تا کاندي تمام

[۱۰۲] د خالق ثنا لره تل پهٔ زبان تهٔ ‎ ‎ چې برباد نه کړې دا عمر جاودان تهٔ

لب جنبان پهٔ ذکر تل د کردګار کړه ‎ ‎ چې خصلت دے د پاکانو دغه کار کړه

د ساقي باده د نوره پیمانه ده ‎ ‎ میخانه یې ابدي دولتخانه ده

چې ددې ساقي د لاس باده کشان دي ‎ ‎ د سېدلي تر دولته جاودان دي

# دربیان عمل چهار چیز میگوید

چې پرواز کوي په ګل باندې بلبله … ته د خارله زخمه هوش کوه عاقله

هسې نه چې له وصلت اول ګاېل شې[۴۲۸] … هوش لره چې له شاهد[۴۲۹] سره واصل شې

په هر چا باندې نیک شوي څلور څیزه … درته وایم ته یې یاد کړه اې عزیزه

اول دا چې هسې داد کوي دادګري … د خپل عقل اندازه باندې خبري[۴۳۰]

هم یې صبر نزدیکت خلقو ته کړل دي … هسې زړونه د مخلوق په څه راوړل دي

# دربیان خصایل ذمیمه[۴۳۱]

څلورڅیزه[۴۳۲] پسې تور اې نیک سرشته … چې ېتولې پرې د عالم ښکارېږي زشته[۴۳۳]

[۱۰۳] اول دا چې په حسد یې زړه آګین وي[۴۳۴] … ځانته خوبن وي دے له کبر نه خودبین وي

بل چې قهر درله درشي زیات یې کاندې … هم له خلقو بخیلي کړي دروستو وړاندې

داوره زدیه[۴۳۵] له ځان دورکړه دا افعال … هم په دا چې همه بد دي دا خصال

غل وغش[۴۳۶] له ځانه لرې کړه زر پاک شه … چې وجود دې آخر خاک اول ترې خاک شه

حرص پرېږده او د ځان صبر پېشه کړه … په غفلت مه شه د مرګ اندېشه کړه

همنشین دایمي اوسه له دوستانو … په طاقت مه ګوره مخ د دښمنانو

# در بیان سعادت ونصیحت فرماید

سعادت باندې څلور څیزه دلیل دي    ښکاره شوي په دا څه کښې بې تعطیل دي
چې سړے د سعادت لري نښان    هر تدبیر کښې به همراه لري دوستان
هر سړے چې سعادت یې رهنما شي    تل یې صبر په جفا د ناسزا شي
چې به بخت د سعادت وي د چا یار    له دښمن سره به تل وي سازګار
که آتش د هوا مړ کړي نیک خصلته    هاله ته به شې له اهل سعادته
[۱۰۴] که مدام وي له دوستانو ښه تدبیر ستا    مددګار به وي دولت بخت شبګیر ستا
هر سړے چې سر خود له ځانه کار کا    همیشه بخت و دولت به ترې فرار کا
که پوهېږې دښمن مه وژنه په تبر    که وژلے په شکر و شې د صبر
د نااهلو جور مه داکاږه یاره    که ته خوارې چې خوشحال یې برقراره
که ته یې په یو مقام خوش وخورم کښې    تړښه رخت د سفر مه تړه په دم کښې
چې یو کس دې نصیحت نه کړي قبول    ته عبث پند ونه مه کوه فضول
نیک کول د بدخویانو مشکل کار دے    نصیحت د بدته نقش د دېوار دے
که بنده له دیو کار نه دي رضا    ګرځول ترې نه شي حکم د قضا
هر سړے چې شوخ شنکه (۳۴۹) له سلطان شي    دده کار به سر به سر واړه وېران شي
هر سړے چې دے باغي شوله پادشاه    دده ورځ به شي له شپې توره سیاه
اې ساقي راکړه باده راحت انګېزه    نورې مه پو ښسته له دا رنګې پرهېزه
ستا په لاس دې تمام واړه رحمت دي    په ګردش دې دا پیاله د برکت دي

## [١٠٥] در بیان علامات مدبري [٤٣٨]

اې بلبله د چمن پهٔ خیابان کښې ... چې نوا کړې د سمن پهٔ برګستان کښې

د غفلت ورق د خپو [٤٣٩] لاندې لتاړ [٤٤٠] کا ... ګلستان ددې جهان پهٔ ځان ویجاړ کا

څلور څیزه دي مدبر لره نښانه ... نه یې یاد کړه چې دې زړهٔ شي پرې روښانه

اول دا چې لهٔ ابله کړي مشورت ... سیم و زر ورکړي جاهل له امانت

د دوستانو پند چې نه لري قبول ... حقیقت کښې دے مدبر ابو الفضول

پهٔ دنیا کښې چې څوک نه اخلي عبرت ... لهٔ مدبر څخه جهان وي پهٔ نفرت

لهٔ ابله سره هر کس چې مشورت کړي ... دیو شیطان به دهٔ لره سپک پهٔ لعنت کړي

هر جاهل لره چې زر راشي پهٔ کف ... پهٔ اسراف سره یې واړه کړي تلف

هم جاهل لره چې ورکړي مال و زر ... دے دا کس د مقبلانو نه بهر

هم لهٔ دوسته څخه نهٔ اوري پندونه ... جهالت څخه به مات کا پیوندونه

عبرت وا خلئ زمانې څخه ځوانانو ... چې شمار نه شئ پهٔ حساب د مدبرانو

هر سړي له چې لهٔ عقله آګاهي وي ... دا ادبار به وهغهٔ [٤٤١] ته ګمراهي وي

## چهار چیز را حقیر نه باید شمردن [٤٤٢]

[١٠٦] څلور څیزه دا غلهٔ بزرګ او معتبر ... ولیکن ښکاریږي وړ دوئ پهٔ نظر

لهٔ اوله دے دښمن دویم آتش دے ... او دریمه بیماري د دل تپش دے

څلورم عقل چې ځان پرې خښته [٤٤٣] تر کړي ... خو بایده نه دي چې سپک یې پهٔ نظر کړي

چې پهٔ سترګو دې دښمن ښکاري حقیر ... لهٔ بلا به یې یو ورځ وکړي نفیر [٤٤٤]

د آتش یوه ذره چې افروخته شي    وبه ګوري چې عالم به پرې سوخته شي

که دې علم وي اندک مهٔ لره خوار    دا پهٔ دا د علم قدر دے بېشمار

دکم رنځ مدام کوه غمخوارهګي    پکښې وبه وینې ته بیچارهګي

درد د سر له که څوک ونهٔ کړي علاج    دغه خوف دے چې به شي مجنون مزاج

تل لهٔ قول مخالف شه پر حذر    لا اول چې راپرېباسي دے پهٔ سر

لږ آتش به سړے مړ کاندي په آب    دا افسوس دے چې اور وکړي التهاب (۳۴۵)

اې ساقي راکړه ساده باده د روح    چې مې زړهٔ شي پهٔ دا خمرو پر فروح (۳۴۶)

پهٔ باده کښې دې خوشوقته زندهګي ده    دا زما د زندهګي فرخندهګي ده

## دربیان مذمت خشم (۳۴۷)

پاسباني د سمنزار کوځ بلبلو (۳۴۸)    لهٔ غراب ځخه ساتئ ورق د ګلو

وغراب ته ګندهګي د ګل مزه ده    ځهٔ پهٔ کاریږي پهٔ شړلو ستړه ده

هر سړے چې لري دغه ځلور شېزه    ځلور نور به پرې پیدا کړي اې عزیزه

عاقبت رسوایي راشي لهٔ لجاج (۳۴۹)    چې د خشم خېماني نه کړي علاج (۳۵۰)

[۱۰۷] ناګهان لهٔ کبره پورته دښمني شي    خواري راشي چې سړے کاهل تني شي

لجوجي چې پهٔ دامنځ کښې راپیدا شي    پهٔ شوي دلجوجي سړے رسوا شي

چې لهٔ زړهٔ قهر پهٔ هر سړي جاهل کا    عاقبت به خېماني تر ښه حاصل کا

پهٔ غرور چې هر سړے ګردن بلند کا    کل دوستان به دښمنان دځان دوچندکا

هر سړے چې کاهلي دځان پیشه کا    ځپې بې غوځې (۳۵۱) (۳۵۲) دخوارۍ تېره تېشه کا

که څپل قهر چا ونهٔ خوړ شو برسېره    عاقبت به خېماني دوېنې دېره

هر سړے چې غزیدلے تن پروردي    آدم نهٔ دے لاکمتر لهٔ ګاوخر وي

# دربیان بی ثباتی چهار چیز و پرهیز از آن

څلور څیزه کم بقا لري سرداره — غوږ پر کښېږده اې مومنه نېک کرداره[۴۵۳]

د سلطان جبر بقا لري کمتره — رعیت[۴۵۴] شي رستگار له دې مضره[۴۵۵]

بل هغه مهر چې وکاندې زنان — بې بقا یې دغه مهر دے یکسان

چې ستم کړي رعیت باندې سلطان — سلطنت بې[۴۵۶] بې بقا وي بې بنیان

له دوستانو که په تا راشي عتاب — بې بقا دے لکه خط په مخ د آب

که دې بخښه یو ساعت شي مهربانه — پر دغه مهر یې وکښه شېطانه

چې ناجنس سره کښېني آدمي — کم به وبني تر ښه مخ دخورمي

[۱۰۸] هر یو زاغ چې دے فارغ له بوے دگل وي — تل نفرت یې له صحبته د بلبل وي

د ناجنس له صحبته جانکاهي ده — ټول جهان له له دې حاله آگاهي ده

چې ناجنس تاله راشي په نظر — واوره زویه لکه باد کړه ترې گذر

# در بیان آن که چهار چیز از چهار چیز کمال میابد

څلور څیزه له څلورو شي تمام — ته یې یاد لره په صبح هم په شام

هر یو علم له خرد موهي کمال — له عمل څخه تل دے موهي جمال

د سړي دین له پرهېز څخه کامل شي — هم نعمت به یې له شکر زیات شامل شي

هر دانش له کمالات له خردوینه — بې عمل شمارلے تل شي له بې دینه

هر نعمت لره له شکره کمال شینه — گوشمالي د غافلانو کړه امینه

بې شکرې تل د لذیذ نعمت زوال دے — هر شاکر لره نعمت په ښه کمال دے

علم بې لهٔ عقله نه شي طلبګار شه　　دبې عقلو وړاندې مهٔ کښېنه بېدار شه

بې خرد دانش دبال دے داوړه زویه　　علم مرغ عقل ئې بال دے داوړه زویه

هرچې علم لري نهٔ کا پرې عمل دے　　تد لهٔ عقل نه بهرګوره خجل دے

ساقي شوخه ډک لهٔ سرو مېو ساغر کا　　مېخانې لهٔ دې دا تله مستان پهٔ سر کا

اې د مستو د ځان روحه پرفتوحه　　دا غنچن[۳۵۷] زړګے مې ډک کړه لهٔ فروحه

## [۱۰۹] آن چیزها که بازگردانیدن آنها محال است

د بلبلو[۳۵۸] پهٔ ښکالو خبر غراب شو　　پهٔ چمن لهٔ سرو ګلانو دولتیاب شو

کهٔ ښکالو د بلبل نهٔ وي پهٔ چمن کښې　　زاغ به نهٔ راوړه تر باغ ګندګی دهن کښې

ځلور څیزه چې بهر دوئې لهٔ خپل حال شي　　وخپل حال تهٔ یې دوبار راوړه محال شي

هر خبر چې دې بهر شو لهٔ دهانه　　یاکه غشے بهر ووت لهٔ کمانه

نه وېلې خبر بېرته بیا راځینه　　نهٔ پهٔ حکم د قضا کښې نو رځهٔ شینه

نه ویشتلے غشے بیا راځي تر ځایه　　هم پهٔ دا رنګ چې دې عمر لاړ لهٔ ځایه

هر سړے چې بې لهٔ فکر نه ګفتار کا　　ورپسې به ارمانونه صد هزار کا

که دې نهٔ وي کړے مهٔ کړه پټ ګفتار　　چې دې وکړ بیا نیول نهٔ شي دوبار

## درغنیمت دانستن عمر

غنیمت ګڼه دا عمر هر نفس تهٔ　　هرچې تېر شو وبه نهٔ ګرځوې پس تهٔ

ځا حکمونه د قضا لهٔ ځان رد نهٔ کړه　　چې راضي پهٔ قضا نهٔ شوه بدیې دکړه

که څوک غواړي په دنیا باندې اماڼ خپل — دې باید چې مهرکښې دې په دهاڼ خپل

دې لایق چې عمر دېر لري عزیزه — چې تېر شوے نه راځي په هیڅ تمیزه

## [۱۱۰] دربیان سخاوت وخاموشي

حاصلېږي څهار چین له څهار چیزه — دا نکته کړه له ما یاده اې عزیزه

خاموشي چې هر سړي لره پېشه وي — ایمني به یې د غم له اندېښه وي

سلامت که دې په کار دي خاموش اوسه — ایمن ګرځه له نیکي هم آغوش اوسه

مرد موي له سخا تل سروري — هم له شکره د نعمت افزونتري (۳۵۹)

هر سړے چې ځان ساکته هم خاموش کړي — دغه کس دې سلامت کسوت بدوش کړي (۳۶۰)

که ته غواړې په دنیاکښې خپل امان — نیکو یې کوه له خلقه د جهان

چې عادت شولو د چا جود و کرم — په عالم کښې به مدام دي محترم

که نیکي کا که بدي په دا جهان کا — دغه دواړه هم دپاره د خپل ځان کا

داوره دروره تل بنده د معبود اوسه — چې توانېږې له سخا او له جود اوسه

هم له بخل له بخیل کوه حذرته — چې ونه سوځې په نارکښې د سقرته

ساقي پر ساغر له جامه د جمشېد کړه (۳۶۱) — هم روشن یې پیاله دخته د خورشېد کړه (۳۶۲)

چې له خاک د سیاوش یې ملتوي کړم (۳۶۳) — کیکاوس (۳۶۴) لره به جام کیخسروي (۳۶۵) کړم

## دربیان چیزې که خواري آورد

د سحر بلبله عشق د پتنګ کوره — هم دده په ځان د شمعې آهنګ کوره (۳۶۶)

د ستم په زبانه باندې سوخته شي — عين د عشق په بازار سر فروخته شي

[۱۱۱] څلور څيزه کړی ښر له څلور څيزه — هغه اوري چې څوک دي اصل تميزه

چې له چانه شي صادر دا څلور کاره — څلور نور به پرې حاصل کړي داوره ياره

هر سړي چې وکړو سوال خوار و ذليل شي — په سپک والي کښې به پاتې بې تعطيل شي

چې نظر نه کا سړے آخر[۳۶۷] د کار کښې — پښېمان[۳۶۸] به شي داکس ظاهر د کار کښې

چې هر کس په احتياط نه کا کارونه — په خاطر بې شي[۳۶۹] انبار د غم بارونه

په بد خوے چې شو سړے ناسازگاره — ترې بې شکه به دوستان وکړي فراره

# دربيان آنچه آدمي را شکست آرد

څلور څيزه په سړي راوړي شکسته — درته وايم غوږ لره اې حق پرسته

چې يې ډېر شي دښمنان قرض يې بسيار شي — هم بې حده يې عيال ګناه انبار شي

صد افسوس په هغه کس چې غرق په وام شو — په هر دم کښې له غصې نه خون آشام شو

هر سړي لره چې ډېر وي دښمنان — په تحقيق سره خيرن يې شي چشمان

هر سړی له چې عيال اطفال بسيار وي — زمانه کښې بې خواري په هريو کاروي

# دربيان صفات زنان گويد

[۱۱۳] څلور څيزه له خطا وو دي اې زويه — راته غوږ کړه درته وايم له هرسويه

چې اميد به له زنانو د وفا کا — هم دغه خطا يې بس ده چې خطا کا

ته ايمن له ښځې مه شه که پارساوي — خر ترې دي بهتر که غل اشنا وي

نارینه ناست د ولاړه پاک لهٔ پېغوردے　　ځه د ښځې اول کور دے پسې ګور دے
هره ښځه چې بهر شوله لهٔ کوره　　پهٔ بازار به وي روانه سر سر توره
نهٔ یې شرم لهٔ خالق نهٔ لهٔ شوهر شي　　له جهان دي داګند ه بوټه بهر شي
ایمني پهٔ هر احمق خطا ده بله　　مشوره لهٔ هلکانو بده شوله
هم لهٔ مکره د دښمن نهٔ ایمني　　چرې مهٔ کړه چې د ښمن کړي دښمني
اې ساقي د آب خشک جسد مقبول کړه　　پکښې توے لهٔ صراحي آتش محلول کړه[۴۷۰]

# دربیان عطاء حق تعالیٰ جل شانه

راشه راشه اې بلبله خوش نفسه　　یو ساعت کړه ځان بېرون لهٔ دې قفسه
سره ګلان دې د چمن جوش وخروش کا　　دلاله پهٔ ورق ے د عرق نوش کا
څلور څیزه لهٔ عطا دي د کریمه　　درته وایم نهٔ یې یاد کړه اې سلیمه
[۱۱۳] لهٔ اوله فرض د خدائے پهٔ ځائے کول دي　　پهٔ رضا د والدینو هسې تلل دي
او دریم حکم شیطان سره جهاد و　　څلورم نیکي لهٔ خلقو نامراد و

# دربیان آنچه عمر را زیاده کند

شوه د عمر درازي لهٔ څلور څیزه　　نصیحت داوره زما یاره عزیزه
لهٔ اوله ادرېده د آواز خوش دي　　ورپسې لیدل د حسن د مهوش دي[۴۷۱]
او دریم ده ایمني د مال و ځان　　هم د عمر درازي ده لهٔ هر آن
بل چې کار یې پهٔ مراد د جان ودل وي　　پهٔ بقا کښې افزوني درتهٔ حاصل وي

## در بیان آنچه عمر را بکاهد[۴۷۲]

عمر کم شي د سړي په پنځه څیزه — درته دایم له ما یاد لره عزیزه

اول دادے چې مفلس شي په پیری کښې — هم رنځور شي هم غریب په زصیری کښې[۴۷۳]

بل چې کړي په مردکانو ډېر نظر — دده عمر پرې کمېږي سر به سر

او پنځم چې یې وي خوف له دښمنانو — دده عمر لره زیان راځي دوستانو

هر سړے چې له دښمن څنې ترسان وي — پر یوه لحظه یې کار په بد بل شادن وي[۴۷۴]

له دښمن ډېره په کار نه ده نېکرایه — مې باید چې ډېره کړي له خپله خدایه

[۱۱۴] چې حافظ ناصر د کل جهان هغه دے — هم خلاق د هر زمین آسمان هغه دے

## در بیان بواعث سلطنت[۴۷۵]

اې بلبل له باغستان د جبروت[۴۷۶] — خبردار یې له اسراره د لاهوت[۴۷۷]

د چوګان ګوے دې شو تېر له ملکوت[۴۷۸] — راشه ننن تر سلطنته د ناسوت[۴۷۹]

څلور څیزه فساد راغله په بادشاه — درته دایم ولې ته یې کړه نګاه

له اول په مملکت جور د امیر دے — او دویم هغه غفلت چې د وزیر دے

درېم دا چې خیانت کوي د بیر — رنځ د شاه دے که قوت بیاموند اسیر

چې په ملک کښې د بادشاه امیر ستم کا — په بادشاه باندې به زیات درد والم کا

هم وزیر که د سلطان شي بېخبر — ملک د شاه به شي همه زېر و زبر

که خلل یې په کاتب کښې د دېوان شي — عاقبت به آزار زړه پرې د سلطان شي

که قوت په اسیرانو شي پدید — ولایت کښې به فتنې شي برمزید

کهٔ صلاح نېکي وجود کښې د پادشاه وي — لهٔ ستم به د میرانو لاس کوتاه وي
کهٔ واقف او دانا نهٔ وي وزیر — نور بادشاه له به ترې وي رنج کثیر
بلکه شاه سیاست نهٔ لري بکار — ملک به ودان کړي ترېنه هریو نابکار

## [۱۱۵] در بیان آنچه آبرو ریزد

لهٔ پنځه خصلته دور اوسه پسره — چې سپک نهٔ شې ته د خلقو د نظره
لهٔ اول د چاته مهٔ وایه دروغ — لهٔ دروغ ځخه به تهٔ شې بې فروغ
بل چې کاندي ستېزه لهٔ سردرانو — بې آبرویه به شي پاتې اې یارانو
بل هر کس چې نهٔ لري پهٔ ځان ادب — که یې توے شي ابرویې نهٔ ده عجب
مهٔ اوسه لهٔ سبکسارو اې نېکخویه — سبکساره سړے شي بې آبرویه
زور آور سړه مهٔ کوه ستېزه تهٔ — لهٔ دې هسې حماقت کوه ګرېز تهٔ
که پهٔ کار دې پهٔ جهان خپله آبرو وي — دایماً به ستا د ځان خلق نېکو وي
هر سړے چې پهٔ آهنګ سبکساري کړي — هم لهٔ خپله آبرویه بېزاري کړي
بې لهٔ صدقه دروغ مهٔ وایه نېکرایه — چې دې توے دغه آبرو نه شي بې ځایه
لهٔ خلاف لهٔ خیانت اوسه تل دور — چې پېوست دې وي مدام پهٔ مخ کښې نور
که تهٔ غواړې چې خلق وایې درته نېک — تهٔ مهٔ وایه بد د هیچا ته و لېک
پهٔ جهان به چرې نهٔ شې اندوهګین تهٔ — کهٔ حسد نهٔ کړې د چاته شې یکدین تهٔ
اې ساقي سمن چمن رنګ و بساط دے — و ساغر ته دې هر مست پر نشاط دے
لهٔ جهان کړه شجره د غم برکنده — در پهٔ لاس کړه د ژوندون پیاله خورسنده

[۱۱۶]

# در بیان آنچه آبرو میفزاید(۳۸۰)

راشه راشه اې خاکي بلبله راشه
نوبهار دے دچمن په تماشا شه

شګفته شوې په نسیم کله دګلو(۳۸۱)
تار غزېږي په قانون دے دغبلو(۳۸۲)

فزایش دے د آبرو له پنځه څیزه
درته وایم واوره اې دروره عزیزه

سخاوت کوه که حد دې د غنا وي
فزایش به د آبرو ستا له سخا وي

برد باري وفاداري کوه ګزینه(۳۸۳)
چې آبرو به دې شي زیاته له هر حینه

هر سړے چې په جهان کښې بخشایش کا
آبرو یې بې په دنیا کښې افزائش کا

په لایق کارونو ځان که ستوده کړې
آبرو به په جهان کښې افزوده کړې

آبرو له سخاوت څخه افزون شي
بې خرد په بخیلۍ سره ملعون شي

همېشه شه برد بار او باوفا
چې څېره کښې دې بنکاره شي صد ضیا

که دې راز وي خفي خوېش له دښمنانو
راز د زړه مه لره فاش تل په دوستانو

ایښه راز په زړه کښې فاش مه کړه په یارته
چې د خلقو په میان نه شې شرمسارته

پرده د ر د خلقو مه شه برادره(۳۸۴)
چې دا ستا خلقه نه شي پرده دره

په هوا د زړه هرګز مه کوه کار
چې راته وري خپماني دربانده بار(۳۸۵)

چې دې ژبه وي زما خواجه درازه
لاس کوتاه لره له حرصه هم له آزه(۳۸۶)

[۱۱۷]

قدردان مردم شناس شه په څوچنده
چې دا ستا درجه هم شي سربلنده

چې بې قدره هر سړے په دا جهانو(۳۸۷)
دغه کس دے په شماره د مرده ګانو

هر سړے چې شوله صبره بې نشان
دے به نه کړي توانګر مال د جهان

په دښمن که چرې بیا موې ظفرته
تل له جرم یې په عفوه کړه ګذرته

مدام خوف لره په دل د کردګار
هم یې اوسه له رحمته امیدوار

تواضع کوه او خوے کړه د ادب ته
همېشه شه د بنو خلقو په طلب ته

يرده يار اوبې آزار دورلهٔ بلا شـه (۳۸۸)
چې نامه دې په ښهر ونوكښې شي فاشه

علم ، حلم ، صبر درې ترياق ددل دي
حرص ، بغض اوكينه زهر قاتل دي

دانايان وايه ترياق دي پهٔ دادهر
قاتلان دي نادانان پهٔ شان د زهر

لهٔ ترياقه هرزمان موندهٔ نجات شي
خو دلهٔ زهرو دچا طمع دحيات شي

داعمالو فخر عز دركړهٔ دنان دي
پهٔ هر دم كښې پرې خوشحال وايه دوستان دي

كهٔ اگر چې يې دا نا اهل هـنر
شماره ځان لهٔ هر نادان ټخه كمتر

ساقي پر پهٔ صبحدم جام د نبيذ كړه (۳۸۹)
دغم بدر ددې مست هلال دعيد كړه

كه مجنون لهٔ ستالهٔ عشقه جنون نه دهٔ
د شاهد پهٔ سترگو سرومفتون پهٔ څهٔ



## در بيان علامتهاى نادان [۱۱۸]

اې بلبله د چمن فصيح لسانه
پهٔ صفت دگل آگاه شيرين زبانه

راشهٔ راشه ستايش وكړه د گلو
تار پهٔ تار بهٔ شي آخر بڼ د سنبلو

دوه خصلته علامات د نادانانو
چې صحبت كړي لهٔ طفلانو لهٔ زنانو

## در بيان صفت زندهگاني

ناخوښي پهٔ زندهگي كښې اې وليده
د سړي تهٔ لهٔ بدخويه شي پديده

هر سړے چې كوي بد بديې احوال دے
ژوندے نهٔ دے بلكه مړ پهٔ هر احوال دے

هر سړے چې وايي بد ستا پهٔ حضوٗ
لهٔ ستا دهٔ نه درته لار بنايي د نور

هر سړے چې به دي تاله رهنما
مې بايد دهغه شكر كړې برجا

په جهان کښې اوسه تل عاقل شناس — خُلق نېک کوه او نېک لره لباس

په جهان کښې مه کړه پټ راز له دوه کسه — له طبيب حادق له ياره هم نفسه

چې صواب دېنې په کار کښې سراسر — په مراد خپل باندې کار مه کړه اکثر

چې توانېږې صحبت مه کړې له زنانو — مه خو راز خپل ورته وايې اې يارانو

هغه کار چې دے په شرع کښې ناپسند — چاپېره ورځنې نه ګرځې هوشمنده

[۱۱۹] هر يو کار چې حق په تا کړلو حرام — له خپل ځان يې لره دور چې شې نېکنام

چې شي رزق کشاده په تا له خدايه — زړه کشاد لره تنګي مه کړه نېکرايه

تازه رويه خوش سخن اوسه اخي — چې نامه دې په جهان کښې دې سخي

مه خوره غم د مرګ ډېر اې بوالهوسه — چې وخت راشي ترې به نه شې پېش وپسه

زړه له غل و غش کړه پاک له هر اطرافه — که توانېږې کړه سينه له کينه صافه

بهترين له هر اشيا خُلق نېکو دے — خُلق نېک له خريداره خُلق هر سودے

(۳۹۰) مدام کم ګڼېږې ځانونه اې خلفو — هم په دا دے آرايش اهل سلفو

هغه کس چې په شهوت کښې دے اسير — که آزاد دے دا بنده دے هم حقير

د ناکس سړي که وويني دستګاه — له ناکسه څخه مه شه حاجت خواه

قدم مه ږده د ناکس سړي په در — که يې ويني ترېنه مه پوښته خبر

دا بله له کاره ورک زېب وسازش کا — کار کوه پرې ولې کم يې نوازش کا

اې ساقي راوړه پياله رشک خورشيده — چې صفاده لاله جامه د جمشيده

څه که جم په دا جهان روشن جوشيد شو — بوسه زن ستا په ساغر ماه و خورشيد شو

## دربيان احتراز از دشمنان

نن مې واورېد صحدم شور د بلبلو — په راتله يې د نسيم غزل د بلو

[۱۲۰] څهٔ کهٔ نن زهٔ پهٔ کرسي دکمال شکیل یم — لا واللّٰه سور پهٔ فرس د الرحیل یم

لهٔ دوو کسو نه پرهېز کوه اې یاره — چې ونه وینې سختي لهٔ روزګاره

لهٔ اوله لهٔ دښمنه بې حیا نه — ورپسې هم لهٔ صحبت د دوست نادانه

مهٔ کړه چاوته هرګز جواب درشت — اوکه کړې واړه به کړي د تا ته پښت

لهٔ اخلاقو خُلق ښغه بهتر وینه — چې انصاف بې توقع لهٔ چا کوینه

که شېرین جواب دې وکړ د فقیر — ډېر بهتر دے لهٔ لباسه د حریر (۳۹۱)

هر سرور لره پېښه خشم خوري ده — دا ترخه پېښه شېرینه تر تري ده (۳۹۲)

هر سړے چې سازش نهٔ کړي پهٔ جهانٝ — زندهٔ ګي به یې وي تلخه پهٔ هر آنٝ

تل لهٔ شوخه لهٔ بې شرمه لهٔ ناپاکه — بېرته اوسه اې عزیزه زر پاکه

ځان ساتئ لهٔ ملامتې نه یارانو — مدام اوسئ همنشین لهٔ زیرکانو

# دربیان آنچه خواري آورد

په اته خصلته شي سړے بې آبه — درته وایم واوره ته عزت ماٝ به

اول دا چې د مګس په شان روان شي — نابلَلے به پهٔ کور د چا مهمان شي

نابلَلے چې هر کس د چا مهمان شو — د مخلوق ته ښغه سپک دخس پهٔ شان شو

[۱۲۱] یل ښغه نادان لهٔ ځانه خر خندي کا — چې پردي کورکښې دعوه د خاوندي کا

مهٔ کړه کار پهٔ خوله د ښغو دواړو مردهٔ — چې لهٔ جهل نه تل ډک دي لهٔ نبردهٔ

تل لهٔ بخل لهٔ بخیل ګرځه دور تهٔ — پهٔ سقر ګڼه بخیل سړے ضرور تهٔ

هر مجلس چې تر دي غوږ ستا پهٔ ګفتار — مهر زن شه پهٔ دهان باندې یکبار

حاجت مهٔ وایه دښمن ته پهٔ هېڅ شان — زیات لهٔ دې نه خواري نشته پهٔ جهان

کمینه وو ته مهٔ غواړه مراد خپل — چې وجود دې پهٔ خوارۍ نهٔ کړې برباد خپل

بازي مهٔ کوه لهٔ ښځو لهٔ کودکه — چې په تا باندې خوارې رانهٔ شي کلکه
ساقي راکړه د نبیذو پیاله زر ده — ستا پیاله پهٔ حواله کښې خورشید فرده
میخانې له مې راوړے نقد دوح دے — خرابات مې دے طوفان ساقي مې نوح دے

# در بیان زندهٔ گانی خوش

---

شو بهار صدر نشین د باغ بلبل شو — پاس پهٔ سر ددهٔ افسر چتر د گل شو
که عشرت پهٔ نن زمان د خرمي کړې — خو تاراج به یې داراج د ښځي کړې
پهٔ جهان کښې څیزه شپږ راځي پهٔ کار — اول یار دویم طعام دے خوشگوار
ښه دے یار چې موافق پهٔ داجهان وي — بیا مخدوم چې پهٔ خادم دے مهربان وي
هر خبره چې رښتیا کوي هم راسته — تاله ښه ده نفع ستاده پکښې ناسته
[۱۲۴] لهٔ جهانه پهٔ بها باندې افضل دے — شه دلشاده چې هغه عقل کامل دے
دوستي مهٔ کړه د خالق رب لهٔ دښمنه — پهٔ آخر دې د هغه پهٔ لور ده تلنه
د عیب نخښه د عیجن[۳۹۴] مهٔ کړه نموده[۳۹۳] — چې به نهٔ وي چرته غو ښه بې غدوده
لهٔ رب غواړه هر چې غواړې هر سحر — نهٔ پهٔ لاس کښې د مخلوق دے خیر و شر
د بنده حافظ ناصر مدام الله دے — بنده نه دے چې لهٔ غیرو حاجت خواه دے
هر بنده چې کوي خوف لهٔ خپله خدایه — هر یو کس به لهٔ ده خوف کوي لهٔ ورایه
لهٔ بدي نه هر سړے چې زبانبست شو — دا ابلیس لعین هغه وته زبردست شو

---

# دربيان آنچه اعتماد در آن شايد

اميد مهٔ کړه پينځ اشيا لهٔ پنځه کسه　　لهٔ ناصح ځخه کړه ياد صاحب نفسه

لهٔ ادل نهٔ کړې دوستي لهٔ چا ملوک　　پهٔ دا قول کړې اعتماد اهل سلوک

پهٔ سفله کښې سخاوت مروت نشته　　بدخويي د سرورانو عادت نشته

هر سړے چې حسد دار دے پهٔ خپل نيت　　دے محروم دے د خالق د ښه زحمت

هر سړے چې دے کاذب وايي دروغ　　پهٔ وفا کښې ورله نشته دے فروغ [۵۹۵]

# در بيان نصيحت وخير انديشى ميفرمايد

[۱۲۳] هر سړے چې دا درې کاره يې عادت وي　　پهٔ جهان کښې به بې بخت و سعادت وي

لهٔ ادل چې وينې عيب دکل جهان　　کشاده پهٔ ملامت نهٔ کړې زبان

که څوک وينې ته پهٔ لاره ناصواب [۵۹۶]　　نوريې پوے کړه [۵۹۷] چې خبر شي له ثواب [۵۹۸]

خپل زحمت له خلقو دورلره بېدار شه　　هم پهٔ خپله اخيشتو [۵۹۹] کے د خپل بار شه

# دربیان تسلیم فرماید

که دې نېت وي چې مدام وې رستګاره　　دوګردان مهٔ شه اې دروره لهٔ درې کاره

لهٔ اول چې وینې حکم د قضا تهٔ　　پس لهٔ هغه پهٔ قضا یې شه رضا تهٔ

او درېیم همېشه دور لهٔ جفا اوسه　　لهٔ دې شان پهٔ جان و دل کښې صفا اوسه

که لرې څرې دانش عقل تمیز　　بې د رب لهٔ نومه مهٔ بخښه هیڅ څیز

صدقه چې آلوده وا پهٔ ریا شي　　نا قبوله پهٔ دربار د پاک مولا شي

که عمل نهٔ وي خالص لکه د زر　　قلب نقد[٥٠٠] منظور نهٔ دے پهٔ نظر

چې تر څو تهٔ توانګر یې لهٔ روزګاره　　لهٔ آرزونه نفس لرې لره یاره

اې ساقي زړهٔ مې زندہ د نور پهٔ جام کړه　　شګفته ګل د مراد صبح مې شام کړه

چې غنچه مې د مراد تل شګفته وي　　سوے دل بهٔ لهٔ غبرو نهفته وي

# دربیان کرامتهای حق تعالی فرماید

[۱۲۴] راشه راشه د فردوس د باغ بلبله　　د مراد عقده مې پرانیځه لهٔ ګمله

عنایت راته پهٔ لاس کړه د ګل څانګه[٥٠١]　　پیچیده ترې دل پهٔ ول د سنبل څانګه[٥٠٢]

څلور څیزه کرامات ګڼه د حق تهٔ　　تهٔ یې یاد کړه لهٔ ما زده کړه دا سبق تهٔ

پهٔ خبره لهٔ اول صدق د زبان دے　　پسې حفظ امانت پهٔ دغه شان دے

سخاوت ګڼه لهٔ فضله د الله　　فضل الحق دے که تهٔ وکړې بنه نګاه

له سود خوره به وې دور چې مسلمان وي　　چې سود خور بخیل دښمن د پاک سبحان وي

هرچې دا څلور اخلاق لري په حق دے
په تحقیق سره هغه مومن مطلق دے

چې ستا راز یې دعالم ته کړلو فاش
همدم مه شه له هغه ابله اوباش

که یو کس مانع د عشر د زکوٰة وي
یا غافل غوندې غافل دے له صلوٰة وي

بر حذر له[۵۰۳] داسې کس شه زنهار[۵۰۴] ته
چې ونه سوځې[۵۰۵] په کنده کښې د نار ته

# در بیان فرو خوردن خشم

که لذت په عمر غوارې په دا دهر
بر حذر اوسه له خشم هم له قهر

که مخلوق ستا د سازش له خُلق سوزش کا
بې بایدچې ته له دوئې سره سازش کا

داوره وروره تکیه مه کړه په دولت ته
له ناصح خپل څخه یاد کړه نصیحت ته

[۱۲۵] نه کا سود که کوې تېښته له قضا ته
بې باید په قضا وسپاره رضا ته

چې حاصل نه وي له کارکښېنه خورسند ته
غوږ د زړه کړه په طرف د دغه پند ته

چې له زړونو د دوستانو څوک یکدل وي
په دنیاکښې هر مقصود به یې حاصل وي

# در جهان فانی فرماید

په دنیاکښې هغه کس دے معتبر تل
چې څه باک ورله نه وي له خطر تل

بې له جوره مهر ورک له دې زمان دے
بې وفا داره ګردش ددې دوران دے

پیدا کله په جهان وفاداري ده
خوبنتې چاله بې وفا څخه یاري ده

هر سړے چې دې په درځې دغم یاروي
په بنادي دې یې پر سان تاله په کاروي

د نعمت په ورځ که دغوارې یو کس
د محنت په ورځ به ستا وي فریاد رس

که دولت تالره درکاندي سبحان خپل — پهٔ دغه دولت کښې و پاله دوستان خپل

هر سړے چي تالهٔ یاد پهٔ درځ دغم وي — د ښادۍ پهٔ ورځ هغه دي ستاهمدم وي

اې ساقي جام راپهٔ لاس د معرفت کا — خاکستر مې مستټ پهٔ دا دولت کا

چې دولت ابدي دے ستا پهٔ جام کښې — دا رشحه دې وي ددې سوي پهٔ کام کښې

## در بیان معرفت الٰهی فرماید

[۱۳۶] بهار راغۀ مرحبا یې پهٔ بلبل شو — پهٔ چمن کښې جلوه زن چټ دګل شو

یاسمین پهٔ خیابان نشو و نما کا — تماشې د معرفت د پاک مولا کا

معرفت د رب حاصل کړه داوره زویه — چې خبر شې تهٔ لهٔ ځېله خدایه لویه

هر بنده چې عارف د پاک مولا شي — پهٔ فنا کښې بهٔ لیدونکے د بقا شي

هر سړے چې عارف نهٔ دے زنده نهٔ دے — قرب د حق لره لایق ارزنده نهٔ دے

هر یو کس لهٔ معرفت چې حاصل نهٔ شو — هیچرې لهٔ خپل مقصوده واصل نهٔ شو

که د نفس شناسا شې داوره دلــه — د خالق عطا به بیا مومې کامله

عارف هغه دے چې دے وي حق شناس — چې عارف نهٔ دے هغه دے ناسپاس

وي عارف لره پهٔ زړهٔ مهرو وفا تل — هم عارف کارونه کاندي مصفا تل

معرفت چې چاته وبخښي بسهٔ خدائے خپل — بې حق نهٔ لري پهٔ زړهٔ د ننه ځائے خپل

پهٔ دنیا نهٔ وي عارف له څهٔ خطر هم — بلکه نهٔ لري پهٔ ځان باندې نظر هم

چې یې ځان کړلو فاني دا معرفت دے — بې فاني کله عارف د حقیقت د سے

لهٔ دنیا او لهٔ عقبیٰ څخه فارغ دے — هم لهٔ غیرو د مولا څخه فارغ دے

د عارف همت مدام دیدار د حق دے — چې عاشق یې د جمال فانی مطلق دے

## در بیان مذمت دنیا فرماید

[۱۲۷] دا مثال دے دا جهان دایم جواب کښې ... لکه وویني سړے یو څیز په خواب کښې
چې بېدار شي دے له خوبه اې عزیزه ... څه حاصل نهٔ وي له خوب لیدلي څیزه
هم په دا رنګ چې څوک ومري ناګهانه ... له جهان ځنې څه وړے نهٔ شي له ځانه
چې دنیا کښې د سړي د ښکو راه وي ... په عقبیٰ یې هم هغه نیکي همراه وي
دا دنیا ګنډه یو ښځه (۵۰۶) ده خوبروے ... ځان سینګار کاندي په سترګو کښې د شوګ (۵۰۷)
پروردهٔ شوهر په ناز په خپل آغوش کا ... په ښېوهٔ فرېب له هوشه یې بېهوش کا
که اوده یې شوهر بیا موند ناګهان ... نو ریبې مې کړي دا ظالمه تر زمان
تاله ښایي اې عزیزه پر هنره ... چې له هسې مکارې مدام کړه وېره
ساقي راکړه په آواز د تار شراب نن ... په زانو چې مطرب کېښولو رباب نن
په بدله بې د (۵۰۸) سرخط مهرنامه کړم ... آلوده به د تقوے ورع (۵۰۹) جامه کړم

## در بیان ورع ګوید

په چمن کښې نګهت (۵۱۰) پورته شو د ګلو ... بهار راغے وخت د سېر شو د بلبلو
نن زمان یې رنګ وبو په ګوناګون دے ... خو په سر کښې یې سرخط ایښے د خون دے
په ورع ثابت قدم اوسه اې زویه ... که په کار دې مرتبه دي وېره لویه
تل خانه د دین آباده په ورع شي ... ولېکن خو خرابي یې په طمع شي
[۱۲۸] چې له علمه له ورع دا خلي سبق څوک ... دوبار نهٔ ینسي په زړهٔ کښې غېر حق څوک
د حق وېره د ورع ځنې پیدا شي ... هر سړے چې بې ورع شي دے رسوا شي

هر سړے چې ځان ورع لۀ آراسته کا　　ځان د حق پۀ حرکاتو برخاسته کا

د هر چا چې د دوستي د حق طمع وي　　پۀ دا حب کښې دے کاذب چې بې ورع وي

## دربيان تقوی گويد

تقوے دادہ چې دے ترک کاندي حرام　　که لباس دے که شراب دے که طعام

که اگرچې به يوځين پاک و حلال وي　　د اصحابو د ورع وته وبال وي

چې ورع پيوست لۀ علم ولۀ عمد شي　　د اخلاص حسن ددۀ به بې خلل شي

ناګهان که اې بندہ دکړې ګناہ　　توبه ګار شه لۀ خالق شه عذرخواہ

چې ګناہ دې نقد داغله پۀ وجود　　د نسيه توبه يې نه کاندي څۀ سود

پۀ توبه کښې کاهلي کول خطا دہ　　پر اميد د زندګۍ چې بېوفا دہ

## دربيان فوايد خدمت

هر سړے چې پۀ هرڅۍ خدمت ګزين شي　　تل فردوس بې د خدمت لاندې دزين شي

هر سړے چې پۀ خدمت راضی مردان کا　　خدمات به ددې کس چرخ ګردان کا

چې خدمت لۀ هر بندہ بسته ميان شي　　لۀ آفاتو د دنيا به پۀ امان شي

[۱۲۹] هر سړے چې د صالح کاد و خدمت کا　　خاص ايزد بې لۀ دولته باعزت کا

هر خادم به و بهشت ته کړي مآب　　پۀ محشر کښې بې حساب او بې عقاب

خادمان به د اخوانو شي شفيع　　د دوئي ځاے به پۀ جهان کښې وي رفيع

هر خادم عاصی مفلس دے ډېر بهتر　　لۀ ممسکو عابدانو صد نفر

درکوي دب العزت د خادمانو اجر مزد د مائُمانو ، قائُمانو
پهٔ خدمت چې هر سړي سخت کړمر لهٔ شجر د معرفت مومي ثمر
خالق ځ کړلو جنت د خادمانو هم بخښي ودته ثواب د غازيانو

## دربيان صدقه فرمايد

چې له قهره د دب بيا مومي امان خيراتونه پهٔ نامه کړه د سبحان
صدقات کړه هر سبا او هر بېګاه چې دې خلاص له بلياتو کړي الـله
هر سړي لره چې خښ شولو عادت بېګمان به يې شي عمر زيادت
هر سړے چې خښ نېکی پهٔ حق دناس کا بهترين لهٔ وارو خلقو يې شناس کا
چې هرکس شو رسوو ننګ د ضرر (۵۱۲) پهٔ دنيا کښې به ترۀ نه وي بد تر
چې يې خوفه دې لهٔ حق يې دينه خوار دے هر سړے چې شو يې عقله ناپکار دے
تل ورع کوه اې زويه که مومنې (۵۱۳) نه کافر يې که لهٔ قهره يې ايمنې (۵۱۳)
[۱۳۰] هر سړے چې يې حيا دے يې احسان دے هر سړے چې يې ورع دے يې ايمان دے
يې توبې دے هر سړے چې يې توفيق دے حق نهٔ وينې هر سړے چې يې تحقيق دے
اې ساقي رادړه پياله پهٔ مے لبريزه چې نور خلاص شمه د هجر لهٔ خون ريزه
پهٔ پرتو د خرابات باغ و بوستان دے يې ديداره دې بوستان پهٔ مانندان دے

## در بيان تعظيم مهمان

پهٔ چمن کهٔ څو ورځې ميلمه ګل دے لهٔ ديداره يې مغرور څله بلبل دے

پهٔ گلشن کښې گل مهمان دیو ساعت دے　　د بلبل پسې تړول غم مصیبت دے

داوره وروره میلمه نیک لره نیک یار دے　　چې مهمان عظیم بخشش د کردګار دے

هر میلمه راوړي لهٔ ځانه روزي خپله　　اوګناه د مېزبان وړي اې عاقله

العیاذ د هر سړی چې رب دښمن شي　　میلمانهٔ به باندې منع لهٔ مسکن شي

داوره وروره مهمان تل لره عزیز　　چې رب ورکاندي عزت پهٔ هریو ځیز

هر مومن چې سربلند کړلو مهمان　　رب به باب پرې کشاده کا د جنان

طبیعت چې لهٔ مهمان کړ چا ملول　　[۵۱۵] ازرده به تر پنه خدامے شي هم رسول

هر بنده چې خدمتونه د مهمان کا　　دا خپل ځان به ښایسته د رب رحمان کا

چې مهمان ته پهٔ راښهٔ تندي وګوري　　د خالق به پرې الطاف وي پهٔ هرلوري

[۱۳۱] [۵۱۶] لهٔ تکلیفه لرې اوسه اې مېزبانه　　چې دې نهٔ شي د میلمه پالنه ګرانه

د میلمه ښهٔ نوازش پهٔ ډېر اعزاز کا　　که کافر وي هم بسته دروته باز کا

هر میلمه لهٔ بخششونو د کریم دے　　[۵۱۷] هر سړے چې شو ترې پټ هغه لئیم دے

که عارف یې لهٔ ساتلو منع زر کا　　د میلمه پهٔ راتلهٔ خلاص تندے او درکا

[۵۱۸] زه دېل په دسترخوان تهٔ مهمان مهٔ شه　　چې میلمه درباندې راشي پنهان مهٔ شه

[۵۱۹] له عزته چې میلمه څوک ګرامي کا　　ډېر کوشش به دے پهٔ خپله نېکنامي کا

هر یو کس چې دې میلمه شو خاص و عام　　مې باید ورلره راوړې تهٔ طعام

که طعام دې کور لږ وي او که بېش وي　　پیشکشي دې د میلمه او د درویش وي

مروه دېږي خاصه پهٔ نوم د خدامے تهٔ　　چې یافته کړې پهٔ بهشت عدن کښې ځامے تهٔ

که برېنډو ته څوک د بخښي جامه　　رب به ورکړي د رحمت خاصه نامه

[۵۲۰] که برېنډ تن ته د عور څوک جامه ورکا　　نور به خدامے ورله لهٔ نوره نامه ورکا

که روا دې کړو حاجت دیو محتاج　　رب به درکړي د اقبال پېروزه تاج

هر سړي له چې دولت کښې بخت یار وي　　پهٔ باطن او پهٔ ظاهر یې نېکي کار وي

داوره وروره مهٔ خوره تهٔ نان د بخیل　　مهٔ راوړه تهٔ پهٔ نظر خوان د بخیل

د ګمک (۵۲۱) وړوکی همه رنج و عنا (۵۲۲) ده
د سخي وړوکی همه نور و صفا ده

نابلد په وړوکي د بل کس مه ځه
په مردارېسې په شان د کرګس مه ځه

[۱۳۲] د نېکي توقع مه کړه له خبیسه
لرې لرې ځه له دروره د ابلیسه

که نېکي کوې و ځان ته غرور مه کړه
دا مرغه له خپل قفسه مغرور مه کړه

د ساقي باده ده صافه تر زلاله
آئینه کړي مصفا له رنګ و خاله

چې یې نه ویښم هغه ساعت ممات یم
په یوه رشحه چشمه د ښه حیات یم

# دربیان علامات احمق ګوید

هسې مه کړه تغافل بلبل احمقه
خون څڅېږي د سرو ګلو له ورقه

د خزان لښکر په تاخت راځي بېګاله
وړي چمن دے که سمن دے که ستاجاله

یوه شه ته درې علامانه د احمق وي
اولاً غافل له یادو د ښه حق وي

هم په دېل بېهوده بسیار عادت وي
کاهلي یې همېشه په عبادت وي

واوره دروره ته احمق او جاهل مه شه
یو ساعت د رب له یادو غافل مه شه

چې له یادو د خالق بنده غافل شو
حماقت په لاره دے روان باطل شو

له فرمانه د حق مه شه ګردن تابه
چې ته خلاص یې په محشر کښې له عذابه

هیڅرې مه کړه اختیار لاره باطله
درته وایم له ما داوره اې عاقله

په قضا کښې د آسمان مه وهه دم ته
هر سړے له ځانه زیات ګڼه نه کم ته

نا محرم ته مه کړه لاس ته په هیڅ حال
هسې مه خوره په هیڅ شان د یتیم مال

[۱۳۳] د ذره راز و یار ته مه وایه ښکاره
له خپل ځانه سره هم چرې مه وایه

شې په دا یه ته آزاد مقبل (۵۲۳) عزیز
بې طمع شه که لرې عقل و تمیز

## در بیان علامات فاسق

دي فاسق لهٔ درې خصلته پهٔ نهادتل ... وي پهٔ زړهٔ کښې يې اول حب دفسادتل

دڅوي دے دايمي خلق د خدا ے ... تل لهٔ سمې لارې کج دروي گمرا ے

## در بیان علامات شقي

درې ظاهرې علامې دي د شقي ... يو خوخوري مدام حرام لهٔ احمقي

بې اودسه هم بې وخته خفت وخېز کا ... هم د علم د ټولي ځخه گرېز کا

داوره مهٔ تښته لهٔ اهل دعلوم تهٔ ... چې ونه سوځې پهٔ اورکښې د سموم تهٔ [۵۲۵]

چې توانېږې وهيچا ته بد مهٔ وايه ... هم د چا عيب جوييې مهٔ کوه نېکرايه

باوضو اوسه مدام نېکی پېشه کړه ... لهٔ عذاب ځخه دگورتهٔ انديشه کړه

## در بیان علامات بخيل گويد

دي ظاهر درې علاماته د بخيله ... درته وايم تهٔ يې ياد کړه اې خليله

لهٔ اول لهٔ سايلانونه ترسان وي ... دے د ولږې د هيبته تل لرزان وي [۵۲۶]

که پهٔ ځخه ورله خوېش د اشنا راشي ... تر ښنه تېرشي بيا هاله پهٔ مرحبا شي

[۱۳۳] نهٔ دماله يې وچاته فايده وي ... نه يې درې له خوا نه ماندهٔ وي [۵۲۷]

## در بیان قساوت قلب

سخت دل سړي له دي درې علامته — پهٔ دا درې واړو مې ایښې د نښت لته
ضعیفانو سره کړي جور و ستم — نه څو صبر کوي دے پهٔ ښښ وکم
که کړې وعظ نصیحت ورته اکثر هیڅ — پهٔ سخت دل کښې به ددهٔ نهٔ وي کارگر هیڅ
پهٔ معنی اهل دنیا دي مردګان — لهٔ مړده وو سره مهٔ مړ کوه ځان

## در بیان خواستن حاجت

حاجت مهٔ غواړه اې دروره لهٔ بد روَیه — لهٔ خوب رویو څخه اوسه حاجت جویه
مسلمان که د حاجت غوښته لهٔ تاکا — مناسب دي چې حاجت ددهٔ روا کا
که توانېږې حاجت غواړه له سلطانه — ولې مهٔ غواړه لهٔ بد سګه دربانه
پهٔ وفات د د ښمنانو ښادي مهٔ کړه — چا د وړاندې پهٔ دا کار آزادي مهٔ کړه
اې ساقي راکړه باده خمس پیمایه — باندې حال د هغو تللیو راته وایه
که د عمر قدح ډېر تر سیاوش شم — دوباره به کیخسرو غونډې مے نوش شم

## در بیان قناعت فرماید

له د صبر و توکل وکړې بلبله — دوباره به بوسه زن شې لهٔ سرخ ګله
[۱۳۵] د بهار وعده نژدې که چمن شاړ دے — څهٔ له زړهٔ دې د هجران پهٔ غم لتاړ دے

قناعت سره سازش کړه اې پسره — که اګرچې فقیرې ده تلخ تره
هرسحرکښې شه بېدار و استغفارکړه — چې فرصت درلره شته دے وخت د کارکړه
هم د خپلو همنشینو غیبت مهٔ کړه — بې شیطانه پهٔ بل چا تهٔ لعنت مهٔ کړه
هره ورځ به په عالم کښې شې جدیده — کړه توبه لهٔ ګناهونو نه سعیده
چې لهٔ خدایه وېره نهٔ کړې بې تمیزه — وېروې به دې خالق لهٔ هره څیزه
حاجتونه د مسکین روا کړه یاره — چې تهٔ بیا مومې حاجات له کردګاره
هر یو څیز دے ګل پهٔ کف د عاریت کښې — ده زارې که لهٔ تا پاتې شوه پهٔ نیت کښې
عاریت به بیا وسپارې برابر — نهٔ دې وړې چا لهٔ ځان سره سرهٔ زر
لهٔ دنیا نورځهٔ حاصل تا ته تعین دي — خو یو نه ګزه کفن سه ګز زمین دي
چې د حق پهٔ نوم دې ورکړه هغه ستا دي — چې شو پاتې ګل دې ځان وته بلا دي
چې پهٔ لږ نعمت سړے لهٔ حق راضي شي — د حاجت یې ذوالجلال جلیل قاضي شي
د دنیا مثال دے پول مهٔ ګوره پل ته — ترې تېرېږه که دې عزم وي ومنزل ته
چې پول باندې جوړوو ښکے د خانه دے — عاقل نهٔ دے دغه کس هم دېوانه دے
روا نهٔ دے چې لهٔ رب غواړې غنا — چې غنا ده د مومن رنځ و عنا
دروېشي راغله شفا د مومنانو — هم پهٔ داشی دل صفا د مومنانو
[۱۲۰۶] که دې مال دے که اولاد دے اې عزیزه — دشمنان دي ستا د ځان اې باتمیزه
اِنَّمَا اَمْوَالُکُمْ[۵۲۸] آیت کړه یاد تهٔ — مال و ملک ددې جهان ګڼه برباد تهٔ
مرد راه له لهٔ دنیا څخه سود نشته — هرګز دهٔ لهٔ اندېښه د نابود نشته
هر مومن له چې لهٔ صدقه زړهٔ صافي دے — یو شپږه سره نیم ټوک وړله کافي دے
هر مومن چې زیادت کښې د دولت شي — دے به لږې هم لهٔ اصل سعادت شي
بنده ګانو د خالق چې ځان فدا کړ — د همت اسپ یې جولان[۵۲۹] تر ثریا کړ
سر و مال کهٔ پهٔ دالار نهٔ کړې فدا تهٔ — د مطلب نشان به هم نهٔ کړې پیدا تهٔ
ساقي پورته کړه باده د نور لهٔ کشه — ماکړه خلاص د زمانې لهٔ کشمکشه[۵۳۰]

نوره نقد ده بها نشته بې اساس یم — که قبلیږي ځان و روح ورته په لاس یم

## در نتایج سخا فرماید

نوبهار شو چمن نو لباس در بر کړ — منقش يې هر شجر په ګل ثمر کړ

دوپوشي مه کړه د ګل بلبل سخي شي — د غنچې په پېتول به دوزخي شي

واوره وروره کړه کوشش په سخاوت کښې — چې ورک نه شې ته د بخل په شدت کښې

پیوسته جوانمرد اوسه اې اخي — د دوزخ آتش دے سرد په مرد سخي

تل په مخ کښې د سخي نور و صفا وي — په جنت کښې دې قرین د مصطفی وي

د جنت په دروازه د قدرت خط دے — د سخي ځے په جنت کښې تل فقط دے

[۱۳۷] د سخیانو له دوزخ سره کار نشته — د ممسک ځے په محشر بې له نار نشته

اهل بخل لره کار ګل د تلبیس دے — هر بخیل په جهنم کښې له ابلیس دے

وبه نه وینې ممسک رود بهشت — بلکه نه رسي پرده بود بهشت

هغه ځے چې یې په نوم بولي سقر — د بخیل د کېږدن شو مقرر

اې بنده په جوانمردۍ مشهور اوسه — هم له کبر بخیلۍ څخه دور اوسه

تواضع او سخاوت شه پېشه ګیر نه — چې په مخ شې د عالم بدر منیر ته

## در بیان کارهای شیطانی

اې مومنه څلور خصلته شیطاني دي — پرې پوهېږي کوم کسان چې رحماني دي

د مومن عطسه[۵۳۱] چې تېره شوه تریکه — دا له فعله د شیطان کېږي بې شکه

هم د پوزې وينه فعل د شيطان دے
پهٔ ظاهر باطن (۵۳۲) دښمن د هر انسان دے

خميازه (۵۳۳) او قهٔ لهٔ فعله د شيطان دے
ايمن نهٔ وي لهٔ دښمنه چې انسان دے

# در بيان علامات منافق

بنده دوراو سه لهٔ اصل د نفاق تهٔ
منافق له پهٔ دوزخ کښې وثاق ته (۵۳۴)

علامات منافق کښې درې ظاهر دي
هم پهٔ دا مقهور (۵۳۵) پهٔ قهر د قاهر دي

چې وعده کړي پهٔ جهان واړه خلاف وي
هر يو قول يې پهٔ دروغ کذب اولاف وي

لهٔ مومن پهٔ دنيا کله امانت کا
هم مدام پهٔ امانت کښې خيانت کا

[۱۳۸] منافق لهٔ پهٔ وعده کله وفا شته
نه بدرنګ لره د مخ نور و صفا شته

شو محال چې منافق سړے امين شي
ددهٔ شر دې ورک لهٔ مخه د زمين شي

منافق سره چې هر سړے همراه شي
عاقبت به سرنګون غلطان پهٔ چاه شي

اې مومنه منافق نه کړه پرهېز
هم يې قتل لره تېغ لره تل تېز

اې ساقي دوان د سرو مېو ساغر کا
شګفته مې پهٔ دا اور سوے ځيګر کا

سنداسي (۵۳۶) درته پهٔ کنج د مېخانه يم
بې خبره لهٔ دې بويه مستانه يم

# درعلامات متقي فرمايد

اې بلبله پهٔ راتله د ګل خورم شوې
هسې ولې د دوران لهٔ غم بې غم شوې

درپسې باد د خزان پهٔ جست وخېز (۵۳۷) دے
د عاشقو لهٔ غرور ځخه پرهېز دے

اې مومنه ځښې درې د متقي دي
څهٔ نسبت لهٔ متقي بهٔ د شقي وي

برحذر اوسه تقي له یاره بده   چې دې نهٔ کړي آلوده له کاره بده

کم یې ذکر د دروغو پهٔ زبان وي   د دروغو لهٔ طریقه برکران وي (۵۳۸)

لهٔ حلالو هم لهٔ پاکو اخلي کام دے   چې تقي وي فاعل نه وي د حرام دے (۵۳۹)

# دربیان علامات اهل جنت فرماید

د مومن درې علامات پهٔ سرشت وي   دے بې شکه پهٔ دا اهل د بهشت وي

[۱۳۹] پهٔ نعمت شکر او صبر پر بلا کا   آئینه د زړهٔ پهٔ دا باندې صفا کا

هر مومن چې مستغفر شو پر گناه   حق تعالی یې لهٔ دوزخ لرې نگاه

هر مومن چې مدام خوف لهٔ خپل الله کا   ورته ځان د گناهونو عذر خواه کا

هر سړے چې پے درپے ترې گناه وشي   د خالق په نزد به اهل بهشت نهٔ شي

دایمي تهٔ لهٔ گناه پهٔ استغفار شه   د بدانو مفسدانو نه بېزار شه

هر نېکي چې تهٔ کوې بدست خوېش کا   دا نېکي دې خپله وقفه پهٔ درویش کا

هر درم چې دې ورکړے پهٔ ژوندون وي   پس لهٔ تا لهٔ سل درمونه افزون وي

یعنی نور چې ستا پهٔ روح سل ورکوینه   د خپل لاس درم دې یو تر بهتر دینه

که بخښلې دې یوه خرما دي تره   پس لهٔ تا لهٔ سل مثقال زرده بهتره

چې بخښش کړې پسې بیامهٔ کړه رجوع تهٔ   که اگرچې مرې لهٔ ولږې هم لهٔ جوع تهٔ

دا طعام د قي به نهٔ وي چا خوړلے   که اگرچې شي لهٔ ولږې دم ختلے

که ژامنو ته یو څیز د بخښې پلار   بیا یې رسي که ترې بیا اخلي دوبار

اې ساقي راکړه باده طرب انگیزه   پیوسته مې کړه لهٔ خاکه حسن خیزه

لکه شو مضق حسن پهٔ خپله وینه   دغه وینه دې زما قبوله شینه

# دربیان چیزهای ناخوش

[۱۴۰] غنچه خوښه لهٔ اول پهٔ رنګ وبو کړه     اې بلبله بیا یې هله آرزو کړه
د هر ګل چې رنګ و بو یې ناپیدا وي     پرې غریبه د شیدا بلبل سودا وي
دا بنادي د دنیا ګل سرا سر غم دے     بنادي کمه بیا یې وردستو ډېر ماتم دے
د قرآن آیت پهٔ زړهٔ وَلَا تَفْرَحْ(۵۴۰) کړه     پهٔ دنیا لهٔ ځانه دور بنادي فرح کړه
وادره زویه لهٔ محنت اولهٔ غم خوے کړه     ځ د زړهٔ هم پهٔ جانب د ښهٔ لجوے کړه
که لهٔ حق فرح جویې کوې روا ده     لهٔ دنیا فرح جویې وادره خطا ده
غم آلم دے مدام قوت د بنده ګانو     غم موندلے د فرح جوېنده ګانو
فکر وکړه چې لهٔ څهٔ یې تهٔ موجود     هر سړي لره غم خپل دے پر وجود
تهٔ لهٔ دې دپاره شوې لهٔ نیسته هست     چې پهٔ هر صبح و شام اوسې حق پرست
څو ژوندے یې خاص بنده د معبود اوسه     لهٔ حیا اولهٔ سخا اولهٔ جود اوسه



# نصایح و نتایج کونین

پهٔ اول د ورځې ودوره مهٔ کړه خواب تهٔ     بد خویې ته د نفس مهٔ کړه مآب تهٔ(۵۴۱)
پهٔ آخر د ورځ کښې هم خوب شو حرام     چې کوې اول لهٔ نمو نځه د ماښام
نهٔ ګڼي اهل حکمت وادره ثواب     نهٔ د ورځې نه د شپې پهٔ منځ کښې خواب
وادره ودوره تنها مهٔ ځه پهٔ سفر     چې تنها پهٔ سفر تلل شو ډېر خطر
دوارهٔ لاس پهٔ ځ وصل شولو کارشوم     استماع کوه لهٔ اهله د علوم
[۱۴۱] هم پهٔ شپه د آیینې کتل خطا دي     که پهٔ ورځ باندې ځ ګورې بنه روا دي

که دې کور چرې تنها وي هم تاريک وي　　يو ملگرے دې په کار دے چې نزديک وي

چې تېرېږي چارپايان قطار قطار　　د دوے منځ کښې مه تېرېږه په دا لار

داوره کم وهه د ښځې لاندې لاس　　اصل علم وته بد دے دا اساس

ستا به زيات کړي عزوجاه خالق خدا　　که خالق ته شپه او ورځ يې په دعا

ستا به عمر شي زياتي په دا جهان　　داوره ودوره که نېکي کوې پنهان

که ته غواړې چې روزي دې نه شي کمه　　گناه کمه په جهان کړه اې آدمه

هر مومن چې څخ په فسق په عصيان کا [۵۴۲]　　نور به خدائے ده په رزق کښې نقصان کا

رزق يې کم شي چې گفتار کوي دروغ　　هيڅ کاذب له له دروغ نشته فروغ

ډېر مفلس شي هر چې خوب د چا بسيار وي　　هر مومن لره بايده چې ډېر بېدار وي

په بربنډه چې په شپه کښې خوب انسان کا　　نور بې شکه په نصيب خپل کښې نقصان کا

په بربنډه سره بول سړے فقير کا　　له ډېر غم څخه که ځوان وي هم يې پير کا

هم چې خوري په جنابت کښې څوک طعام　　ناپسنده دے په نزد د خاص وعام

هم ريزه د ډوډيو مه غورځوه بنکته　　چې معمور شي د خالق له بنه نعمته

په شپه مه وهه جارو په کور په در کښې [۵۴۳]　　هم خزله، غولي در څخه بهر کښې

که آواز د مور و پلار وته په نام شې　　د خالق نعمت به کل په تا حرام شي

[۱۴۲] که د هر لرگي په غاښو کښې خلال کې [۵۴۴]　　بېخوا ځان به اخته په لوے وبال کې

لاس دې پاک مه کړه په خاوره هم په خټه　　ته او به ورله پېدا کړه کاهل غټه

هم د کور په دروازه مه کېږه ناسته　　چې روزي به دې شي کمه اې ناراسته

هم تکيه په دروازه مه کړه د کور ته　　دا اخلاق له مانه زده کړه په ضرور ته

په مردار ځاے کښې که کښيني طهارت کړې [۵۴۵]　　په دا پوهه شه چې خپل دين په دا غارت کړې

جامه مه گنډه شلېدلې له خپل تنه　　مودبو نه ادب زده کړه مومنه [۵۴۶]

په لمنه د قميص که څخ کړې پاک　　ستا به رزق په دا کم شي د خوراک

هم بازار لره څه کم راځه ترې جلت [۵۴۷]　　چې په دا به دې د سود متاع شي ملت

هم شو بدکه په پوکي وژنې چراغ — دردون مه کړه د چراغ دود په دماغ

په شریکه [548] [549] بدمنځ بدیره شانه مه کړه — خاص چې ستا د بدیرې وي شانه پرې دکړه

له ګدا مه کړه خرید تو کړې دنان — چې په دا سبب دے فقر د انسان

هم رفته [550] له کوره تار د عنکبوت [551] کښې — چې دا تار واوره لوګښاردے ستا په قوت کښې

خرڅ بهرله اندازې مه کړه بې دنځه — هم په وچه بدیره مه وهه [552] بدمنځه

که دسترس دې چرې زیات وي تنګي مه کړه — که لږې خپې د [553] رفتار ته لنګي مه کړه

اې ساقي دخپل جمال کمال له نیته — پیاله راکړه د شرابو د شربته

[۱۴۳] ستا دې عمر وي دراز ساقي نېکرویه — چې دې مست کړم د ساغر له مسته بویه

# درفوائد صبر فرماید

که شوه توره د صرصر د باد جابره — صبر وکړه غم دیده بلبل صابره

شګوفه به شګفته د صبر و داد شي — دګل دو به دچمن په لور آزاد شي

تاسي شئ په زمانه له صابرانو — په سختي باندې غم مه کړئ مومنانو

که دې تخ کړ تریو و ترش په بلا باندې — ځانته مه وایه صابر زما د ورانده

داوده درورة په بلا که صابر نه یې — په کافه د اهل صدق شاکر نه یې

بې ګیلې دے صبر ستا داوده جمیل — صبر بویه ګیله مه کړه له جلیل

که دې صبر چرې نه له دروښي وي — اهل فقر و سره کله ستا خوښي دي

که جنبش دې کل درب په بنه فرمان وي — ستا عزت به له خدمته فراوان وي

له خدمته بنده ورسي عقبی ته — ولیکن خوله حرمت رسي مولا ته

په حرمت کښې دې حرمت آرام د دل وي — شه بېدار چې خدمتکار مرد مقبل وي

که ته نه ګرځې اې دروره په خلاف کښې — دوا کېږي بیاکه ته د صبر لاف کښې

که دې سترګې د بنادې په انتظار وي  پـه بلا کښې بـه ستا صبر پـه هر کار وي

# در تجريـد و تفريـد فرمايد

---

[۱۴۴] که په کار دې صفا يې ده مجرد شه  هم خبر ته د تجريد[۵۵۴] تفريد[۵۵۵] په حد شه

که دعوه دې د تجريد وي دعوه مه کړه  پسې فهم په معنی د تفريـد وکړه

د تجريد اصل و داع د کل شهوت دے  پسې دا رنګ انقطاع[۵۵۶] د کل شبهت[۵۵۷] دے

که شهوت لره يکبار ورکړې طلاق  ته به هاله په تفريد شې داوره طاق

چې په غيرو يې نظر نه کړې جاوېد ته  له تجريد څخه هاله کوه اميد ته

اعتماد کوه په حق باندې اې درورة  په تفريد به هاله طاق شې داوره ګوره

دنيا ترک کړه په لحاظ د آخرت ته  له ځان وباسه لباس د فاخرت ته

که يافته له سعادت کړې دا مقام  ته صاحب يې د تجريد او والسلام

که لاس داخل له دنيا په نوم د حق  له تفريد به درته د وايې سبق

څه مدام په مرديت مجرد اوسه  چې په هر فرقه يې ناست مُفَرّد اوسه

درورة ترکه کبر عجب خود رايې[۵۵۸] کړه  د خپل قدر منزلت شنا سايې کړه

هر سړے چې د سکرو په دکان راشي  په جامه يې له سياهي نه نقصان راشي

هر سړے چې وعطار ته شو قريب  دے د عطرو له بوے بيا مومي نصيب

همنشين د صالحانو په دنيا شه  لرې اوسه تل له رندو[۵۵۹] له کلا[۵۶۰] شه

ظالمانو ته مېل مه کړه اې عزيزه  اوکه نه ته به له دوئ شې بې تميزه

[۱۴۵] کړه له ظلم نه ګرځ داوره فقيره  سوخته نه شې په اور تېز داوره فقيره

دظالم صحبت په مثل د آتش دے  دا په دا چې خلق آزار تند و سرکش دے

په حضور د صالحانو به صالح شې  له نشسته د بدانو به طالح[۵۶۱] شې

هر مومن چې لهٔ صالحو دے همدم شي — دے خاصه به پهٔ حريم د حق محرم شي

داوره ودوره مهٔ پرېږده دشرعې لاره — لهٔ دي فرعې به لهٔ بېخ شي خبر داره

که بېرون لهٔ شريعت کښېږدي قدم تهٔ — شي به بند په ضلالت رنج و آلم تهٔ

هر مومن چې دے پهٔ لار د ضلالت ځي — جهالت ځنې پهٔ لار د بطالت (۵۶۲) ځي

حق طلب شه اولهٔ کار باطله دور شه — پهٔ سخا پهٔ مردمي کښې تهٔ مشهور شه

چې غلط لهٔ دي صراط المستقيم شو — پهٔ عذاب د آخرت کښې دے مقيم شو

د شيطان پهٔ لاره مهٔ اخله گام ورورهٔ — دا پهٔ دا چې نهٔ شي خوار و بدنام ورورهٔ

چې پهٔ لار د حقيقت باندې سالک وي — شپه او ورځ خايف لهٔ قهره د مالک (۵۶۳) وي

پهٔ خلاف د نفس کار د کړه برابر تهٔ — چې سوخته نهٔ شي پهٔ نار کښې د سقر تهٔ

ساقي پورته کړه پياله د نور لهٔ آبه — سوي زړونه د مستانو کړه سېرابه

چې سېراب پهٔ دا پياله د برکت شي — پهٔ تربت بې د ميده گل د رحمت شي

# درکرامتهای الٰهی فرمايد

---

[۱۳۶] اې بلبله مدح خوانه خوش نفسه — آزاده اوسې د هجر لهٔ قفسه

پهٔ چمن کښې لهٔ سمنه سخنگوے شه — پهٔ هزار حمد ه حامد د رنگ وبوے شه

ځلور څيزه کرامات راغله د حق — شو مقبل چې يې ياد کړے دا سبق

اول دادے چې سرے شولو راستگوے — مدام وي لهٔ سخاوته تازه روے

پس لهٔ دغهٔ حفاظت د امانت کا — پهٔ دا رنگې نظر پاک لهٔ خيانت کا

که حق درکړه هم دغه خو يه چهار — تهٔ مومن بهٔ شي هاله پرهېزگار

## آن که دوستی را نه شاید

دوست بد دے هغه دوست چې زیان کاروي — مې باید چې لهٔ دې دوسته دست بردارو

هر سړے چې ستا بدي وایي اې وروره — دوست یې مهٔ شماره دښمن دے واوره گوره

دوستي مهٔ کوه هرگز لهٔ شراب خوره — لهٔ دوستي نه یې ځان لرې لره وروره

که منعم سړے مانع شو د زکوٰة — دوستي مهٔ کوه لهٔ ده پهٔ خپل حیوٰة

هم پهٔ دا رنگ لهٔ سود خور مهٔ کړه دوستي — درته وایم پهٔ دا کار مهٔ کړه سستي

داوره وروره لهٔ سود خور کوه حذر تل — چې سود خور شولو دښمن درب اکبر تل

(۵٦۴)
هر سړے چې لهٔ مخلوقه سود دبا کا — مهٔ دوستي کړه لهٔ دې کس مهٔ مرحبا کا

## درغمخواره کي مردم فرماید

[۱۴] پهٔ بالین د بیمارانو کړه گذر تل — دا سنت دے لهٔ حضرت خیر البشر تل

چې طاقت دې وي تشنه سړے سېراب کړه — هر مجلس کښې خدمتونه د اصحاب کړه

پاسداري کړه د خاطر د یتیمانو — چې دوستان درب اکبر شئ عزیزانو

(۵٦۵)
که یتیم پهٔ ژړا سر شي ناگهانه — عرش الحق شي پهٔ جنبش لهٔ دې زمانه

هر سړے چې پهٔ ژړا کړي یتیمان — پهٔ دوزخ به یې مالک کاندي بریان

(۵٦٦)
هر سړے چې پهٔ خندا یتیم خسته کړي — حق تعالی بې پهٔ جنت کښې پیوسته کړي

هر سړے چې دا اسرار د خاطر فاش کا — لهٔ دې هسې کسه دوراوسه تالاش کا

پهٔ ځوانۍ کښې پیران ډېر لره عزیز ته — چې عزیز شې پهٔ جهان کښې باتمیز ته

پهٔ ضعیفو که بخشش وکړې روا دي — چې موصوف پهٔ دا خویونو اولیاء دي

پهٔ موړ والي کښې هرګز مهٔ خوره طعام تهٔ
چې پهٔ زړهٔ باندې ممات نهٔ شې غلام تهٔ

(٥٦٧) بېمارې د هر سړي لهٔ پرخوري ده
همېشه لهٔ ډېر خوراکه بېماري ده

راحت نهٔ مومي هېچرې حسود شوم
دروغجن لره د فا نشته مرقــوم

(٥٦٨) منافق لره دښمن او بې مدار تهٔ
هم لهٔ دهٔ هم يې لهٔ فعل شه بېزار تهٔ

هر بدخويه پهٔ توبه کله محکم وي
هر بخيل لهٔ مروت پهٔ ځان کښې کم وي

هم پهٔ دا چې دين دې پاک ، لکه زلال شي
ستا طلب دې همېشه پهٔ قوت حلال شي

هر سړے چې پهٔ طلب د قوت حرام شي
زړهٔ به مړ د دهٔ پهٔ تن کښې کل تمام شي

[۱۳۸] اې ساقي د آتشي شرابو مـيره
نور مې نهٔ شي لهٔ ساغر توبه کشيره

نن د نو هلال د عيد نوے رويت دے
لهٔ شکسته د توبې حصول نعمت دے

## در بيان صلهٔ رحم

راشه راشه اې بلبله خوش زبانه
پر زبان دې برکت شه لهٔ سبحانه

څهٔ پهٔ دا صله رحمي کښې تقرير وکړه
پهٔ ګوشه د خرابات کښې تعمير وکړه

درورہ دروهه پهٔ پوښتنه د خوېشانو
چې دې عمر شي دراز لهٔ همـالانو

هر سړے چې لهٔ خوېشانو روګردان شي
بې ګمان به يې پهٔ عمر کښې نقصان شي

هر سړے چې رحم ترک لهٔ اقارب کا
(٥٦٩) جسم خپل به داوره قوت د عقارب کا

داوره دروره که خوېشان دې ډېر بدان دي
هم لهٔ دوئې رحم قطعي به ډېر نقصان دي

هر سړے چې لهٔ خوېشانو بيګانه شي
پهٔ بدى کښې به يې نوم به افسانه شي

# درجوانمردي فرمايد

---

اول دا پهٔ دا جهان جوانمردي وي — چې لهٔ خدايه ددهٔ تل ترسيده ګي وي

عذر غواړي لهٔ رب پېش لهٔ معصيته [۵۷۰] — عبادت وي ددهٔ بېش لهٔ معصيته

هر سړے چې کوي کار د شپکمردانو — کړي مدام لطف و احسان لهٔ ضعيفانو

هر سړے چې لهٔ مردانو د خدا وي — دے به تل پهٔ تنګدستي کښې باسخاوي

[۱۳۹] لهٔ مردانو صحبتي اوسه نېک دايه — چې پهٔ تا باندې نظر وشي لهٔ خدايه

چې لهٔ مردو دحق بيامومي نشان څوک — کله وايي د دښمن عيب پهٔ ژبان څوک

مرد نهٔ غواړي دښمن لره هلاک تل — که لهٔ غمه ددهٔ وي اندوه ناک تل

مرد تهٔ غواړي انصاف لهٔ چاپهٔ وړه — که پرې وروره وشي ظلم جفا ډېره

چې يې کام د مردمي پهٔ لار نهادوي [۵۷۱] — لټووني کله دے د خپل مراد وي

واوره ژويه اول ترک خپل مراد کا — بيا پهٔ لاره د تسليم څهٔ ځان آزاد کا [۵۷۲]

# درفقر فرمايد

---

فقر [۵۷۳] پېژني چې څهٔ دي برادره — درته ښايم که تهٔ يې ترې ناخبره

که اګر وي بېنوا د ګليم لاندې — ځان وخلقو ته غني کړي ددوستو وړاندې

د موړ والي دم پهٔ ولږه کښې وهينه — لهٔ دښمن سره مدام دوستي کوينه

که اګرچې وي لاغر زار وضعيف تل — پهٔ بنده ګي کښې به کم نهٔ وي لهٔ حريف تل

تل ځيګر يې پهٔ خون پرُ لاس يې تهي وي [۵۷۴] — نزاري کښې نمايي يې فربهي وي [۵۷۵]

فقيرانو ته ځان وسپاره يکباد خپل — چې نګاه دې ولري پروردګار خپل

هر سړے لهٔ فقیرانو چې همدم شي       خاص پهٔ سرا کښې دَجنت به دے محرم شي

اې ساقي ستا د ساغر پهٔ تمنا یم       دست بردارہ لهٔ دې دارہ د فنا یم

[۱۵۰] رشحه نوش که زهٔ لهٔ تا غونډې ساقي شم       پهٔ عالم کښې د فاني به بیا باقي شم

# در انتباه از غفلت

پهٔ بلا کښې یارې مهٔ غواړہ لهٔ چانه       نشته نشته فریاد رس بې لهٔ سبحانه

له خپل ربه عزوجله غافل مهٔ شه       د غافل غونډې په لاره باطل مهٔ شه

دا جهان ځې د ژړا دے خندا مهٔ کړه       د عبرت سترګو له زخم پیدا مهٔ کړه

[۵۷۷] د مېړې غونډې لهٔ حرصه هرخوا مهٔ ځه       د ناصح لهٔ نصیحته [۵۷۸] سوا [۵۷۹] مهٔ ځــه

واوره دروره هلک نهٔ یې بازي مهٔ کړه       لهٔ شیطان سره دکار انبازي مهٔ کړه

تهٔ لهٔ نفسه لهٔ ګناه مددګار مهٔ شه       عمر تېر مهٔ کړه پهٔ باد تبهکار مهٔ شه

د تهمت ځي له پهٔ لاس و پهٔ پا مهٔ ځه       تهٔ د حق پهٔ لاره روند نابینا مهٔ ځه

پهٔ هوا پهٔ کبر [۵۸۰] مهٔ شه مرکب [۵۸۱] تاز تهٔ       پهٔ خپل ځان مهٔ کړه شیطان مسخره باز تهٔ

د دښمن لهٔ دښمنې نه ایمن مهٔ شه       د بې ستنو چت د لاندې ساکن مهٔ شه

توبه واخله چې سفر دې دے د وړاندې       عمر سرته سره باد دے لاندې باندې

د دوزخ د اور لهٔ طوق او سه پهٔ ویره       نفس بد دې پایمال کړه سر د سره

چې ونهٔ سوځې سازش د ځان پېښه کړه       لهٔ عذاب قهر د حق نه اندېښه کړه

ټول جهان له پهٔ دوزخ راغ ګذره       د بنادې ځه دے حرام بې له خطره

[۱۵۱] چې آتش لرې د وړاندې اې فقیره       [۵۸۲] خوف دې نشته دے لهٔ اوره د سعیره

باد دې دروند دے غر د وړاندې شه بینا تهٔ       تېر به نهٔ شې ترې پهٔ سعي د بد چا تهٔ

هم د وړاندې لرې ورځ د دستا [۵۸۳] خښ تهٔ       امکان نهٔ لرې د خدایه د ګرېز تهٔ

واوره ووره تل منه فرمان د حق ته — له فرمانه روگردان مه شه مطلق ته

ووره ونیسه بنه لار د شریعت ته — واوره ترکه کړه هم لار د معصیت ته

د خالق له حکمه مه شه گردن تاب ته (۵۸۳) — چې محشر کښې پاتې نه شې پر عذاب ته

وبه مومې په بهشت د عدن ځاے ته — که شفقت کوې له خلقوله خپل خدا ته

ځه به بیا مومې په دارکښې د سلام ته — مړوې که فقیر درېے په طعام ته

که خوشحال به په جهان زړونه خسته کړي — په ځان خلاص به جنتونه دربسته کړي

د ناصح نصیحتونه که په ځاے کړي — نور لازم به په خپل ځاے بخشش د خدا کړي

خدایه شه پشت و پناه د مومنانو — عفوه کړه جمله گناه د مومنانو

د عاجزو د جرمونو که بس نشته — دلې بې له تا یې بل فریاد رس نشته

که مو بولې که شړې مو بنده گي ده — ستا په حکم مو هر وخت خورسنده گي ده

خاص رحمت دې وي د حق پر هغه ځان — چې هر وخت د انصائح لولي بې شان

ساقي راکړه صبحدم ساغر د رحم — له شفق یې رابېرون کړه نور د رحم

چې یې پرکړې له منبعه د حیاته — پرې به رخت د بقا وړم له خراباته

## [۱۵۲] خاتمهٔ کتاب

افرین شه اې خاکي بلبل ضعیفه — تازه دله خوش نفسه له حریفه

خاصه فضل هم په تاد خاوند خپل شه — د میده دې له تربت د رحم گل شه

وپر رحمت دې له درگاه د ذوالجلال وي — خاص په روح دې د هغه صاحب کمال وي

چې منظوم یې کړلې دا مرغلرې — په صدف کښې د معنی لویې نادرې

چې جهان یې له دې نظم سربلند کړ — راڅرگند یې په جهان کښې کان د پند کړ

له ده پاتې په جهان کښې یادگارې ده — په هر پند کښې یې صد چنده سرورې ده

عمل دینو لره دا قدر کافي دے — په دا رنګ اهل دنیا له په صافي دے
هر سړے چې باندې پوه شولو عاقل دے — چې روان د دوئي په لاره شو کامل دے
په جوار د انبیا دارالسلام تل — همنشین به تل ابده وي مدام تل
پاک احده چې مې وخت د ځنکدن شي — سترګي مړاوې تاب و تب مې په بدن شي
خاص شربت د شهادت را باندې نوش کړه — په چمن د سعادت مې خلعت پوش کړه
په کونېنو کښې چې نشته فریاد رس بل — نه هادي مې بې له تا نه شته یو کس بل
اې خاونده په خاطر د نور مجید — په بلا باندې مې صبر کړه مزید
[۱۵۳] یا غفوره ما مشکور په خپل نعمت کړه — درک له عین عنایت مې معصیت کړه
د ماضي ګناه بخشش ذاته په لاس کړه — آینده مې بنده ګي د زړه حواس کړه
له دروغو هم له فحشه له غیبته — له بهتان او له نفاق له مصیبته
له زنا له جوارې او له حرامه — دلیرې په فسادونو له بدکامه
امان راکړه اې زما رحیم کریمه — دا ذره د خاک له اوره کړه بې بیمه
صاف نیت جوانمردي په عبادت کښې — غوارم دا دواړه د ژړه په نیک خصلت کښې
خاص خاطر د رحمة للعالمین کا — نه مغفوره مذنبین کل مومنین کا
هر چې تا ته دي معلوم په کائنات — پرېعد دېې شه پرده سلام صلوٰت
هم په داړو اهل بیتو اجمعینو — په دا رنګ په صالحینو مومنینو

## در احتراز ناکس و خاتمه

هر چې سر د نالایق سرې بلند کا — پیاله پیاز تخنه امید د منې خوند کا
سرشته به عزت کا د ځان وره کا — څوک لستونې کښې پالنه د مارنه کا
هره ونه چې ترخه دي په سرشت کښې — که یې وکرې خاصه باغ د بهشت کښې

هم په وخت کښې د او بو یې کړي سېرابه — خاص په شیرو د جنت له شهدنابه

[۱۵۳] په هنګام کښې د مطلب چې ښکاره سر کا — هم هغه تلخ شجر تلخ ثمر کا

په دکان د عنبرې که ګذر وکړي — عنبرې به پرې لباس پوشیده نه کړي

که ګذر دې په دکان د سکور فروش شي — ستا به تور پرې باندې تن او واړه پوش شي

د بد اصلو نه به څه د چا امېد شي — چې زنګی په شستشو کله سپید شي

له بد ذات چې د نېکي طمع کړې واوره — غورځوې په خپلو سترګو کښې دې خاوره

چې سرشت یې له بدي شو آفرید — خلاص به نه کړې دې قلف پر کلید

# تمثیل دوم

که څوک پورته یو بېضه له زاغ زشت کا — بیا یې لاندې تر طاووسه [۵۸۵] دبهشت [۵۸۶] کا

په زرکاله پرې سینه مږي طاووس — په شجر کښې د طوبی لکه عروس

پس له هغه پکښې روح [۵۸۷] پو کړي جبریل — هم په حکم د خالق [۵۸۸] رب الجلیل

زایده به له بېضی د زاغه زاغ شي [۵۸۹] — که دا یې یې په سل رنګ طاووس [۵۹۰] دباغ شي [۵۹۱]

که د رحم شفقت پرې نه شفیق کي — مطوق به سپد د در محمد دفیق کي

ددې دفتر ټول بېتونه = ۱۷۸۸

تمت دفتر اول

# دلومړي دفترلمن ليکونه

## (حاشيې):

---

(۱) نخلبند : هغه څوک چې له موم يا کاغذ نه ګل اويامصنوعي ونې جوړ وي (عميد)

(۲) ماء معين : پاکې او روانې اوبه (عميد)

(۳) غصن : ښاخ ، څانګه (عميد)

(۴) رايت : بيرغ ، علامت

(۵) علو : لوړوالے

(۶) پرداز : جلا ورکول ، صيقلول ، امادلته دعرض پرداز په بڼه ، دعرض کړونکي په معنیٰ راغلے دے.

(۷) بساط : فرش ، پټکه ، دستګاه ، اماد (يا په زور) فراخه ځمکه .

(۸) نشاط : خوښي ، خوشحالي (ظفر)

(۹) سحبان : د زفرالوائلي زوے و ، سحبان وايل هم بلل شوے دے . د عربو مشهور خطيب و او په عربوکښې يې فصاحت او بلاغت مثالي ارزښت درلود ، دے د جهالت په دور کښې زيږيدلے او په صدر اسلام کښې تيرشوے دے. (عميد)

(۱۰) لحن داؤدی : د داؤد (ع) آواز چې په خوش آوازي کښې نمونه و ، الحان : آوازونه لحن : آواز (جمع)

(۱۱) مرآت : آيئنه ، هنداره

(۱۲) طراز : زينت ، نقش ونګار ، ډول ، طريقه

(۱۳) خلخال :- پازيب (پښتو - اردو لغت)

(۱۴) اصل : اغوستوه لي .

(۱۵) فِلفِل : مرچ ته وايي ، فِلفِل دوه ډوله دي ، تور او سپین (دفوایدلغتنامه)

(۱۶) فسخ : له منځه وړل ، باطلول .

(۱۷) اصل : دوه ښې

(۱۸) تمجید : په ښکله دچا ستاینه ، محترم ګڼل

(۱۹) تحمید : ستاینه ، ستاینه کول

(۲۰) شبچراغ : هرهغه څیز چې دشپې له خوا ځلا او رڼا ولري .

(۲۱) الست : دازل ورځ هغه زمان چې ابتدا نه لري .

(۲۲) مهیمن : نګهبان ، ساتونکی ، ساتندوی ، رښتینی ګواه (فرهنګ لغات قرآنی)

(۲۳) تلامیذ : دتلمیذ جمع ، شاګردان .

(۲۴) بلی : دهو په معنی ، دقرآن مجید دسورهٔ بقره ۲۶۰ آیت ته اشاره ده .

(۲۵) رستګار : آزاد ، خلاص ، آسوده .

(۲۶) عیاذ : پناه وړل ، پناه اخیستل اوهم دپناه اوپناه ځای په معنی راغلی دی .

(۲۷) شفیع المذنبین ، دګناهګارانو شفاعت کوونکی ، شفیع هغه څوک دی چې بل ته دعفوې او مرستې غوښتنه وکړي.

(۲۸) سرین : تخت ، دباچهی تخت (پښتو ژبه)

(۲۹) قِلاده : ګردن بند ، هغه څه چې په غاړې پورې تړل کېږي ، ملوبند ، غاړه کۍ .

(۳۰) انباز ، شریک ، په کارکښې ملګری (دجبعه د دیوان لغتنامه)

(۳۱) ریب : شک ، شبه ، ګمان ، وسواس (پښتو ژبه ، نهم جلد)

(۳۲) ملفوف : په لفافه کښې پېچلی شوی ، نغښتی .

(۳۳) سمیع : اورېدونکی ، دخدای (ج) صفاتي نوم .

(۳۴) رفیع : اوچت ، لوړ ، هسک

(۳۵) همتا : مثل ، مانند ، شریک ، برابر ، همجنس .

(۳۶) برید : حد ، حدود ، سرحد (پښتو قاموس)

(۳۷) وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَیْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِیْدِ ٥ : (او موږ نږدې یو ده ته تر ښهرګه)

(۳۸) غافر : بخښونکی ، د ګناهونو بخښونکی (فرهنګ لغات قرآن)

(۳۹) طباق : اوه طبقې آسمانونه ، درجه په درجه یو د بل لاندې (فرهنګ لغات قرآن)

(۴۰) پرکار : دور ، چکر ، چرخ (ظفر اللغات)

(۴۱) کبود : شیلي رنګ (عمید)

(۴۲) غبراء : ګردناک ، خاکي رنګه ، ځمکه ، داغبر ، مؤنث .

(۴۳) مغاک : ګودال ، اوګود ، هغه ځاے ته ونېل کېږي چې دیوالونه یې لوړ او لاندې ږېر ژور تلل وي (عمید)

(۴۴) مصابیح : د مصباح ، جمع او مصباح : څراغ (عمید) ✻ چې = چې یې

(۴۵) سم الخیاط : د ستنې سورے ، د ستنې سپوږے .

(۴۶) خشوع : له خوارۍ او زارۍ سر اطاعت ته ټیټول ، فرمانبرداري .

(۴۷) سیم : یو قیمتي فلز ، نقرې ته هم وېل کېږي (عمید)

(۴۸) الوان : د لون جمع ، رنګونه .

(۴۹) بېخونے : بېخونه یې .

(۵۰) شاخونے : شاخونه یې .

(۵۱) طیور : د طاېر جمع ، طائر : الوتونکی (فرهنګ لغات قرآن)

(۵۲) منقش : نقش ونګار ورکړل شوے ، رنګ آمېزي شوے (عمید)

(۵۳) پرتو : رڼنايي ، شعاع (ظفر اللغات)

(۵۴) په اصل کښې هنداسې لیکل شوے دے ، په عامه محاوره کښې هم دغه رنګه وېل کېږي ، خو دلغت په کتبو کښې "ښستی" ضبط دے ، ښستی ګل : داؤدي ګل (پښتو - اردو لغت)

(۵۵) اصل : سمین ، سیمین : هر هغه څه چې سپین او د نقرې په رنګ وي (عمید)

(۵۶) سمن : د چمبېلي ګل (پښتو ژبه) او سوسن : د زنبق له طايفې یو ګل دے چې اوږدې پاڼې

اوږږ سیلي او سپین خوشبوی ګلان لري.

۵۷) متجلي : روښانه ، ځرګند ، جلوه ګر (عمید)

۵۸) احسن : ډېر ښه ، بهتر (عمید)

۵۹) شقایق : دلاله ګل -

۶۰) لقا : دیدار کول ، دیدار -

۶۱) سهي : سم قامت ، سروسهی د قد و قامت د صفت لپاره استعمالیږي.

۶۲) مکتوم : پټ ، پنهان ، پوشیده.

۶۳) تطهیر : پاکول ، پاکیزه کول.

۶۴) کوثر : په جنت کښې د یو نهر نوم ، اما په لغات قرآن کښې یې کوثر ته د با عظمت معنیٰ کښلې ده -

۶۵) قاسم : وېشونکی .

۶۶) رشحه : قطره ، څاڅکی

۶۷) آفریدن : پیدا کول ، له نیست نه هست کول - نور آفریدي : نور پیدا کوونکي -

۶۸) واله : شیفته ، عاشق ، زړه بایلونکی -

۶۹) استبرق : زري ټوکر ، هغه کپړه چې له وریښمو او زرتارو او بدل کیږي.

۷۰) بویه : ښایي ، شاید ، باید (پښتو قاموس)

۷۱) ګوډنۍ : غاړه کۍ ، طوق (پښتو قاموس)

۷۲) اصل : کمتر ، د نیم بیتي یوه ځالنه راځي -

۷۳) لاحق : پیوست .

۷۴) فراش : هغه څوک چې فرش غوړوي .

۷۵) طیار : پرواز کوونکی ، چست او چالاک

۷۶) جوړې : جوړیږي -

۷۷) کالبوت : کالبد : قالب ، تن ، بدن

(۷۸) نسیان : لهٔ یاده وتل ، فراموشی (عمید)

(۷۹) تحت الثری : دزمکې وروستی طبقه (فرهنگ لغات قرآن)

(۸۰) خلعت : دجامو درسته ، جوړه ، چې دیو لوی شخص لهٔ خوا چاته دانعام پهٔ ډول ورکول کیږي (ظفر ، عمید)

(۸۱) دامن : لمن .

(۸۲) بې : بې یې .

(۸۳) خطه : دزمکې یوه برخه ، محدوده زمکه .

(۸۴) مرغزار : شنه او خرمه زمکه ، سبزه زار .

(۸۵) ارم : دجنت پهٔ نمونه بې مثله باغ (ظفر)

(۸۶) نوروس : لمرپرست ، نورپرست ، لمرګلی ، ګل آفتاب پرست ، کاپرګل

(۸۷) شاه سپرغم : د شاه اسپرم پهٔ بڼه هم راغلی دی اوګل ریحان ته ویل کیږي . او ریحان ته یې پهٔ ظفراللغات ۸۵۸ مخ او پښتو ژبه ۹/ ۱۰۹ مخ کښې دکشمالي ، ببري او ناز بو معناوې کښلې دي .

(۸۸) بید مشک : دولې دونې پهٔ شان ونه ده . چې معطره او خوشبو شګوفه لري . لهٔ دې شګوفې نځه عرق جوړوي . او عرق بید مشک یې بولي .

(۸۹) اصل : ورڅښه .

(۹۰) فربهی : چاغي .

(۹۱) عِقد ثریا : د پروین ستورے ته عِقدِ ثریا ځکه وایي چې دځو ستورو مجموعه ده . او دغاړې دهار (ګلوبند) سره شباهت لري . ثریا ته یې پهٔ ظفراللغات کښې دپیروغه معنی کښلې ده . او ویلي یې دي چې اوه ستوري دي .

(۹۲) افانین : دونو څانګې

(۹۳) دوشیزه : ځوانه ، باکره نجلۍ چې پهٔ میړه شوې نهٔ وي .

(۹۴) زلال : رڼې اوبهٔ .

۹۵) کبوړے : دوړکې۔

۹۶) نوا : آواز

۹۷) کاخ : قصر ، ماڼۍ ، عمارت

۹۸) دوشاله : پټو ، گرم څادر (پښتو ژبه)

۹۹) مُل : شراب۔

۱۰۰) هزاردستان : دهزار دستان په بنه هم لیکل کیږي : بلبل (عمید)

۱۰۱) ریاض : د روضې جمع ، روضه ، باغ ، گلستان۔

۱۰۲) شریکې ، شریک یې۔

۱۰۳) نغښتل : پیچل (زړه پانګه)

۱۰۴) عبیر : خوشبویه دارو ، دخوشبویه داروګانو مخلوط۔

۱۰۵) اصل : ناګهاـ

۱۰۶) اصل:خاز ومان ، دا کلمه له هسدې دوو توکو څخه مرکبه ده۔ اود کور د سامان د کور د خلکو او ژوند په معنی راځي۔

۱۰۷) ګله : شګوفه (ظفر)

۱۰۸) ګلخن : تنور ، دحمام آتش خانه۔

۱۰۹) اشجار : د شجر جمع ۔ ونې

۱۱۰) سرما : دیخنۍ موسم ، دژمي موسم

۱۱۱) صرصر : تندباد ، تېز او سوړ باد (عمید)

۱۱۲) اصل :بلوه،داکلمه دلغت په کتبو د بلوی ، بلوا په شکل ضبط ده ۔معنی یې ورته کیدلې : مصیبت ، غوغا۔

۱۱۳) ظلمات : تیارې ، تیرې.

۱۱۴) أصل، ظلمات کښې ـ زیات کښې ـ په دواړو نیم بیتیو کښې د "کښې" لفظ په "کې" واړول شو۔ چې د "کړې" پر ځاے په محاوره کښې مستعمل دے۔

۱۱۵) آبستن : بلاربېدل ، باردار .

۱۱۶) اصل : کوځ

۱۱۷) وښکي : وکښي ، وليکي .

۱۱۸) خرد : عقل ، هوښ .

۱۱۹) کن فيکون : شه پس کېږي .

۱۲۰) رهنمون : لار ښوونکی ، څوک چې چاته لار وښيي .

۱۲۱) امجد : ډېر بزرګوار ، ډېر څواغرد .

۱۲۲) جلال : بزرګي ، لويوالی .

۱۲۳) کبرياء : عظمت ، لويوالی .

۱۲۴) عز : ارجمندی ، ارجمند ، ګران ، خوږ .

۱۲۵) اصل : ځېغون ، تېغون : ځلېدونکی ، روښان .

۱۲۶) غضنفر : ځيرونکی زمری (مزری)

۱۲۷) آفاق : دافق جمع ، څنډې ، کنارې ، د آسمان څنډې .

۱۲۸) اصل : پېداچې لهٔ خريدار سره نه قافيه کېږي .

۱۲۹) کاخ : ماڼۍ ، قصر .

۱۳۰) طيور : دطاير جمع ، الوتکي .

۱۳۱) جوسه : ځېره

۱۳۲) اصل : روح

۱۳۳) صفرا : دا صفر مؤنث . د زېړ رنګ پهٔ معنیٰ . اماصفرا يوه زېړ رنګه مايع ده ، چې له ينې (کبد) څخه افرازېږي ، خوندېې تريخ که دهوا پهٔ مجاورت کښې واقع شي - رنګ يې تغييرېږي دا ماده معدې ته د غذا پهٔ رسېدو سره ترشح کېږي او د صفرا په کيسه کښې ټولېږي . او د غذا پهٔ هضم کښې مرسته کوي . که چېرې د صفرا مجرا وتړل شي . نو وينې ته داخلېږي او د يرقان (زېړي) د ناروغي سبب ګرځي .

(۱۳۴ مستسقي : استسقا نيولے . اوبۀ غوښتونکے ، هغه څوک چې د ټنبلو اوبه غواړي .

(۱۳۵ استسقا : اوبۀ غوښتل . د يوې ناروغې نوم ، چې ناروغ بې داوبو په څښو نه مړېږي .

(۱۳۶ ثقالت : درونـد والے ، وزن ، بوج

(۱۳۷ صلب : ملا .

(۱۳۸ دوييدن : شنه کېدل . دوييده : زرغونه ، شنه .

(۱۳۹ اقطاب : د قطب جمع . قطب : سرخېل ، بزرګ . پۀ صوفيانو کښې يوه لوړه مرتبه .

(۱۴۰ ابدال : هر هغه څوک يا څيز چې د بل ځائے نيسي . پۀ سلوک کښې ابدال د خدائے د دوستانو يوه ډله ده . چې د محبت ، کشف ، مشاهدې او حضور خاندان دي . د دوئ پۀ برکت لۀ ملکونو آفتونه لېرې کېږي . لوړه ، وينه ، پته خوله اوګوښه ژوند يې خاصې ښې دي .

(د حاجي جمعه د ديوان لغتنامه)

(۱۴۱ بدر : د څورلسمې سپوږمۍ .

(۱۴۲ ګليم : ټغر ، يو ډول فرش دے . چې لۀ وړيو او پوڅې جوړېږي .

(۱۴۳ اصل : ښو .

(۱۴۴ حصر : احاطه ، چاپېرول .

(۱۴۵ وحوش : د وحش جمع ، بيابانې ځناور ، بهائم : څلور بولي .

(۱۴۶ الامان : دا کلمه د ډار او وېرې د احساس پۀ وخت ويل کېږي . امان ، پناه

(۱۴۷ اصل : ګو

(۱۴۸ قيصر : د روم د پخوانيو شاهانو لقب .

(۱۴۹ نوږه : مړه ، نمږه ، شخوند ، کپ .

(۱۵۰ طرفه : د سترګې رپ .

(۱۵۱ کونين : دنيا او آخرت

(۱۵۲ زبانه : د اور شغلې

(۱۵۳ پۀ دې ځائے کښې د "دے" تر دن لۀ ژبانې سره سم نۀ ايسي ، دا بايد " دي " وي . چې پۀ

دې صورت کښې يې بيا د بيت لهٔ لومړۍ مصرۍ سره قافيوي جوړښت صدمه موي.

(۱۵۴) اصل : جوندون.

(۱۵۵) سجين : پهٔ دوزخ کښې د يو ځاے نوم.

(۱۵۶) دَلْ : مېده (پښتو ژبه)

(۱۵۷) ځاجي : بدنام، بدکردار، بدکار.

(۱۵۸) پايون : دا کلمه پهٔ لغوي لحاظ د پېراپه، زېور معنی لري. (عميد) مګر دلته د پايون کلمه شاعر د "ترپايه" پهٔ معنی راوړې ده. دا کلمه بايد "پايان" وي. چې ښايي شاعر به د ضرورت پر بنا د پايون پهٔ بڼه اړولې وي.

(۱۵۹) ۱۶ پاره، د مريم سورة، ۷۲ آيت. (بيا به پرهېزګاران وژغورو او ظالمان به پر ګونډو باندې پرېوتلي پهٔ دوزخ کښې پرېږدو) (قرآن مجيد، پښتو ترجمه د کشکي، ۲۲۸ مخ)

(۱۶۰) يٰسين : ۲۲مه پاره، ۳۶ سورة، طٰه ۲۰ سورة، ۱۹مه پاره.

(۱۶۱) د بقره سورة ۱۱۹ آيت ته اشاره ده.

(۱۶۲) نعلين : کوښې.

(۱۶۳) سيس : چابک، تېز او چابک آس (عميد)

(۱۶۴) مشتغل : هغه څوک چې يو کار او شغل لري. هغه څوک چې پهٔ يو کار اخته وي.

(۱۶۵) اصل : جوند.

(۱۶۵) موږ امانت آسمانونو، زمکې او غرونو ته وړاندې کړ. خو هغوی يې لهٔ منلو ځان وژغوره. (قرآن مجيد د کشکي ترجمه دريم ټوک) دا لوړ آيت شريف د الاحزاب د سورة (۳۳ سورة) ۷۲ آيت دے. د دې ديوان پهٔ خطي نسخه کښې يې د آيت شريف متن نيمګړے ليکلے دے. د (والجبال) کلمه پکښې نشته.

(۱۶۶) اباء : انکار، امتناع.

(۱۶۷) اصل : بخته

(۱۶۸) خشوع : لهٔ خوارۍ او زارۍ سره طاعت ته تيتول.

١٦٩) بېشه : ځنګل ، نیستان ، لهٔ ونو ډک ځاے .

١٧٠) ګلبن : ګل بوټے ، د ګلو ونه .

١٧١) چرچه : چرچه ، آوازه، شهرت ، عیش وعشرت (ظفر) ✱ اصل = ګلزبان

١٧٢) سمک : ماهے ، کب .

١٧٣) ناقه : اوښه .

١٧٤) سرطان : چونګاښان .

١٧٥) حے : ژوندے - دالله تعالیٰ لهٔ نومونو څخه یو نوم .

١٧٦) قیوم : پاینده ، قایم پهٔ ذات، دالله تعالیٰ لهٔ نومونو څخه یو نوم .

١٧٧) لایزال : نهٔ زوالېدونکے ، جاوېد ، ابدي ، بې زواله .

١٧٨) قهارې : قهارېږې

١٧٩) جبارې : جبارېږې

١٨٠) غفارې : غفارېږې

١٨١) ګنهکارې : ګنهکارېږې .

١٨٢) اسره : امېد ، آرزو (پښتو قاموس)

١٨٣) عزازیل : د شېطان نوم .

١٨٤) لعن : رټل ، نفرین ، سرزنش .

١٨٥) مشت : موټے

١٨٦) قسیم : دښونکے اوصم جمیل اوخوبرویه شخص ته وېلے شي (عمید)

١٨٧) جسیم : خوش اندامه، تنومند .

١٨٨) وسیم : ښائسته ، خوبرو .

١٨٩) کافه : ټول ، جماعت ، ټولے

١٩٠) ابطح : دمکې اومدینې ترمنځ یو ځاے.

١٩١) نور : لمر ، نمر

(۱۹۱) منعدم : نیست ونابود .

(۱۹۳) مېغ : اوريځ .

(۱۹۴) منجلي : روښانه ، څرګند ، جلوه ګر

(۱۹۵) بدرالدجی : د تیارو رڼا - د اسلام د نازولي پیغمبر صفتي لقب .

(۱۹۶) نورالهدی : د سمې لارې رڼا ، د پیغمبر (ص) صفتي لقب .

(۱۹۷) تتق : څادر ، خېمه ، خرګاه ✽ هسې = هسې یې

(۱۹۸) نقوط : دلته د نقطې د جمع یا نقطو په معنی راغلې ښکاري . خو په فرهنګونوکښې د نقطه جمع د نقاط لفظ ښوول شوے دے .

(۱۹۹) غرا : متواتر آواز (پښتو - اردو لغت)

(۲۰۰) نوبت : د ډول او نغارې وهلو وخت (عمید) نغاره (ظفر)

(۲۰۱) قاف : د یوه نامعلوم غره نوم . کوه قاف ته هم وېل شوي دي .

(۲۰۲) اِبار : د اباريوه معنی یې په المنجد کښې برغوث کښلې ده . او برغوث یې په بحر معنی کړے دے . خو په (عمید) کښې یې برغوث یو ډول ماهي ښوولے دے .

(۲۰۳) درنده : ځیروونکي ځناور .

(۲۰۴) خزنده : د حیوان یو صنف له نظره هغه ځناور چې د ځمکې پر مخ خښېږي . ښوېږي . لکه : مار ، ځرمبکه ، سمساره او نور .

(۲۰۵) سُکان : د ساکن جمع ، اوسېدونکي .

(۲۰۶) بیوت : د بیت جمع ، کورونه .

(۲۰۷) کبک دري : یو ډول غرنۍ زرکه .

(۲۰۸) تحیات : د تحیه جمع ده . او تحیه دا یې ، سلام ، درود ، سلام اچول ، درود وېل .

(۲۰۹) انام : مخلوقات ، خلک ، خیرالانام : بهترین د مخلوقاتو .

(۲۱۰) خیرالوری : بهترین مخلوق - د حضرت پیغمبر لقب (فیروز اللغات)

(۲۱۱) اباليس : د ابلیس جمع او ابلیس د خدای له رحمه نا امیده شوے .

(۲۱۲) قلا: قلعه، کسری د خسرو معرب شکل دے او دا نوشیروان لقب.

(۲۱۳) بروج: د برج جمع، برج ته په پښتوکښې تاپو هم وایي او د کلاګانو په څلورو کونجو نو او یا بېلا بېلو برخوکښې یې جوړ دي.

(۲۱۴) عروج: په لوړه تلل، ترقي، لوړ والے (ظفر)

(۲۱۵) اصل: اودونو

(۲۱۶) کوثر: ډېر باعظمت (فرهنګ لغات قرآن) او هم په جنت کښې د یو نهر نوم (عمید)

(۲۱۷) توده: ډېرګه، عام خلک

(۲۱۸) اصل: واغستو

(۲۱۹) انفعال: د یو کاد کېدل - د یو څیز اثر منل، شرمنده، خوږ کېدل، پیکه کېدل -

(۲۲۰) مزین: آراسته، زینت ورکړے شوے.

(۲۲۱) ثوابت: هغه ستوري چې ساکن دي او انتقالي حرکت نهٔ لري او لهٔ ځانه رڼایې لري.

(۲۲۲) سیاره: هغه ستوري چې د لمر په شا وخوا کښې ګرځي او خپله رڼایي لهٔ لمره اخلي - په دغو ستوروکښې: زهره، عطارد، زمکه، مریخ، مشتري، زحل، او رانوس او نپتون شامل دي.

(۲۲۳) اسعد: ډېر نېک بخت.

(۲۲۴) کروفر: د لغت په کتبوکښې یې تروفر ته لهٔ دښمن نه د مخ اړولو معنی کښلې ده. خو دلته په مسره کښې دا معنی ځنې نه مراد ېږي. دلته کروفر د شان و شوکت او دبدبې مفهوم ښندي، البته د "فر" معنی شکوه، شوکت، دونق او رفعت ده.

(۲۲۵) مکلل: تاج پر سر ایښودل شوے، زینت ورکړل شوے.

(۲۲۶) نه: ۹

(۲۲۷) اراضینو: دلته د شاعر مقصد د زمکې طبقې دي - د اراضي کلمه خپله جمع ده.

(۲۲۸) اصل: تفشه، تپش: بې ارامه کېدل، بې قراري کول، لرزش.

(۲۲۹) پېر: دور، ګردش، چکر.

(۲۳۰) تشویر: اضطراب ، آشوب .

(۲۳۱) غنوده: خوبېدلے ، آرام، خوابیده ، آرمیده .

(۲۳۲) اصل: سانګ ، څانګ: وزر

(۲۳۳) اصل: سانګه

(۲۳۴) معلی: لوړ مرتبه ، لوړ شوے

(۲۳۵) غاشیه: د آس د زین پوښ

(۲۳۶) ستام: سر افسار ، زین او د آس پراق

(۲۳۷) سپران: سېر او ګردش .

(۲۳۸) پېک: قاصد

(۲۳۹) رشک: حسد

(۲۴۰) ازاله: زایلول ، لیرې کول ، برطرفول .

(۲۴۱) عسس: کوتوال ، پاسبان ، ګزمه

(۲۴۲) لقا: دیدار ، پهٔ پارسي‌کښې څېرې ته هم وېلے شي .

(۲۴۳) (۲۴۵) اصل: کېښه

(۲۴۴) ساق: تنه

(۲۴۶) اصل: رغاښته

(۲۴۷) بې: به یې

(۲۴۸) خپه: پښه

(۲۴۹) فرس: اسپ

(۲۵۰) بې: به یې

(۲۵۰) اصل: مبکی

(۲۵۱) نحوست: بدبختي ، بدنصیبي ، نامبادکي .

(۲۵۲) فرموش: دا کلمه باید فراموش وي ، دهېر پهٔ معنی ، خوشاعر د شعري ضرورت پر بنا د

فرموش په شکل کښلي ده.

(۲۵۳) سدره: ونه، شجرة النبق، سدرة المنتهٰی، د عرش ښي لوري ته یوه ونه ده.

(۲۵۴) فروغ: رڼا، ځلا

(۲۵۵) بي: به يې

(۲۵۶) الطاف: دلطف جمع، مهرباني، نوازش

(۲۵۷) رفرف: نازکې او ښکلې جامې او فرشونه.

(۲۵۸) لوا: بيرغ

(۲۵۹) عينين: سترګې

(۲۶۰) محمدة: نېک خصلت، هغه څه چې سړے پرې ستايل کېږي. هغه څه چې د يو شخص د ستايلو سبب شي.

(۲۶۱) آمودن: جوړ شوے، سينګار شوے

(۲۶۲) ملول: غمګين، رنجيده.

(۲۶۳) ديهيم: تاج، د پاچهۍ خوله او درة التاج: د تاج دُر، مرغلرې.

(۲۶۴) حبل المتين: ټينګه رسۍ.

(۲۶۵) سبقت: وړاندې کېدنه (پښتو ژبه)

(۲۶۶) چبوتره: دونکاچه، څوتره، چوتره، د خټو، لوټو د ګټو، خښتو یا په چونه او سمټو پوخ، ځلوړګوټه مستطيل ځاے (اردو - پښتو لغت)

(۲۶۷) اصد: پدې

(۲۶۸) کښې: کې، چې د کړې د مخفف په ډول د څينو لهجو په محاوره کښې د استعمال موارد لري.

(۲۶۹) مستجاب: قبول شوے، اجابت شوے.

(۲۷۰) قلزم: بحيرهٔ احمر.

(۲۷۱) بخرد: باخرد، د عقل خاوند.

(۲۷۲) فره: شوکت، جلال، شکوه

(۲۷۳) ترقیدن : چول ، ترقیده : چاودلے ۔

(۲۷۴) صفدر : زړه ور ، جنګاور ، شجاع ۔

(۲۷۵) اصل : څخ ۔

(۲۷۶) بې : به یې ۔

(۲۷۷) اصل : مېخ

(۲۷۸) قوس قزح : کمان رستم ، رنګین کمان ، شنه زرغونه ، سور شین

(۲۷۹) چوګان : اس ځغلوونکه ، کږ سانګه (ظفر)

(۲۸۰) معدلت : عدل ، نیاو

(۲۸۱) اصل : ولېکل

(۲۸۲) ظلام : تیارې ، تېرې

(۲۸۳) پېې : پرې

(۲۸۴) دهش : بخشش ، عطا ، کرم ، امادلته جواب دهش دجواب دهې اوجواب ورکولو په معنی راغلے دے ۔

(۲۸۵) اِکسیر : هغه څه چې دا دنا بېیې (ارزانه) عنصر بنه او خاصیت ګران عنصر په بنه اړوي . لکه مس سره زرکوي ۔ اوقلعي په سپینو زرو اړوي ۔ او هغه دوا چې ښه تاثیر وکړي ۔ هم اکسیر بلل کېږي ۔ (د حاجي جمعه د دېوان لغتنامه )

(۲۸۶) خبراء : دخبیر جمع ، خبیر ، آګاه ، دانا ، هغه شخص چې په یوکارکښې ډېر ماهر وي.

(۲۸۷) څخو : لږ څه (زړه پانګه )

(۲۸۸) ذوالنورین : د " ذو " معنی ده لرونکی (فرهنګ لغات قرآن ) او ذوالنورین یعنې د دوه نورونو خاوند ، دحضرت عثمان (رض) لقب ۔ اوحضرت عثمان (رض) ته یې ځکه ذوالنورین وایه چې د حضرت پیغمبر (ص) دوې لونه پرې وادهٔ شوې وې ۔ چې یوه یې یې وفات شوه نو بیا بله ورته وادهٔ شوه ۔ (پښتو ژبه)

(۲۸۹) آشام : څښل ، د اوبو او نورو مایعو څښونو څښل ، خون آشام ، وینې څښونکی .

(۲۹۰) همال : برابر ، مانند و مثل.

(۲۹۱) بې : به یې .

(۲۹۲) اصل : نخ .

(۲۹۳) چمکاره : ځلا ، تېزه رڼا ، رڼا یې ، برېښنا ( اردو - پښتو لغت )

(۲۹۴) تراره : اضطراب ، ناقراري (پښتو قاموس)

(۲۹۵) بې : به یې

(۲۹۶) بې : به یې

(۲۹۷) مړل : مړه کېدل .

(۲۹۸) کیهان : جهان ، د دنیا روزګار ، فضا ، هوا .

(۲۹۹) اصل : خاک پاے ، چې له بلې مسرۍ سره په قافیه کښې نقصان پېښوي ، نو ځکه (ے)
حذف شوه .

(۳۰۰) ذی : د خاوند ، صاحب او " جود " د کرم معنی لري او ذیجود د کرم او بخشش خاوند .

(۳۰۱) کرار : په جګړه کښې سخت حمله کوونکی ، ډېر حمله کوونکی (عمید) د حضرت علي (ک) لقب

(۳۰۲) یم : سمندر (ظفر)

(۳۰۳) دلدل : هغه توربخن سپین آس چې د سکندریې حاکم حضرت محمد (ص) ته لېږلے و او
هغوئ حضرت علي (ک) ، ته بخښلے و (پښتو ژبه)

(۳۰۴) سرین : د سین په پېښ د ورنونو ، کفل په معنی او د سین په زور د سرخوا ته د لاندې
خوا مقابل .

(۳۰۵) فرس : آس

(۳۰۶) تاخت : حمله او هجوم

(۳۰۷) اصطبل : طویله ، غوجل

(۳۰۸) منهزم : تښتېدلے ، شکست خوړلے ، ماتې خوړلے لښکر .

(۳۰۹) اصل : شو ، خو په مقابل کښې د همدې بیت د دوهمه مسرۍ کښې " غارشهٔ " راغلے دے .

(۳۱۰) اصل : احد

(۳۱۱) اصل : تفش

(۳۱۲) شومل : چنبد ، وشومی : وچنې (پښتو قاموس)

(۳۱۳) اصل : کوځ

(۳۱۴) روافض : د رافضه جمع : د اهل تشیع هغه ډله چې له زید بن علي بن حسین نه یې بیعت وکړ او بیا یې بیعت مات کړ.

(۳۱۵) ناقض : ماتوونکی ، د عهد او پیمان ماتوونکی .

(۳۱۶) بېشي : زیادتي ، زیاتوالی .

(۳۱۷) شفق : د غروب په وخت کښې د لمر سرخي . اما په بیت کښې راغلی شفق د غه معنی نه ښندي . بلکه د سباد راختو مفهوم ترې افاده کېږي .

(۳۱۸) ستار : پټوونکی ، پرده اچوونکی .

(۳۱۹) مستتر : پوښلی شوی ، پټ شوی .

(۳۲۰) قلقله : له صراحي نه د شراب اچولو آواز (ظض)

(۳۲۱) بې : به یې

(۳۲۲) اصل : سکه

(۳۲۳) کنجکه : خرمهره (ظض) یوه ناځېزه معمولي شی (پښتو - اردولغت)

(۳۲۴) اوتاد : په عربي کښې مېخ او موږي ته وتد وايي او جمع یې اوتاد راځي ، خو د سلوک په اصطلاحاتو کښې اوتاد د خدای د دوستانو یوه ډله ده چې تعداد یې له څلورو څخه نه زیاتېږي . ځینې کسان اوتاد تر ابدال لوړ بولي او ځینې یې ورسره ګډ وي .
(د جمعه بارکزی د دیوان لغتنامه)

(۳۲۵) قطب : سرخیل او مهتر او بزرګ ، د صوفیاء کرامو په ډله کښې قطب یوه مرتبه ده . غوث چې لوړ شي د فرد رتبې ته رسېږي او فرد چې وړاندې ولاړ شي نو د قطب وحدت مرحلې ته رسي .

(۳۲۶) اصل : یستې .

(۳۲۷) ذوالجلالو : ذوالجلال د

(۳۲۸) ودود : ډېر مهربان

(۳۲۹) چو : دچون مخفف ، لکه

(۳۳۰) سجاده : جاے نماز ، مصله ، هغه شخص چي دچا بزرګ پرمسند ناست وي ، ګدی نشین ( پښتو ژبه )

(۳۳۱) فرخنده : مبارک ، سعادتمند .

(۳۳۲) دعوات : د دعوت جمع ، دعوت : دعا ، خواهش ، مجیب الدعوات ، د دعاګانو قبلووني .

(۳۳۳) پوزش : عذرغوښتل ، دعفوي اوګذشت درخواست .

(۳۳۴) ګرېختن : فرارکول ، تښتېدل ، ګرېخته : تښتېدلے .

(۳۳۵) رېخته : ذوب شوے فلزاوبهٔ یا بل څیز چي پر زمکه تل (توے) کړي .

(۳۳۶) توري : د توروي مخفف .

(۳۳۷) حسبي الله : خداے پهٔ یولو چاروکښي ماته کفایت کوونکے دے (تفسیرکلمات قرآن)

(۳۳۸) لاتُقْنِطُو : نا امېده کېږئ مهٔ - دلته اشاره دغه آیت شریف ته ده : لَاتُقْنِطُو مِنْ رَحْمَةِ الله : دخداے لهٔ رحمة مهٔ نا امېده کېږئ (فرهنګ لغات قرآن)

(۳۳۹) وَاشْکُرُو : شکروباسئ

(۳۴۰) خوانچه : ورکوټے پتنوس (ظفر)

(۳۴۱) لامع : ځلېدونکے ، روښانه (ظفر)

(۳۴۲) تقدیس : پاکول ، منزه کول ، په پاکه ستاینه کول .

(۳۴۳) اصل : آیات

(۳۴۴) او (هغه کسان) چي (خپل) قهر زغمي او خلک بخښي او خداے نېکي کوونکي خوښوي . (دقرآن مجید پښتو ترجمه ، د صباح الدین کشککي ، ۷۰ مخ) د آل عمران سورة (۳) ، ۱۳۴ آیت .

(۳۴۵) رېش : زخمي ، خوږ (پښتو ژبه)

(۳۴۶) رسته : آزاد ، خلاص

(۳۴۷) طالبې : طالب یې

(۳۴۸) اصل : څهره

(۳۴۹) شکرخوار : شېرین گفتار ، شېرین سخن

(۳۵۰) تجمل : ځان جوړول، زینت ورکول ، زینت پیداکول (عمید) بنګلا ، جمال ، بنایست ، شان وشوکت زیب و زینت (اردوپښتو لغت)

(۳۵۱) مذمه : بد ، سپېر مذمه ، بداخلاق ،عادتونه او خصلتونه .

(۳۵۲) مواساة : مرسته کول ، کمک رسول اویامال ورکول (عمید) په ځینو متونوکښې مواس د ساتونکي په معنی هم راغلی دے.

(۳۵۳) بې : به یې

(۳۵۴) خُلق حسنه : دښو اخلاقو او ښو عاداتو بیان

(۳۵۵) شمیم : ښه او خوږ بوے

(۳۵۶) اصل : څهره

(۳۵۷) خوے : خوله ، هغه خوله چې له بدنه راوځي (عمید)

(۳۵۸) امل : امېد ، آرزو

(۳۵۹) مُقَرَشْ : هرغوړېدونکے ، فرشېدونکے څیز (عمید)

(۳۶۰) اصل : دوره

(۳۶۱) تې : ته یې

(۳۶۲) شقایق : دلاله گل ، دغاټول گل .

(۳۶۳) رمیم : زوړ ، پوسېده

(۳۶۴) رهزن : لار وهونکے

(۳۶۵) ناگها : ناگهان ، ناڅاپه .

(٣٦٦) خپو : پښو

(٣٦٧) ډکا : ډکه

(٣٦٨) صائم : روژه تي ، روژه نيوونکی .

(٣٦٩) بهائم : څلور بولي

(٣٧٠) نغاړل : پېچل ، تړلول او مجازاً د پرهېز او اجتناب کولو معنی لري (پښتو قاموس)

(٣٧١) بدرمنير : ځلېد ونکی او روښانه سپوږمۍ .

(٣٧٢) فاخر : د نازدړ ، قيمتي .

(٣٧٣) متکا : تکيه ګاه ، د تکيې ځای

(٣٧٤) صوف : د پسونو وړی (عبيد)

(٣٧٥) اصل : پوڅی

(٣٧٦) بالين : بالښت ، سروړی دی . هغه څه چې د خوب په وخت کښې پرې تکيه کېږي .

(٣٧٧) حُب : دوستي ، عشق

(٣٧٨) دلق : پوستين ، د درويشانو جامه

(٣٧٩) اصد : کشينګدي.

(٣٨٠) بلياتو : بلاوو ، غمونو ، دردونو ، رنځونو

(٣٨١) صبار : صبر کوونکی .

(٣٨٢) شقاوت : بد بختي

(٣٨٣) خور : خوراک

(٣٨٤) بې : به يې

(٣٨٥) کو : کړ

(٣٨٦) توکړه : ټوټه ، پارچه

(٣٨٧) غراب : کارغه ، کوراغ

(٣٨٨) کريه : زشت ، ناپسند

☆ جوع : لوږه

۳۸۹) مجوع : د شپې وږدېدل ، اوږدېدل .

۳۹۰) مضطر : بېچاره ، ناچار ، ګرفتار ، لاس تنګ

۳۹۱) اصل : کښې ، خوکه دلته کښې پرېښودل شي . شعر معنی نه ورکوي . دا باید "کې" ، وي چې دکړې مخفف راشي . په ځینو لهجو کې او په عامه محاوره کښې استعمالېږي .

۳۹۲) خجسته پے : نېک قدمه ، خوش قدمه .

۳۹۳) کے : کله

۳۹۴) مور : مېږے .

۳۹۵) فېروزي : پېروزي ، کامیابي

۳۹۶) فطیر : پتیره

۳۹۷) طاق : قوسي شکله سقف

۳۹۸) احتراز : پرهېز کول ، لېرې کېدل .

☆ ولږ : لوږه

۳۹۹) خوندې : خوندیې

۴۰۰) کسلان : کسل ، سست ، ناتوان ، بېحاله

۴۰۱) خذلان : درماندګي ، له مرستې او معاونته بې برخې کېدل ( عمید )

۴۰۲) پور : پړ ، ډکه

۴۰۳) نیسان : پسرلے

۴۰۴) دُریتیم : غټه مرغلره ، چې یوازې په صدف کښې وي .

۴۰۵) استغفار : د مغفرت غوښتل ، د بخښنې غوښتل .

۴۰۶) استکبار : خودنمایي - تکبر کول .

۴۰۷) ابله : نادان ، بې عقل ، ساده لوح

۴۰۸) قدري : قدریې

(۳۰۹) مسلخ : دڅارویو (پسه، وز، غوایي، میښي او اوښ) د حلالو او له پوستهکولو ځای.

(۳۱۰) نزار : خوار، ضعیف، ناتوان.

(۳۱۱) ایمن : اسوده حال، خاطرجمع، په امان کښې.

(۳۱۲) ذوالمنن : له مبارکو الهی نومونو څخه یو نوم (ومعنیٰ یې ده، دمنتهٰی خاوند او د احسانونو خاوند.

(۳۱۳) لیت : شونډې، چراغ چرب

(۳۱۴) اصل : شوم.

(۳۱۵) رحیل : لېږد، کوچ (ظفر)

(۳۱۶) سبیل : لاره، طریقه، ذریعه (ظفر)

(۳۱۷) سبکساري : تیټوالی، خواري، بې وقاري (ظفر)

(۳۱۸) اصل : سرخېږي.

(۳۱۹) ته : تر

(۳۲۰) اصل : مردو.

(۳۲۱) اصل : ځکل.

* تپیده : تودکړے شوے، تاو ورکړ شوے (اردو - پښتو لغت)

(۳۲۲) دوال : چرمي تسمه، چې ډول (دهل) پرې وهل کېږي (عمید)

(۳۲۳) مونس : دوست، یار، ملګرے (ظفر)

(۳۲۴) ګزافه : زیاته، ډېر، بېحده، بېهوده

(۳۲۵) خاسر : زیانمن، زیانکار.

(۳۲۶) اصل : جرا.

(۳۲۷) خپو : پښو.

(۳۲۸) ګایل : زخمي، مجروح، ټپي

(۳۲۹) شاهد : معشوق، محبوب (ظفر)

(۳۰) دادگري : دادگروي ، خبري ، خبروي .

(۳۱) ذميم : رټل شوی ، ناپسند ، بد

(۳۲) اصل : سرشت ، خوی ، فطرت ، طينت ، خلقت

(۳۳) اصل : زشت : بد .

(۳۴) آگين : ډک ، ډکه په ډکه (ظفر)

(۳۵) اصل : خويه .

(۳۶) غل وغش : کينه ، بغض ، خيرې ، (اردو ـ پښتو لغت)

(۳۷) شنگ : ظريف ، ښکلا ، ښايسته ، شوخ

(۳۸) مُدبر : بد نصيب ، بد بخت (ظفر)

(۳۹) خپو : پښو .

(۴۰) لتاړ : پايمال (پښتو ـ اردو لغت)

(۴۱) ادبار : بد بختي ، سپېرې ورځې ، غربت ، داقبال ضد (ظفر)

(۴۲) دشمردن پر ځای باید « شمرد » وي .

(۴۳) خېشته : ښايسته

(۴۴) نفير : زاري ، ناله ، فرياد

(۴۵) التهاب : بلېدل ، شعلې ترې اوچتېدل (ظفر)

(۴۶) فرح : خوشحالي ، ښادي ، خوښي

(۴۷) خشم : قهر ، غضب .

(۴۸) پاسباني : ساتنه ، نگهباني ، محافظت .

(۴۹) لجاج : جنگړه ، پر خپله هره خبره ټينگ ، ضدي .

(۵۰) خپماني : پښېماني .

(۵۱) خپې : پښې .

(۵۲) ېږ : به يې .

(۳۵۳) اصل : کېږده

(۳۵۴) اصل : رعایت ، چې د لحاظ کول معنی لري او رعیت ، د حکم لاندې خلک (پښتو ژبه) مفهوم ښندي.

(۳۵۵) اصل : مونده

(۳۵۶) بې : به یې

(۳۵۷) اصل : غمژن

(۳۵۸) ښکالو : د ښو آواز ، په پارسي کښې ورته " سرگوشي " او " شرفه " هم وایي (پښتو قاموس)

(۳۵۹) افزون : زیات ، ډېر ، افزونتري ، ډېروالے

(۳۶۰) کسوت : جامه ، لباس (عمید)

(۳۶۱) جام جمشېد : د ایراني داستانونو مطابق ، جمشېد چې کوم جام درلود ، په دې جام کښې د دنیا نقشه وه . او ټوله دنیا بې په دې جام کښې لیدله. جام جم او جام جهان نما هم ورته وایي. جمشېد د طهمورث زوے د پېشدادیانو د کورنۍ څلورم باچا.

(۳۶۲) دخت : لور

(۳۶۳) سیاوش : د کېکاوس زوے او د کېخسرو پلار.

(۳۶۴) کېکاوس : د کیاني سلسلې دوم باچا د کېقباد پلار.

(۳۶۵) کېخسرو : د کیاني د سلسلې دریم باچا د سیاوش زوے .

(۳۶۶) آهنګ : عزم ، اراده ، قصد ، د ګنبد کوږوالے ، ژۍ ، څنډه ، دود ، طرز ، روش ، لیکه قطار (ظفر)

(۳۶۷) اصل : آخر سړے د کار .

(۳۶۸) اصل : پښېمان .

(۳۶۹) بې : به یې .

(۳۷۰) حلول : حل شوے ، هر صفت څیز چې په مایع کښې حل شي.

(۳۷۱) مهوش : د سپوږمۍ غوندې ، شکلې ، ښایسته .

(۳۷۲) کاهش: کمول، لږول، کاهد: لږ کړي.

(۳۷۳) اصل: زړيږه، چې ما يې معنی نه کړه پيدا

(۳۷۴) اصل: به

(۳۷۵) بواعث: د باعث جمع

(۳۷۶) جبروت: لغوي معنی يې لويي، دبدبه او جلال دے، په فلسفي اصطلاح د عقولو عالم چې له مادې او صورت څخه مجرد وي. جبروت دے، ځينې حکيمان جبروت ته عالم اوسط وايي چې د جبروت عالم د ملکوت او لاهوت ترمنځه واقع دے. (د حاجي جمعه د ديوان لغتنامه)

(۳۷۷) لاهوت: تر جبروت لوړ عالم دے ځينې صوفيان تر لاهوت لوړ يو بل عالم هم ښيي چې هغه هاهوت دے. خو هغه صوفيان چې عالمونه په څلورو برخو وېشي، د هغو په وېش کښې تر ټولو لوړ مقام لاهوت دے. ددې عالم ذکر "هو" دے. چې د لاهوتي ذکر په نامه هم يادېږي (د جمعه د ديوان لغتنامه)

(۳۷۸) ملکوت: د صوفيانو له نظره ملکوت د ناسوت او جبروت ترمنځ واقع دے، عالم ارواح، عالم غيب او عالم معنی يې هم بولي.

(۳۷۹) ناسوت: د ناسوت لغوي معنی اضطراب دے اود اجسامو عالم ځکه ناسوت بولي چې په دې عالم کښې ډېر داسې څه شته چې د سالک اطمينان په اضطراب اړوي. ناسوت د اغراضو او اجسامو عالم دے (د حاجي جمعه د ديوان مقدمه)

(۳۸۰) ميفزايد: زياتوي.

(۳۸۱) کلی: شګوفه (ظفر)

(۳۸۲) اصل: څکلو.

(۳۸۳) ګزينش: انتخاب، غوره کول، ګزينه: غوره، انتخاب ☆ اصل: خفيه

(۳۸۴) دريدن: څيرل، پرده در: پرده څيرونکے.

(۳۸۵) خپماني: پښېماني.

(۴۸۶) آز: حرص ، لالچ ، سرابتوب (ظفر)

(۴۸۷) جهانو: جهان و

(۴۸۸) برده بار: د حوصلې خاوند ، د برداشت خاوند.

(۴۸۹) نبیذ: شراب ، د خرما شراب ، د انګور شراب.

(۴۹۰) خلف: جانشین ، زوزات ، اولاد (ظفر)

(۴۹۱) حریر: وربېسم ، وربېسمين ټوکر.

(۴۹۲) ترې: قند ، چيني (ظفر)

(۴۹۳) اصل: نښه.

(۴۹۴) اصل: عيبژن.

(۴۹۵) فروغ: روښنايي ، ځلا.

(۴۹۶) صواب: دښتيا ، سم ، حق ، لايق

(۴۹۷) پوے: پوه

(۴۹۸) ثواب: مزد ، پاداش ، د ښه کار پاداش ، اجر

(۴۹۹) اخيشتونګ: اخيستونګ.

(۵۰۰) نقد: سره کول ، له ښو نه د بدو پېسو جلا کول. اوهم هغه بها اوځه چي سملاسی ورکول کېږي ، د نسيه ضد.

(۵۰۱) اصل: سانګ اوهم دې کلمې ته يې په حاشيه کښې ليکلي دي. سانړه.

(۵۰۲) اصل: سانړه.

(۵۰۳) حذر: پرهېزکول ، ځادپدل ، پرېېدل ، بيم ، پرهېز.

(۵۰۴) زنهار: امان ، پناه ، عهد ، پيمان ، د تاکيد په مقام کښې هم وېل کېږي.

(۵۰۵) اصل: څوځي.

(۵۰۶) اصل: خزه.

(۵۰۷) شوے : شوهر، خاوند ، مېړه ـ

(۵۰۸) بې : به یې ـ

(۵۰۹) ورع : پرهېزګاري (ظفر)

(۵۱۰) نکهت : وږمه ، خوشبويي (اردو ـ پښتو لغت)

(۵۱۱) بې : به یې ـ

(۵۱۲) اصل : شوو

(۵۱۳) مومنې : مومن یې ـ

(۵۱۴) اېمنې : اېمن یې ـ

(۵۱۵) آزرده : دلګیر ، غمګین ، خفه (ظفر)

(۵۱۶) مېزبان : مهماندار ، مېلمه پالونکی ـ

(۵۱۷) لئيم : بخیل ، ناکس ، ټيټ ، فرومایه

(۵۱۸) زه : د تحسین کلمه ده ، د آفرین او شاباس په معنی ـ

(۵۱۹) ګرامي : عزیز ، محترم ، ارجمند

(۵۲۰) عور : بربنډ ، لڅ

(۵۲۱) ممسک : بخیل ، کنجوس

(۵۲۲) عناء : سختی ، رنځ

(۵۲۳) اصل : زه

(۵۲۴) مقبل : خوشبخت ، د اقبال خاوند

(۵۲۵) سموم : تودباد ، زهر آګین باد

(۵۲۶) ولړې : لوړې

(۵۲۷) مائده : خوراکي څیزونه ، طعام له خوراکي شیانو ډک دسترخوان ـ

(۵۲۸) په تحقیق ستاسو مالونه ـ

(۵۲۹) جولان : هرې خواته د آس ځغلول ، په مېدان کښې حمله کول ـ

۵۳۰) کشمکش : جروبحث ، نزاع ، زدوخورد

۵۳۱) عطسه : پرنجې

۵۳۲) باهر : ښکاره ، اوڅار (ظفر)

۵۳۳) خمیازه : هغه حالت چې له کسالت او ستومانځه نه په انسان کښې پیداکیږي او پې اختیاره خوله خلاصیږي - په پارسي کښې ورته فاژه وایي.

۵۳۴) وثاق : بند ، قید

۵۳۵) مقهور : د قهر او غضب د لاکرځېدلے ، ماتې خوړلے ، مغلوب .

۵۳۶) سنړاسي : په پښتو ژبه ۱۰/۳۸۰ کښې یې کښلي دي چې دغې لفظ اصل سنیاسي دے ، په پښتو کښې سنړاسي شوے دے. او سنړاسي د هندو فقیرانو هغه ډله ده ، چې له دنیا نه ګوښه شوې وي.

۵۳۷) جست : ټوپ ، غورځ .

۵۳۸) کران : غاړه ، اړخ ، ډډه ، کناره ، آخر ، انتها ، حد ( اردو - پښتولغت )
خو دلته شاعر د برکنار په مفهوم راوړے دے .

۵۳۹) کام : چار ، مزدوری ، مطلب ، غرض ، مقصد ، کاروبار ( اردو - پښتولغت )

۵۴۰) سورهٔ قصص ۷۶ آیت ، بنی اسرائیلو قارون ته ووېل : د هغه ډېر مال په خاطر نه نادانۍ مه کوه - (تفسیر کلمات قرآن ۱۵۰ مخ)

۵۴۱) مآب : بازګشت ، د بازګشت ځاے .

۵۴۲) فسق : بد اخلاقي ، بدنامي ، د خداے له احکامو خلاف کار کول (ظفر)

۵۴۳) اصل : واهه

۵۴۴) کې : کړې

۵۴۵) طهارت : پاکي ، پاکیزه‌ګي ، اودس

۵۴۶) مؤدب : باادب ، بااخلاق ، مهذب

۵۴۷) جلت : جلد ، په تلوار ، په بیړه .

۵۴۸) اصل : ګومنځ .

(۵۴۹) اصل: گیره.

(۵۵۰) روفتن: جاروکول، خاورې خزلې په جارو سره ټولول.

(۵۵۱) عنکبوت: جولا، غڼه (اردو - پښتولغت) عنکبوت کښې - کې - کړې

(۵۵۲) اصل: مه واهه.

(۵۵۳) پښې. ☆ کښې. کې: کړې

(۵۵۴) تجرید: لوڅول، یوازې کول، تنهایي، یوازېوالے، کناره گیري.

(۵۵۵) تفرید: کناره کېدل، گوښه کېدل، له خلکو لرې والے غوره کول.

(۵۵۶) انقطاع: پرېکېدل، غوڅېدل.

(۵۵۷) شبهت: شبهه، شک، گمان.

(۵۵۸) عجب: خودبیني، ځان غوښول، کبر

(۵۵۹) رند: آزاد، بې قېده، آزاد روشه، شرابي، بدمست (پښتو ژبه)

(۵۶۰) کلاش: قلاش: بېکاره، مفلس، ولگرد

(۵۶۱) طالح: تباهکار، بدکار، بدکرداره سړے.

(۵۶۲) بطالت: بېکاري، معطلي، تنگي.

(۵۶۳) خایف: وېرېدونکے، بیم لرونکے.

(۵۶۴) ربا: سوایي، سود (ظفر)

(۵۶۵) اصل: جړا

(۵۶۶) بې: به یې

(۵۶۷) پرخوري: په پارسه کښې پرخوار، نس پرست، ډېرخوړونکي ته وایي.

(۵۶۸) مدار: خاطر، تحمل، برداشت، احتراز (ظفر)

(۵۶۹) عقارب: د عقرب جمع، لړمان

(۵۷۰) معصیت: گناه، نافرماني.

(۵۷۱) نهادن: ایښوول،

(۵۷۲) اصل : زه

(۵۷۳) فقر : په لغوي لحاظ تنګدستي ، ناداري ، نيازمندي ته فقر وايي . خو د تصوف په اصطلاح فقر يوه نيازمندي ( احتياج ) ده ، چې طالب يې په ښو اخلاقو کښې د کامليدلو لپاره په لټه کښې دي . دغه طالب ته فقير وايي ( فرهنګ لغات قرآن )

(۵۷۴) تهي : خالي ، تش ، د ډک ضد .

(۵۷۵) نزاري : ضعيفي ، ناتواني

(۵۷۶) فربه : چاغ ، د خوارضد ، فربهي ، چاغي .

(۵۷۷) (۵۷۹) اصل : مزه .

(۵۷۸) سوا : لري ، جدا ، بغير .

(۵۸۰) مرکب : د سوريدو څڅ

(۵۸۱) تاز : حمله ، حُغل .

(۵۸۲) سعير : بل اور ، د اور شعلې

(۵۸۳) رستاخيز : د حشر و قيامت ورځ

(۵۸۴) ګردن تاب : غاړه غړوونکی .

(۵۸۵) شجر : ونه

(۵۸۶) طوبي : په جنت کښې د يوې ونې نوم .

(۵۸۷) بيضه : هګۍ ، ها

(۵۸۸) دايې : د ماشوم د زيږيدو په وخت مدد ورکوونکې پوهه او تجربه کاره زنانه (پښتو ژبه)

(۵۸۹) (۵۸۱) اصل : کښ ، کې : کړي .

(۵۹۰) مطوق : طوق لرونکی ، غاړه کۍ لرونکی .

(۵۹۱) کې : کړي .

---

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

# دفتر دوم شمس الفلک

[۱۵۵] چې يې طاس[1] کړ د فلک گوهر آمود     له نابود يې کړ پديد لوبنه د بود
هم مومن له کمين[2] گاه د ضلالته     ده بهرون کړ د دانش له هدايته
ور ښکاره چې د وحدت له باغه گل شو     تر ابد يې ثنا خوان خاکي بلبل شو
په قدرت يې د غبرا بساط کړو فرش     چې له بزم يې روشن شو روښان عرش
کائنات يې له يوه جوهر پديد کړه     په مژده ددې جوهر يې آفريد کړه
د قدرت په تماشا نېې هر بصير     شکرانه ايښې دې سترگي د نظير
په يوه کښې دروند هزار گلشنه     نمايش کا د وحدت له پاک چمنه
[۱۵۶] که گلبن دے که يې گل که يې بلبل دے     سېراب شوے د هدیٰ[3] په مېومل دے
د شجر غصن په دم کښې هزار رنگه     د بلبل ته گلدسته بخښي خوش رنگه
هر ورقي[4] ده د صنع ښنه تحته     په دفتر يې جهان لولي آموخته
په پرکار کښې يې د کن جهان دېره کړ     هم يې مست د باده کشو په پېره کړ
پرې پېرزو يې صراحي د امانت کړه     ور په لاس يې ښه باده د هدايت کړه
څوک په مسته باده مست لاړه و يارته     څوک په سکر جيفه[5] خوار درومي و نارته
چې چوگان يې د همت زمونږ په لاس کړ     پرې موگوے د امانت وته لاس پاس کړ
چې په قهر يې د چا خونه سپېره شوه     ځي حيران ترې د مېدان لو به خوره شوه
خاصه مستو يې له رحم له امېده     د مېدان سروري واخېسته[6] جاوېده
چې په لاس يې د وحدت علم رايت کړ     هغه فرد يې په تفريط[7] غرق رحمت کړ

چې يې پورته په خاطر د شرک دود شو | يو پشه په انتقام بس د نمرود شو
خپل خليل يې د خصلت په خلق جميل | په سور اورکښې په بهشت ورووست جليل
دهٔ له خپل نوره پيدا نور د محمود کړ | په صدا يې وخپل نورته په سجود کړ
په قدرت يې وسيله کړو د عالم | تر ابده په دهٔ صَلِّ وَ سَلِّم
محمد رفيق يې سپه قلاده دار دے | له اقداموېې د سپيو جاں نثار دے

## [۱۵۰] در محمدت احمد سيد المرسلين صلی الله عليه وسلم

---

چې په لطف يې د اسلام په باغ نظر کړ | پرې يې پورته له بلاد د عرب نور کړ
هر يو گل يې په هزار جلوه نمود شو | چې په دوئ پرتو افگن نور د محمود شو
دا بستان يې د بلبلو ته بخښل[8] کړ | هم يې رد ترينه مردود کارغه خجل کړ
چې يې واخيسته نيزه په ميدان ووت | د قريش له اکابرو[9] نه خان ووت
چې يې تاو په هدف واگه د سمند[11] کړه | پرې يې پورته له ميدان نخبنه دژوندکړه
چې يې تاج کړ د لولاک ورته په سر | دے يې کړ صدر نشين د عرش اکبر
آراسته چې يې په تيغ عالم د ناس شو | پرې عالم د ملکوت گړ په سپاس[12] شو
له حرم د مدينې په تگاپوے[13] شو | بې براق له[14] شش جهته په يکسوے شو
شهسوار سريع سوار همې جاه وليد | چې يې ملک قاب و قوسين[15] ادنا وليد
بې رېباره شو محرم د صغه يار | بې سينگاره شو نگار د خپل نگار
دے سلطان او شهنشاه د دغه مهد دهٔ | هم له څو څو خليفه دو وليعهد دهٔ
آبرو يې دے د دوو کونو په ذره پاک شه | چې يې نهٔ دے خاک د درپهٔ سر يې خاک شه
[۱۵۰] هر احد چې يې له نبک صراط انکار کا | په صفت د قهاري بې[16] رب په نار کا
مرسلان يې چاکران حلقه بگوش شو | هم خاصه ددهٔ له نوره خلعت پوش شو

کمر بند د سروري چې تاوتړ ملا کا
لهٔ لرزشه به خلاص واړه انبیا کا

چې گیسو د ناز نیاز یې منګ افشان شي
معطر به یې لهٔ بویه بهشتیان شي

که یې شوه د نیم نظر طرفه رحمت ته
پرې لایق به د اور لاړ شي و جنت ته

چا چې ځان کړ خاک وخس ددهٔ د در
ترې به زړ شي ددې عهد سکندر

چې مالک کړلو مالک د کائنات
شه پهٔ دهٔ هزار سلام هزار صلوٰة

چې د چا شي ثنا خوان رب الودود
کوم صفت به یې کړي دا خاکي وجود

که غلام یې کړې د سپیو دا شفیق
وابه خلي سکندري " محمد رفیق"

## درمحمدة چهار یار کبار

څلور نوره چې څلور خوا ترې عیاندي
شش جهته ددنیا پهٔ دوئي ودان دي

پهٔ قتال غضنفران (رض) محمدي دي
مخاطب پهٔ چهار یار احمدي دي

سروران دي د محمود پهٔ خاص جنو د کښې
پرې اسلام شو منور پهٔ خپل وجود کښې

ابابکر دے روښے عزیز القدر
چې یې درست شو پهٔ تصدیق د اسلام بدر

[۱۵۹] دویم یار یې دے فاروق عمر خطاب
چې ترې پاتې شو دعدل لوے کتاب

دریم یار یې ذوالنورین کنه عثمان
چې جامع دے دعلومو د قرآن

څلورم علی حیدر دریاب د علم
چې حضرت ورته ویلې باب دعلم

د نبیانو پس د دین هادیان دوئي دي
پهٔ گلشن کښې داسلام بلبلان دوئي دي

هم پهٔ تیغ یې د نصرت پس لهٔ سرور
شوه دکفر هنګامه زېر و زبر

اې خاونده پهٔ حرمت د چهار یارو
پهٔ حرمت او پهٔ عزت ددې کبارو

موږ د خپل غضب د اوره پهٔ امان کا
لهٔ دیداره مشرف کل مومنان کا

# در بیان تألیف کتاب

چې شریف دے پهٔ نسب او پهٔ خصلت
د پنډ و میا زاهد کل دے داساعت

ولیعهد دولي میا عبد الله دے
د قرآن پهٔ حقایقو ښـهٔ آګاه دے

پهٔ ځواني قوي شجر عین د دین دے
د قرّاء[1] دو د دوران پهٔ دهٔ امین دے

لطیف رویه شکر خویه خوش مزاج دے
د اشرافو د صدف درة التاج[2] دے

لهٔ ګلبن چې یې پیدا ځلور ګلان دي
پهٔ تحقیق سره د دهٔ نور چشمان دي

رب دې دوئي کاندي عالي پهٔ درجاتو
پهٔ ژوندون کښې لهٔ هر قسم برکاتو

چې یې شوق لهٔ افغاني خغي حلي کړ
ما ینبتو کتاب د شرح امالي کـړ

[۱۶۰] که یې رب کړي پهٔ دربار کښې خپل قبوله
نو ربه ورکه کړي ګناه لهٔ دې فضوله

چې یې سے د پاک حبیب د پاک دربار یم
همیشه د دهٔ د عضوې امیدوار یم

رب دې ورکړي هر احد له د اسلام
پهٔ عقبیٰ کښې همغه ځے دارالسلام[3]

مَلِیْكٌ مَالِكٌ مَوْلَی الْمَوَالِیْ
لَهٗ وَصْفُ التَّکَبُّرُ وَالتَّعَالِیْ

همغه خدائے چې شهنشاه دے د شاهانو
خداوند دے د جمله خداوندانو

د جلال د کبریا خاصه صفات
پهٔ هر دم کښې هم پهٔ دهٔ لري اثبات

بې لهٔ خدایه دې لویي نهٔ کړي هېڅ کس
لایق نهٔ دے دغه کار لهٔ هېڅ نفس

نهٔ دې ځان پهٔ دویم ځان ګڼي اعلا څوک
چې پهٔ قهر د رب نهٔ شي مبتلا څوک

لکه دو پلا محبوب د رب قدیر
چې موسوم دے پهٔ بشیر او پهٔ نذیر

تحیات دې د صلوٰة او د سلام　　دې په ده هم یې په آل اصحاب کرام

## قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّم
## مَنْ خَرَجَ مخرج البَوْلَیْنِ فَکَیْفَ یتکبر [۲۲]

---

[۱۶۱] چې له دوو لارو د بولو څوک بېرون شي　　په کول د تکبر به دے ملعون شي

که څوک سترګې د انصاف وغړوینه [۲۳]　　تل ته تله به له کبره ځان ساتینه

پاک الله د هر ګناه عفوه آخر کا　　جهنم ته به ګوزار متکبر کا

هر سړے چې په خپل ځان تکبري کا　　په تحقیق له خداوند برابري کا

لکه وکړله آدم ګناه ای دله　　پاک الله ورته په رحم عفوه کړله

شیطان وکړو تکبر دے ګرفتار شو　　تل ته تله دا خبیث لایق د نار شو

## یَقُوْلُ الْعَبْدُ فِیْ بَدْءِ الْاَمَالِیْ
## لِتَوْحِیْدٍ بِنَظْمٍ کَا لَّلَالِیْ

---

د بدأ معنیٰ شروع واوره عیان ده　　د املا معنی مکتوبه له بیان ده

او مراد هم له توحید علم توحید دے　　هم ترې علم د ایمان دا رنګ پدید دے [۲۴]

په دا رنګ ده لوء الی د لولو جمع　　لولو وایي جواهر ته وکړه سمع

یعني وایي مصنف ددې کتاب　　چې یې نوم محمد او شی [۲۵] دے انتخاب

پهٔ دا رنګ يې پهٔ شروع کوي بيان ــ چې هر وخت پرې پېژندلے شي ايمان
عقايد دي د اسلام پکښې منظوم ــ دا دُرر(۲۶) وو د فارس پهٔ ګنج مکتوم(۲۷)
[۱۶۲] دي فقير بيا د پښتو پهٔ شبرازه کښې ــ درته کېښو پهٔ ميزان پهٔ اندازه کښې

# اِلٰهُ الْخَلْقِ مَوْلٰينَا قَدِيْمٌ
# وَمَوْصُوْفٌ بِاَوْصَافِ الْكَمَالِ

الله اسم دے خاصه د رب معبود ــ هم لهٔ خلق نه مخلوق شولو نمود
هم مولیٰ خاصه مالک ناصرته وايي ــ د قديم معنی په دا رنګ درته بنايي
چې هستی لره يې نهٔ وي نابودي ــ دي قايمه ازلي هم ابدي
ترجمه دهٔ (د) کمال دايي تمام ــ يعني رب موود ے قديم علی الدوام
که څوک وکاندي لهٔ دې قسمه ګمان ــ چې لهٔ کوم وخته خالق شولو عيان
يا پخوا لهٔ خداوندهٔ وهٔ کوم څيز ــ پر دغه ګمان کافر شو بې تميز
دا پهٔ دا که خدا ے هيڅ نهٔ وے قديم ــ نور معلوم لهٔ دغه کار شي دغه بيم
چې خالق شولو پيدا لهٔ خدايه بله ــ پيدا څيز د خدايي نه دے غافله
دے موصوف دے پهٔ صفاتو د کمال ــ نهٔ نقصان لري پهٔ ذات کښې نهٔ زوال
لکه دا رنګ زندهٔ ګي او دانايي ــ پهٔ دا قسم بينايي او شنوايي
يا لهٔ دې قسمه يې نور خاصه صفات ــ دي معلوم پهٔ هر زمان ذوالبرکات
[۱۶۳] پهٔ صفاتو کښې ددهٔ که وي نقصان ــ نور راين به پکښې وهٔ دا هسې شان
ګاه زندهٔ ګاهې مړ دهٔ به وهٔ سبحان ــ ګاه دانا او ګله دے به وهٔ نادان
او پهٔ دې حالاتو کفر دے کمال ــ تر ښه ځان ساته مومنه پهٔ هر حال

که څوک ووايي فلانے ګوره ظاهر خالق هيڅ کړ نودپهٔ دا به شي کافر

داپهٔ داچې د خالق پهٔ دانايي پهٔ هيڅ وخت سره هيڅ کله راځي

دا هم نهٔ ده چې پهٔ دب وايي ظاهر کله اوري کله نهٔ اوري خبره

يا به وايي چې خالق کله بينا وي[۲۸] کله کله لهٔ بينا نه نابينا وي

که پهٔ توره شپه ميږے پهٔ کاڼي تږ وي روان پهٔ آهسته پهٔ يوهٔ لور

پهٔ صفت د شنوايي دخپو[۲۹] آواز ددهٔ اوري لهٔ ما داوره خوشطراز

پهٔ صفت د بينايي داوره عيان ددهٔ ويني کل ماغزه د استخوان

## مسأله

پهٔ دا پوه شه لکه ذات ددب قديم دے هر صفت هم قديمي د دب حکيم دے

پهٔ دا رنګ دولس صفاته د سبحان فرض عين دي چې يې زده کړي مومنان

حيات ، علم او قدرت او ارادت هم بصر ، سمع کلام او مشيت[۳۰]

هم بېچونه بېچګونه هم بې عيبه بې نقصانه صفات زده کړه بلاريبه

هُوَالْحَيُّ الْمُدَبِّرُ كُلَّ اَمْرٍ
هُوَالْحَقُّ الْمُقَدِّرُ ذُوالْجَلاَلِ

ترجمه دے ژوندون دے پهٔ تقدير مُدَبر وايي صاحب ته د تدبير

وايي حق وهغه څيزوته سايله چې هرګز پهٔ کښې ظاهر نهٔ وي باطله

هم وراست وته تل حق وايي څرګند — هم پهٔ دا رنګ دهٔ نامه د خداوند

هم فاعل د اندازې دے مُقَدَّر — جلال وايي بزرګي ته سراسر

يعنې داوره هسې پاک پروردګار دے — چې زنده تدبير کوونکے د هر کار دے

هسې خداے دے خاوندي لره لايق — د هر څيز اندازه کړونکے دے فايق[۳۱]

خداوند د بزرګۍ دے چې هر څيز — دي پيدا يا پيدا کېږي پهٔ تميز

پهٔ ازل کښې اندازه لهٔ رب بصير دے — چې نه کم او نهٔ ترې زيات پهٔ هيڅ تقدير دے

## مُرِيْدُ الْخَيْرِ وَالشَّرِّ الْقَبِيْحُ
## وَلٰكِنْ لَيْسَ يَرْضٰى بِالْمُحَالِ

مريد وايي دخوښتونکي ته سروره — ترجمه د خير نېکي دهٔ براده

[۱۶۵] په دا رنګ قبيح وايي وبدي ته — رضا وايي نېک ګڼل د يوه شي ته

محال وايي هغه څيز ته برادره — چې کېدل يې ممکن نهٔ دي سر د سره

او مراد پهٔ دغه ځي کښې د محال — دادره کفر او ګناه دهٔ هم وبال

لکه دا رنګې يو کس شي بې مجاله — ترېنه وشي ګناه کفر پر محاله

دا پهٔ دا که مومن عقل فکر کړ لے — مناسب چې ګناه کفر[۳۲] نهٔ کولے

ګناه کفر لهٔ مومنه حقاني — محال کار دے محال کار دے ګراني

يعنې هر نېکي بدي چې بنده کړينه — وخالق ته لهٔ [illegible] معلومه دينه

چې فلانا به کړي نېکي پهٔ دا مقدار — يا فلانے به کړي بدي دومره بې شمار

دغه خواست ازلي ته ارادت — لهٔ ما دادره درورهٔ وايي هر ساعت

اوس بنده که فعل خپل ته خواهش کړينه — پهٔ دا فعل يې د رب هم خواهش لرينه

دې خواهش ته د رب وايي مشيت
د بنده فعل اختيار دے هر ساعت
ولېکن د بدي کار چې له چا شينه
حق تعالیٰ پرې نا رضا له بنده وينه
پس نېکي په خواستګاري په مشيت
په رضا هم دده کېږي هر ساعت
که بدي په خواستګاري هم دده شينه
ولېکن به په رضا دده نه وينه
پس بنده چې کړي نېکي سعادتمند
د رب رضا شي هم له ده شي وړ خورسند
[۱۶۶] هم له دې جهته موي وړ ثواب
په بدي دې نارضا دد کړي عذاب

# مسأله

که يو کس بدي کوي وايي خرګند
چې په دا کښې دده رضا د خداوند
په دا قول سره کافر کافر دے
په دا ځي کښې يې احوال واړه ظاهر دے
چې خالق څوک په بدي راضي ګڼينه
له سنت او جماعت به خارج شينه
خلافت بيالهٔ سنت او جماعته
داړه کفر دے ته واوره دا ساعته

## لِقوله عليه الصّلوٰة والسلام

## مَنْ خَرَجَ مِنَ الْجَمَاعَةِ قَدْرِ شِبْرٍ فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الاِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهٖ [۳۳]

يعنې هر څوک چې په يو کلام صاف
له سنت او جماعت نه شي خلاف
ګلوبند يې د اسلام د ښه زينت
له ګردن کړلو بېرون دغه ساعت

## مسأله

هرچې کړي یا ویلي پیغمبر دي | په دنیا لکه د نور غوندې اظهر دي
یا چې پس له ده یاران دي په څه تللي | یا په وعظ نصیحت یې دي ویلي
یا په بل رنګ امامان واړه د دین | چې دوی تللي په دا لارې په هر حین[۳۴]
وهغې ته مذهب وایې د سنت | هم په دا رنګ د سنت د جماعت

[۱۶۷]

## مسأله

بایده نه دي هم په دا رنګې وبل | چې خالق واړه افعال اندازه کړل
څه بایده زموږ کوشش په داسا عت شي | دے ګمراه به له سنت او جماعت شي
دا په داکه ښه او بد دواړه افعال | په ازل کښې اندازه کړه ذوالجلال
خو فی الحال یې عقل فکر هم اختیار | موږ له راکړ هم یې امر کړو اظهار
چې که عقل فکر تاسو کړئ څرګند | په نېکۍ به ثواب بیا مومئ دوچند
او که عقل فکر نه کړئ وکړئ بد | په اختیار بې عذاب مومئ ترابد

## صِفَاتُ اللهِ لَيْسَتْ عَيْنَ ذَاتٍ
## وَلَا غَيْرًا سِوَاهُ ذَا انْفِصَالِ[۳۵]

یعنې واورئ د خالق چې څه صفات دي | نه جدا یې دي له ذات نه غیرذات دي

هر صفت جدا جدا يې واوره دادے ‏‏‏ چې زنده دا نابينا او سم شنوا دے
بل صفت دده ګويا بل ارادت دے ‏‏‏ ورپسې واوره په دا رنګ مشيت دے
نور صفات يې په دا رنګې پېدا دي ‏‏‏ چې ښکاره په بېل بېل جدا جدا دي
پس صفات چې د خالق دي بې حسابه ‏‏‏ ذات يې يو واحد مطلق دے اې احبابه
[۱۶۸] پس ګويا چې غير ذاتي دي صفات (۳۶) ‏‏‏ وليکن چې کل صفات دي د يو ذات
او يا ذات چې قديم خالق لرينه ‏‏‏ او وجود عليحده دوئې نه لرينه
پس لهٰذې قسمه له عين صفات دي ‏‏‏ ولې نه له عين ذات نه غير ذات دي

# مسأله

بيا چې بعضې عوام وايې په دا رنګ ‏‏‏ چې دا زمکې آسمانونه بې د رنګ
يا دنيا کښې آدميان حانوران دي ‏‏‏ دا همه واړه صفات دپاک سبحان دي
يا فلانے څيز چې مخلوق صفت دخدائے ‏‏‏ دغه واوره کافر په دغه رائے دے
دا په دا چې دا څيزونه کل څرګند ‏‏‏ له ما واوره دي مخلوق د خداوند
هم تغيير تبديل په دوئې کښې پېداشينه ‏‏‏ نو خلقت دے له اله العالمينه
او صفات دحق تعالیٰ واړه قديم دي ‏‏‏ بې تغيره بې تبديله د حکيم دي

## صِفَاتُ الذَّاتِ (۳۷) الْاَفْعَالِ طُرًّا
## قَدِيْمَاتٌ مَّصُوْنَاتُ الزَّوَالِ

د طُرًّا معنا ده ټول په دا نمون ‏‏‏ او معنا نګاه داشته ده د مصوون
يعنې خدائے لره صفات ذاتي فعلي ‏‏‏ کل قديم او بې زواله دي جلي

[۶۹] لهٔ ما داوره دي د ذات هغه صفات ‌‌ ‌ چې ستايل شي لهٔ دغه صفاتو زيات

لکه دا رنګ زندګي او دانايي ده ‌ ‌ ورپسې يې شنوايي او بينايي ده

يالهٔ دې قسم يې نور نوري صفات ‌ ‌ لهٔ ما واوره د خالق دي لهٔ حد زيات

او صفات فعليه هغه دي شاد ‌ ‌ چې پرې فعل د خالق شي داوره ياد

لکه داوره خالق دايي کننده ته ‌ ‌ او رب وايي د خلقت پروړنده ته

پس سنت او جماعت ته مستقيم ‌ ‌ دي ذاتي فعلي صفات واړه قديم

ولې وايي هسې بعضې ګمراهان ‌ ‌ که خداے نه واے پيدا کړے دا جهان

نورصفت د خالقي بې (۳۸) وه معدوم ‌ ‌ دوئې کافر دي پهٔ دا قول سره معلوم

(۳۹) دا پهٔ دا چې نوے ځينې قديم ګڼينه ‌ ‌ پهٔ تحقيق سره پهٔ دا به کافر شينه

پس صفات فعليه کل د جليل ‌ ‌ قديمي دي هم پهٔ دا دنګې دليل

که يو کس آهنګري باندې پوے وينه ‌ ‌ که اګرچې دغه کسب نهٔ کوينه

ولېکن وده ته وايي آهنګر ‌ ‌ دغه نوم وي پهٔ دهٔ پورې برابر

نُسَمِّي اللّٰهُ (۴۰) شَيْئًا لَا كَالْاَشْيَاءِ (۴۱)

وَ ذَاتًا عَنْ جِهَاتِ السِّتِّ خَالِي

---

روس معنی د شعر لهٔ ما داوره ده ځينې ‌ ‌ چې دے هست ثابت وجود لري عزيز

[۷۰] او وجود داوره معنی شوله د ذات ‌ ‌ د جهات ترجمه داوره ششجهات

لکه بکته يا شو پورته پېش وپس ‌ ‌ يا پهٔ راست وچپ اطراف دي داوره بس

يعنې خداے ته ځينې اوذات ويل روا دي ‌ ‌ دا اقوال پهٔ شريعت واړه برپا دي (۴۲)

دا پهٔ دا چې ځينې هغه ته ويل شينه ‌ ‌ چې هستي دهٔ ثابته پرده وينه

او ذات وايي ووجودو ته بلند — پس که خدای وته څيز نهٔ وايو څرګند

دے به نيست وي لهٔ ما داوره دا کلام — او ذات وايي ووجودوته تمام

او خالق له وجود شته دے نيک خصلت — وليکن دے دے خالي لهٔ شش جهت

دا پهٔ دا چې کل مخلوق له پهٔ جهان — شش جهاته دي معلوم واوره بيان

خود وجود دلم يزل متعالي — پهٔ دا رنګ لهٔ ششجهاته دے خالي

هر وجود له چې دا ششجهت پيدا دے — نور حدود يې هم معلوم جداجدا دے

لکه حد نشته وجود لره د خدای — دے خالي له ششجهاتو پهٔ دارای

دا پهٔ دا که پاک الله دے پهٔ آسمان — نور د زمکو کار به وهٔ واړه ويران

اوکه زمکو باندې دے خالق اکبر — نور به کار د آسمانونو وهٔ ابتر

لکه دا رنګ يو بادشاه پهٔ جهان — وي نږدې حدود يې واړه آبادان

او چې لرې ملک لهٔ دهٔ وي چرته بيل — لهٔ تحقيقه شي پيدا پکښې خلل

[۱۰۱] دغه ملک به شي ترې کل واړه ويران — بې طاقت دي د دنيا کل بادشاهان

## مسأله

لکه رب چې دے خالي لهٔ ششجهته — دا رنګ نهٔ دے پهٔ هيڅ څيزکښې نيک خصلته

داپهٔ دا چې هر يو څيز پهٔ څيزکښې وينه — پهٔ تحقيق پرې عاجزي ثابته شينه

پهٔ دا فکر به کافر شي هم کافر — کافر کيږي چې ګڼي څيز کښې اکبر

# وَلَيْسَ الْاِسْمُ غَيْرًا[۳۴] لِلْمُسَمّٰى
# لَدٰى اَهْلِ الْبَصِيْرَةِ خَيْرُ آلِي

---

نوم د اسم ترجمه فکر کړه حد ته　　مسمی وایي پهٔ دا رنګي نامزد نه

او د اهل معنی ده داوره کسان　　کسان سراے وته وایهٔ شي داوره شان

هم د اهل معنی مرد ده نیک خصلته　　هم معنا یې بینا یي لهٔ بصیرته

یعنې نوم بې لهٔ نامزد نشته دے جانه　　پهٔ نزدې د عاقلانو خوش الحانه

عاقلان او دانشور چې پهٔ خصلت دي　　هغه اهل د سنت او جماعت دي

لکه نوم چې د الله دے پهٔ نمود　　ولې نهٔ دے دغه نوم غیر لهٔ وجود

او که نوم غیر لهٔ وجود وي د سبحان　　نور د هیچا به درست نهٔ وهٔ ایمان

[۱۰۲] که کافر وایي راوړے مې ایمان　　پهٔ الله دے، دے به شي پهٔ مسلمان

پس که نوم عین وجود نهٔ وي عیان　　نور پهٔ نوم به د رب درست نهٔ وهٔ ایمان

دا سړے به نور پهٔ دا مسلمان نهٔ شهٔ　　بې وجوده به د رب دا بیان نهٔ شهٔ

ولیکن کافر که وایي ما ایمان　　پهٔ الله راوړے دے شو مسلمان

پس معلوم شو چې دے نوم غیر وجود　　پهٔ دلیل بل لهٔ وجود غیر شو نمود

لکه یاد نوم د الله کړي پهٔ زبان　　یا یې وکښي پهٔ کاغذ عظیم الشان

پهٔ زبان کاغذ وجود د رب معبود　　پیدا نه شي ځان دې پوه کړه پهٔ بهبود

پسې داورئ چې نهٔ عین وجود شولو　　او نهٔ غیر دے لهٔ وجود داورئ عاقلو

روایت دا د ابو شکور سلما دے　　مصنف د امالي انه دویم دا دے

وایي دے چې دے دا نوم عین وجود　　دے لهٔ نوم سره وجود یو پهٔ بهبود

پس که څوک پهٔ زبان کړي د نوم کلام　　دغه دې نوم اخیستل[۳۵] داوره نهٔ نام

پس که نوم يې په کاغذ باندې وښکينه — داحروف يې دلالت په نوم کوينه
ولې نۀ دي عين نوم داوره عاقله — يا ثواب انتخاب ذده کړه لۀ سايله

[۱۷۳]

## وَمَا اِنْ جَوْهَرٌ رَبِّیْ وَجِسْمٌ
## وَلَا کُلٌّ وَّ بَعْضٌ ذُواشْتِمَالِی

---

جوهر وايي عين اصل ته عاقله — چې لۀ يوه څخه دوه نۀ کيږي سايله
هم جوهر وايي ذرې ته اې سالکه — رب نامه ده د ښۀ خداے هم د مالکه
هم بهتر ده ترجمه د رب د نام — لۀ دفتر د عقايد ذده کړه کلام
جسم وايي هغه څيز وته څرکند — چې لۀ دوو ذرو يا ډېرو شي پېوند
او د کل ترجمه دا رنګې کوينۀ — چې ذرې او پارچې ډېرې دے لرينه
او د بعضی ترجمه غير ده لۀ کله — يالۀ کل نه شي جدا داوره عاقله
يعنې نۀ دے ذموږ پاک پروردګار — د هېڅ څيز اصل ته ځان کړه ښۀ هوښياړ
يعنې هېڅ څيزلۀ وجود د ښۀ خداے — پيدا نۀ دے ځان دے پوه کړه پۀ داراے
پس که دوايې چې زه يمه نمود — پيدا شوے يم د خداے لۀ ښۀ وجود
يالۀ دۀ شولم جدا داوره جدا — پۀ دا پوه شه چې کافر به شې پۀ دا
لکه وايي پۀ دا رنګ بعضې عوام — چې خاص نور د محمد عليه سلام
جدا شوے دے لۀ نور د رب مولا — پۀ دا پوه شه چې کافر به شي پۀ دا
هر يو شے چې دے جدا شي لۀ سبحان — لۀ تحقيقه هغه څيز مومي نقصان
[۱۷۴] او خاوند نۀ دے ذموږ نقصان پذير (۴۶) — لۀ دي حکم سره ځان کړه ښۀ مشير (۴۷)
هم ذره نۀ دے ذموږ پروردګار — لکه بعضې ګمراهان وايي اظهار

چې پهٔ ماکښې دهٔ ذره د پاک مولا — پهٔ تحقیق سره کافر به شي پردا

دا پهٔ دا چې شي هر څېز ذره ذره — هغه څېز لره نقصان وي بنسه کره

او بیا هغه څېز چې دے لري نقصان — کله خداے شي لهٔ ما داوره دا بیان

جسم هم نهٔ دے زمونږ پروردګار — لکه بعضې ګمراهان وایي بسیار

چې دا ټول عالم ذرې نهٔ شو پېدا — پس دغه ذره به دے ګڼي خدا

دے کافر شولو په دا رنګې یقین — او پهٔ دا بیا نهٔ پوهیږي دا بې دین

چې دغه ذرې راجمع کړي بل چا — تر ښنه ساز یې کړلو جسم مصفا

او که دا شوې خود به خود سره راجمع — پهٔ دا څې د ذرهٔ پهٔ غوږدو وکړه سمع

که دوئې وایي چې بل کس کړلې یوځاے — جمع کړو نګے به یې وي بې شکه خداے

او دغه ذرې به کل وي مخلوقات — دغه کس بې خداوند وي پهٔ اثبات

او که دا رنګه کسان وایي لهٔ قالـه — شوې ذرې پهٔ خپله جمع د ځالـه

نهٔ ځاییږي دا د عقل پهٔ میزان — نه باور به بانده وکاندي انسان

چې به بې لهٔ کاریګره وشي کار — پهٔ دا کله عاقلان کړي اعتبار

[۵۰۱] کشتۍ کله بې استاد جوړېږي سیاله — نهٔ کونه کله جوړېږي بې کلاله

نهٔ جوړېږي هیڅ[۴۸] شمشېر بې د لوهاره — بې صانعه صنع نهٔ شي داوره یاره

که اګر لرګي تختې موجودې وینه — یا به خاک خمیره ډېر ډېر پېدا شینه

یا موجود وي هلته او سپنه فولاد — داړه بې لهٔ کاریګر دي نامراد

چې دغه ذرې چې وموې تغییر[۴۹] — او بیا جسم تر ښنه جوړ شي پهٔ تقدیر

او دا جسم شي عیب ناک بیا شي زوال — دا لهٔ خپل اختیاره نهٔ شي پهٔ هیڅ حال

بلکه خداے دے هغه څوک[۵۰] ځان کره خبیر — چې دغه ذرې لهٔ حاله کړي تغییر

تر ښنه جوړې کړلو[۵۱] جسم خوش خصال[۵۲] — بیا یې جسم لره ورکړلو زوال

پهٔ دا رنګ نهٔ دے زمونږ پروردګار — عیڼ همه څېز ونه مهٔ کوه ګفتار

لکه وایي هغې بعضې ګمراهان — چې کل څېز دے خداوند شي کافران

دا پهٔ دا چې شته دے هر څیز له زوال  زوال دار څه کله خدائے دے وکړه خیال

دا رنګ بعضې نهٔ دے رب پهٔ دا عالم  چې پهٔ بل څیز کښې دننه وي دے ضم

لکه وایي دا رنګ بعضې ګمراهان  دا مثال لري خالق عظیم الشـــان

لکه نم چې پهٔ ګیاه کښې وي دننه  پهٔ تحقیق لهٔ دې ګمانه کافر شینه

[۱۰۶] دا پهٔ دا چې حق تعالیٰ ته پهٔ مضمون  نهٔ درون وایه پهٔ څیز کښې نهٔ بېرون

دا پهٔ دا چې پهٔ دا دواړه لفظه باندې  دے کافر شي دے کافر شي چې دا کاندې

هم پهٔ دا چې لم یزل ته اشارت  د څې کاندي پرې کافر شي دا ساعت

بلکه دا قدر وېل یې روا شــونه  چې لا نهٔ وو عرش کرسي او آسمانونه

او نهٔ زمکې آدمیان وو نهٔ پېریان  خالق وو چې ځائے یې نهٔ لره عیان

نهٔ پهٔ څیز کښې نهٔ پهٔ څیز د ذوالجلال  اوس یې هم ګڼه مومنه پهٔ دا حال

که پهٔ څې کښې دے خالق بهٔ وهٔ محتاج (۵۳)  دے خالق بې احتیاج سم کړه مزاج

ګمراهان که بعضې وایي دهٔ لهٔ روح  کافر کېږي هم پهٔ دا رنګې شروح (۵۴)

دا پهٔ دا چې روح مخلوق صاف نوراني دے  چې سبب دے د قالب حیات جاني دے

هم پهٔ دا رنګ پهٔ قالب کښې وي دے بند  خالق بند نهٔ شي پهٔ څیز داوده څرګند

دا پهٔ دا چې ارواحونه دي بسیار  لکه وړ دي قالبونه بې شمار

پس که خدائے چرې روحونه دے یکسان  نور به وړ وو خدایان پهٔ دا جریان

او بیا دا ویل هم کاندي ګمراهان  چې خدائے یو دے شریک نهٔ لري عیان

کله یو کاندي خالق کله یې وړ کا  چې د روح وته نسبت د خالق وړ کا (۵۵)

پس روح نهٔ دے خداوند مخلوق د ذات  چې قالب لره سبب دے د حیات

[۱۰۷] لکه دي پهٔ توره شپه سبب چراغ  روشنایي لره د کور کوم بلاغ (۵۶)

او دې روح لره حیات بل نشته کله  څو حیات لره سبب شوله پخپله

لکه دا رنګې آتش چراغ سببه  روشنایي لره د کور دے بنهٔ عجبه

نهٔ دې وایي چې آتش پهٔ څهٔ روښ دے  خود معلوم دے چې آتش دے هم آتش دے

## وَمَا اَنْ صُوْرَةُ رَبِّیْ وَعَرْضُ
## تَعَالَی اللّٰهُ عَمَّا فِی الْخِيَالِیْ (۵۷)

عرض هغه دے چې خپل نهٔ لري قيام — دے قايم وي پهٔ بل ځين علی الدوام
لکه رنګ بوء يو مزې لره دجود — پهٔ هيڅ رنګ عليحده نهٔ دے نمود
نکه دوئې شی تل موندے پهٔ بل وجوکښې — مناسب چې ځان دي پوه پهٔ دابهبود کښې (۵۸)
يعنې عرض (۵۹) نهٔ دے خالق داوره عزيزه — چې به دے موصي قيام لهٔ بله ځينه
يا وجود عليحده دے نه لرينه — پهٔ هستی کښې به محتاج د بل ته وينه
بلکه شته دے خدا ے لهٔ هسې رنګ وجوُد — چې دې هست پهٔ خپل وجود دے پهٔ نمود
بل ځان پوه کړه ته پهٔ دا رنګې هيئت — چې هرګز نشته خالق لره صورت
لکه سر او خټې (۶۰) او مخ او شا اولاس — ورله نشته ځان دې پوه کړه پهٔ قياس
[۱۰۸] دا پهٔ دا که چرې دهٔ لهٔ وے صورت — نور بهٔ دهٔ لره ببشک وے شش‌جهت
او خالق لهٔ جهت نشته پهٔ دا قيل — بيا صورت له دے پيدا دا رنګ دليل
چې پيدا به دې صورت له دو حدود — او حدود خود نهٔ لري زموږ معبود
بل محدود حد کننده لري مدام — د خالق حد کننده نشته دوام
بل صورت خو جوړ وو ئے ځوک لرينه — نور خالق له بل خالق نشته امينه
چې دهٔ به يې جوړ کړے دي صورت — پس دغه ګمان کافر شو بد خصلت
او چې بعضې ګمراهان وايي بدخوے — رب خپشته دے هم پهٔ شان زمادزوے (۶۱)
يا پهٔ شان زما ديار دے لهٔ يقينه — پهٔ دالفظ به بېشکه کافر شينه
دا پهٔ دا چې خدا ے له نشته دے صورت — دې ځيزونو لهٔ صورت دے پهٔ هيئت
بل بايده دي ځان کړه پوه پهٔ دغه حال — که دې تېر شولو پهٔ زړهٔ کښې دغه خيال

چې خالق به وي چنین یا به چنان وي — پهٔ تحقیق سره غلط به داګمان وي
دا پهٔ دا چې خدای لهٔ فهمه لهٔ خیاله — بلند تر دے فکر مهٔ کړه لهٔ صحیح حاله
دا پهٔ دا چې فکر فهم د عاقل — نهٔ رسېږي پهٔ خالق وايي سایل
مګر وایه چې حق شته داوره مېمونه — چې پیدا یې کړه دا کل واړه څیزونه
مګر فکر یې تهٔ مهٔ کوه دا شان — چې پهٔ دا اعتقاد وېږ شو کافران

## [۱۶۹] وَمَا الْقُرْآنُ مَخْلُوقًا تَعَالَى
## كَلَامُ الرَّبِّ عَنْ جِنْسِ الْمَقَالِ

دا قرآن وايي خبرو ته د خدای — چې قایي[۶۳] دي پهٔ ذات پوره دے نېکرای
او کلام وايي دیلو ته اې ورورہ — جنس وايي حقیقت د څیز ته ګوره
او مقال وايي پهٔ علم کښې د صرف — وصیغې ته د مصدر زده کړه دا حرف
یعنې قول پهٔ معنی کښې دے ګفتن — چې پهٔ حرف او پهٔ آواز وي زده کړه فن
یعنې داوره مخلوق نه دے دا قرآن — بلکه دے کلام د رب داوره عیان
دے لهٔ اسم د مخلوق نه دے برتر — دا په دا چې دے کلام د رب اکبر
او خبرې خاص صفت دے د باري — دا صفت به څهٔ مخلوق ددهٔ شماري
دا پهٔ دا چې دے مخلوق نوے پیدا — او صفات دي قدیمي د حق تعالی
بیا خبرې چې د خدای دي لهٔ آغاز — نهٔ پهٔ حرف یې شي وېل نهٔ پهٔ آواز
دا پهٔ دا چې حرف آواز داوره عیان — خاص را ووځي لهٔ دهن او لهٔ زبان
او خالق لره دهن او زبان نشته — بې زبان د ګویایي یې بیان نشته
دے بینا، شنوا خالق بې غوږ او سترګو — که یې غوږ سترګې دهن زبان دي بزرګو

[١٨٠] نور صورت به هم خالق له وهٔ ظاهر — بیا صورت له به ددهٔ و مصور (٦٣)
پهٔ تحقیق دے دا گمان کفر تمام — گوره ونهٔ کړې مومنه گمان خام
پس خبرې د خالق بلا تشبه — پهٔ خبرو د ذرهٔ ونسه فقیه
دا مخلوق دپاره دایم دا مثال — لهٔ دې قسمه دے کلام د ذوالجلال
باوجود چې دا خبرې د ذرهٔ یاده — کل مخلوق دے نو پیدا داوره هوبیاره
او خبرې قدیمي دي د خاوند — قدیمي لره لهٔ نو (٦٤) مهٔ کړه مانند
حقیقت کښې چې خبرې د مولا دي — پهٔ مانند د ذرهٔ خبرو نه سوا دي
دا دپاره د مخلوق کوتاه اندېش — مثال ووې پهٔ دا ځے باندې درویش
باوجود چې ذرهٔ مخلوق دے د غفور — حرف او ځے یې پهٔ کلام نشته ظهور
پس خبرو د خالق له پهٔ دا ساز — څهٔ نسبت دے د حروف او د آواز
چې پهٔ حرف آواز نسبت د حق کلام کا — دے کافر دے پهٔ دا ځے کلام تمام کا

## جُمِيْعُ الْعِلْمِ فِى الْقُرْاٰنِ لٰكِنْ
## تَقَاصَرُ عَنْهُ اِفْهَامِ الرِّجَالِ (٦٥)

[١٨١] یعنې ټول علم اول آخر یادانو — چې نازل شولهٔ خاونده پهٔ نبیانو
پهٔ معنی سره همه دے پهٔ قرآن کښې — خود فهم توانې (٦٦) نشته پهٔ انسان کښې
پس معلوم شو چې نبي آخر زمان — هر گفتار موافق کړي لهٔ قرآن
ولیکن نشته دے زمونږ هسې طاقت — چې حضرت کړهٔ دا بېرون لهٔ کوم آیت
دا پهٔ دا چې ترجمه د کل قرآن — لکه کړې محمد آخر زمان
زمونږ نشته دے د فکر هومره توان — چې به وکړو هم ددهٔ غوندې بیان

يا گفتار او يا كردار چې د حضرت دے — موافق هم لۀ قرآنه لۀ آيت دے

د اصحابو كه كردار وۀ يا گفتار — موافق وۀ لۀ قرآنه د ستار

دا پۀ دا پس له نبي آخر زمان — دوئ خبر شۀ پۀ آيت وو د قرآن

او گفتار كردار چې وۀ د امامانو — همه وارۀ موافق دوئ لۀ قرآنو

چې دوئ پس لۀ اصحابانو د رسول — د قرآن پۀ معنى بنه پوهېده مقبول (٦٧)

هم پۀ دا سبب كه څوك واوره خبر — لۀ ويل د پېغمبر شولو منكر

يالۀ گفت د اصحابانو امامانو — پۀ تحقيق سرۀ كافر به شي يارانو

دا پۀ دا چې دا د دوئ گفته كردار — موافق دے لۀ قرآنه د غفار

امامانو پس كه څوك پۀ دا زمان — ترجمه كاندي لۀ ځانه د قرآن

[۱۸۲] پرې كافر به شي چې كړي دا فكر خام — لكه ووې پېغمبر عليه سلام

## من فسّر القرآن برائه فقد كفر

مَن قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِرَأْيِهِ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّار (٦٨)

---

دا پۀ دا چې امامانو نه ساقي — پاتې نۀ ده د قرآن معنى باقي

چې به اوس د هغې كاندي څوك بيان — لۀ ملحق ځنې وگڼه دا شان

# وَ رَبُّ الْعَرْشِ فَوْقَ الْعَرْشِ لٰكِنْ
# بِلاَ وَصْفِ التَّمَكُّنْ وَ لِتِّصَالِیْ

---

اوس د رب معنی مالک دہ پۀ ظهور        عرش داورہ لۀ ما تخت دے د نو ر

بعضې وايي لۀ ياقوتو سرو پيدا دے        پیدا کړے پۀ قدرت سرہ مولا دے

يعنې خدائے وته ويل پۀ عرش بالا        لۀ ما داورہ دا روا دے هم روا

خو پۀ دا معنی روا دے عجايب        يعنې خدائے پۀ عرش قادر دے هم غالب

پۀ مخلوق او پۀ نېستي او پۀ هستي        پۀ هر ځۀ کښې چې څۀ خواړي دے کوي

نور پۀ دا معنی بالا دے پۀ عرش باندې        چې غالب دے پۀ دۀ باندې هرچې کاندي

لکه دے دا رنګ مثال هر ځۀ عيان        چې فلانے سړے بالا دے پۀ فلان

يعنې دے پۀ مرتبه حکم بالا        نۀ پۀ ذات د هغه شخص داورہ دا

[۱۸۳] ولېکن د چا ګمان که بيا پۀ دا دے        چې خاوند به ذات خود پۀ عرش بالا دے

دے کافر شولو پۀ دا رنګې ګمان        دا مفسد ګمان مدام کړی کافران

هم پۀ دا چې عرش مخلوق دے داورہ کاج        او خالق نۀ دے مخلوق وته محتاج

بل چې خدائے ته څوک دے نسبت کوينه        پۀ دا پوہ شوہ چې کافر دے لۀ يقينه

بله داکه چرې خدائے وي پۀ عرش باندې        نور جهت به ورله هم وۀ داورہ ورانده؟

او که خدائے لرہ پيدا چرې جهت وے        مې بايد چې نور بۀ دۀ لرہ صورت وے

نور پۀ دغه ګمانونو کفر تام دے        پۀ تحقيق سره وتط لۀ اسلام دے

او چې بعضې حکما وايي دا رنګ        چې پيدا شي څيز د عرش لاندې يکرنګ

دغه داړہ پيدايش لۀ عرشه وينه        عرش خالق کړي د مخلوق پرې کافر شينه

پس په نزد هم د سنت د جماعت        دغه عرش دے بېشک د رب خلقت

او خالق دے پهٔ دا عرش باندې غالب    هم غالب دے پهٔ مخلوق پوه پرې طالب
او دا نور مخلوق هم دهٔ کړو آفريد    لکه نور دے وهر چا وته پديد

## وَمَا التَّشْبِيْهُ لِلرَّحْمٰنِ وَجْهاً
## فَصُنْ عَنْ ذَاكَ اَصْنَافَ الْاَهَالِىْ

[۱۸۴] تشبيه وايي ومانند وته اې ياره    هم د صنف معنی قسم ده هو بنيا ره
دا رنګ جمع ده د اهل دا اهال[69]    اهل[70] وايي وکسانو ته بر حال
يعني رب زموږ لهٔ نشته دے مثال    پهٔ هيڅ قسم لهٔ اقسامو زده کړه حال
پس نګاه لره لهٔ دا رنګې ګمان    که د اهل که عيال وي که د ځان
لکه بعضې کس آدم رب ته وايينه    يا د يار پهٔ شان پهٔ دا کښې کافر شينه
دا پهٔ دا چې رب له نشته دے مثال    او صورت لري آدم داوده بر حال
او خالق زموږ لهٔ نشته دے صورت    نور مانند ورلره نشته هم جهت
هر چې خدا ے لره صورت ګڼي هو بنيار[71]    هم پهٔ دا عين کافر شو بې مداره
چې فايده شوله پهٔ دا کښې زنهار[72]    نور پهٔ جمع سره داوړ شو يکبار
پس صاحب دکور دې واوره لهٔ دې شان    دکور خلق کړي نګاه لهٔ دې ګمان
چې دکور خلق ددهٔ دي کل کسان    استاذان دې ترې نګاه کړي شاګردان
دا پهٔ دا دي شاګردان ددهٔ کسان    هم بادشاه دې ترې نګاه کړي سپاهان
چې لښکر دي کل دده دا رنګ کسان    دے دې دوې کاندي نګاه لهٔ دې ګمان

# وَمَا يَمْضِيْ عَلَى الدَّيَّانِ وَقْتٌ
# وَلَاحْوَالُ وَ اَزْمَانٌ بِحَالِيْ

---

[۱۸۵] مضي وايي تېرېدو ته په هر آن
او صفت د خداوند شولو ديان

او معنی د ه(د)ديا جزا ور کړو منکے
د مومن ته د ښکه دے د سود ننګ

حالت دا دے چې يو کس له يو صفت
کله وګرځي دويم ته ښک خصلت

او له حال ځنه تقديس دايم عيان
په حق نشته دے ګردش ځه د دوران

نه ګردش پرې د حالت نه د زمان شته
دا حالت کله د رب قادر سبحان شته

کله شي په موښ سبا بيا ورځ شي نيمه
بيا ببېګاه شي له ما واوره اې حکيمه

بيا په دا رنګ په موښ تېر شي ماه وسال
يا فلک وکړي ګردش په خپل خپل حال

پس خالق زموښ له نشته دا ځينزونه
نه ويل درله بايده دي له دې ګونه

چې په خدا ے شوې تېرې مياشتې ځوکلونه
بند وېل پرې د سبا د بېګا شونه

دا په دا چې دا د قتونه هم دوران
ګرځوي په مخلوقات باندې سبحان

پس د ه نه ګرځي دوران او ماه و سال
خبر دار شه ځان ساته له دغه خيال

دا په دا که ګرځېدے په ده دوران
ګرځو ونکے به يې بد خدا ے وه عيان

نور په دا ګمان کښې هم کفر تمام دے
پرې کافر به شي دغه ګمان دې خام دے

---

## وَمُسْتَغْنِیْ اِلٰهٍ عَنْ نِسَآءٍ
## وَاَوْلَادٍ اِنَاثٍ وَالرِّجَالِیْ

مستغني وايې هغه ته په معراج — چې يې نه وي وصېا ته احتياج

د الله معنی په دا رنګ دی معبود — د نسا معنی زنان شو په نمود

[۱۰۶] د اولاد معنی داغلي فرزندان — اناث ښځې د رجال (۴۳) معنی مردان

يعنې ښځې ته محتاج نه دی الله — که څوک وايې زوی د خدای يم شه آګاه

دغه کس به نو رکافر په دا ويلي (۴۴) — لکه خدای دي په قرآن کښې فرمايلي

## لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ

يعنې څوک ترې زېږېدلي نه دي چانه — او نه دی دی زېږېدلی د بل چانه

دا په دا که دده ښځه وی فرزند — نو ر صورت به هم دده دی لره څرګند

او صورت چې وايې خدای لره ظاهر — نو په دغه ويل باندې شو کافر

که يې ښځه وي نو ر دی به وي محتاج — خالق نه شي نه محتاج نه نا علاج

كَذَا عَنْ كُلِّ ذِي عَوْنٍ وَنَصْرٍ
تَفَرْدُ ذُوالْجَلَالَةِ وَالتَّعَالِي (۵)

---

د تفرد معنی ده پاکه پهٔ راحت جلالت لره معنی راغله عظمت
تعالی معنی بزرګ پروردګار یعنی خدای نهٔ دے محتاج تهٔ دویم یار
نهٔ خو ده له احتیاج شته د وزیر دے دے پاک لهٔ احتیاجه د مشیر
او صفه خدای خداوند د بنده ګي دے او لهٔ هر څیز نه برتر پهٔ برتري دے
څوک لهٔ ده نه دویم نشته دے برتر چې یاري به ترینه و غواړي اکبر

[۱۰۷] يُمِيْتُ الْخَلْقَ طَرًّا ثُمَّ يُحْيِىْ
فَيَجْزِيْهِمْ عَلَىٰ وَفْقِ الْخِصَالِ

---

موت وایي مرکېدلو ته اې یاره احیا بیا ژوندي کېدو وته هوښیاره
او د وفق معنی ده موافقت یعني رب قادر زمونږ پهٔ جلالت
مړ به کاندي همه واړه مخلوقات پهٔ قیامت به ورله بیا ورکړي حیات
چې تر ځمکې ، میږي ، چینجي به اې بنده زمونږ رب قادر مطلق کاندي زنده
پس لهٔ ژوند به د عمل پهٔ برابر دوئ ته ورکاندي جزا خالق اکبر
د نېکي جزا به بیا مومي نېکان د بدي پهٔ برابر باندې بدان
که منکر شو څوک لهٔ ژونده د قیامت شو کافر پهٔ دا انکار پهٔ دا ساعت

## لِاَهْلِ الْخَيْرِ جَنَّاتٍ وَنُعْمٰى
## وَلِلْكُفَّارِ اِدْرَاكُ النَّكَالِ

اهل خیر دي او نېکان او نیکبختان    هغه خلق دي چې دي اهل د ایمان
جنات وایي و باغونو ته تمام    نعمي وایي هغه ځیز ته د انعام
پیوستن وادره معنی ده د ادراک    نعمي وایي انعام ځیز ته وادره پاک
د نکال شوله معنی درانهٔ طوقونه    هغې سخت چې ترې نرم فولاد شونه
یعنې اهل د جنت له نعمتو سره    به خداے ورکړي چې یې نهٔ شي صفتونه
[۱۰۸] که اګر چې مثالات د دې نعمت    په دنیا کښې دي راغلي پهٔ زینت
خو مثال یې د رنګ • بو او د لذت    کله راغله پهٔ دنیا د حقیقت
پهٔ قیمت یې دا خبرې دي اثباتې    لهٔ دنیا پهٔ رنګ و بو مزه دي زیاتې
عذابونه درد ناک د کافرانو    هم طوقونه درانه سخت د مشرکانو
پهٔ دوزخ کښې به د دوئ ته درکاوه شي    لور په لور به جهنم کښې تړل داهه شي
لکه دویل نبی آخر زمان    د دنیا اور که دوزخ کښې دوزخیان
چرې بیا موږي پرې وبه کاندې خواب    امان غواړی پهٔ خالق لهٔ دې عذاب

## يَرَاهُ الْمُؤْمِنُوْنَ بِغَيْرِ كَيْفٍ
## وَاِدْرَاكٍ وَّضَرْبٍ مِنْ مِثَالِ

د رویت معنی نظر کول پهٔ سترګو    مومن وایي هغه کس وته اې بزرګو

چې دې کاندې په زبان باندې اقرار
او په زړه پرې باندې کاندې اعتبار

او چې راغلۀ په احمد رسول الله
حق او راست دې همګې داوره اې شاه

دایې کیف چګونګي دته هوښیاره
ادراک دایې پیوستن وته اې یاره

ادراک شو په دغه ځۀ هغه لیدل
چې حدود او جوانب او اطراف کل

[۱۸۹] وې لیدلې بیا موې دے هغه کس
یعنې بیا موې خالق دے خوش نفس

ضرب نوع مثال نظیر دے په هیٔت
په کوم وخت چې مومنان شي په جنت

دوئې به بیا موې د پاک خاوند دیدار
ښ او ښځې که غلام، آزاد وي یار

بې مثاله بې لۀ شکله بې مانند
بې نظیر به خالق وویني ځرګند

لکه في الحال بې مثال مانندۀ تل
بې تشبهې او بې نظیر شي پېژندل

او هغه کسان چې خداے لره مثال
یا مانند او نظیر وایي په هر حال

پرې یقین کا بې نصیب دے لۀ دیدار
په دوزخ کښې به پراته وي دا کفار

## فَيَنْسَوْنَ النَّعِيْمَ اِذَا رَاَوْهُ
## فَيَا خُسْرَانَ اَهْلِ الْاِعْتِزَالِ

---

د نسیان معنی ده هېر داوره هوښیاره
نعیم دې هغه څیزونه اې دلداره

چې ترې نفس د آدم موې لذت
د خسران معنی ده زیان په هر ساعت

اعتزال دایې ګوښه نیو وته یاره
دا په دا معتزله وو ته دینداره

وایه شي معتزله چې لۀ سنت
جماعت څخه ګوښه وي هر ساعت

یعنې هر کله چې داړه مومنان
دیدار وویني جنت کښې د سبحان

هسې رنګ به مستغرق شي په دیدار
چې جنت نعمت به هېر کړي په یو وار

[۱۹۰] او په داځ اشارت دے په دا شان | چې رب وويني جنت کښې مومنان

پر دغه ساعت به داړه شي بېهوش | کړي نعمت ، حورې ، براق به فراموش

مګر هېڅ به ترينه نۀ شي دا خپل ځان | دوئ به وايي مونږ يو هغه مومنان

چې خالق مو بې شبهې او بې نظير | په دنيا وۀ پېژندلے رب قدير

اوس مو بې شبهې نظير دے بيا موندلو | قدرشک بې پاتې نۀ شي د ليدلو

او چې ياد شو زيان کاران په دا ساعت | دے واهل اعتزال ته اشارت

نشته اهل اعتزال لره ديدار | دا په دا چې دوئ هم دي زيان کار

بلکه وي به لۀ کفارو په سقر دوئ | په قيامت کښې لۀ ديداره دي منکر دوئ

## وَمَا اَنْ فِعْلُ اَصْلَحُ ذُوْ اِفْتِرَاضٍ *
## عَلَى الْهَادِیْ الْمُقَدَّسِ ذِی التَّعَالِیْ

اصلح وايي وصلاح ته اې حکيمه | چې را دروي به يو شخص مستقيمه

هغه څيز باندې چې ويني پکښې سود | بيا د فرض معنی واجب شو له نمود

هادي وايي لار ښودونکي وته بس | په دا رنګ پاک دۀ معنی د مقدس

او برتر دۀ ترجمه د حق تعالیٰ | يعنې فرض واجب نۀ دي په مولا

چې دے ورسوي داړه بنده ګان | منفعت د دين دنيا ته په يکسان

[۱۹۱] هم بيا فرض واجب نۀ دي په سبحان | چې دي داړه بنده ګان کاندي نېکان

چې دے پاک او رضا دے هم برتر | هم غالب دے په هر وخت خالق اکبر

نۀ دۀ دا چې عوام وايي په دا شان | چې رب نه کړ څوي ولې مونږ نېکان

مونږ ثابت په سمه لار نۀ يايني ولې | دا ګمان د دوئ فاسد دے دايم دلې (۹)

دا پهٔ داچې پاک الله فضل وکرم — دا قدر پهٔ بنده وکړو مکرم (۸۰)

چې بیې سمه لار ددوئي ته کړه ښکاره — مرسلان او کتابونه ورسره

ولې نهٔ پهٔ خاوندانو دي لازم — چې به دوئي مخلوقات ګل هومره سالم

همېشه پهٔ سمه لار ثابت لرینه — لهٔ ما داوره اې مومنه له یقینه

خو دهٔ وسپارو د نېک و بد اختیار — هر چې کاندي دا بنده یې کړو مختار

او خالق پهٔ فضل خپل نېکي بدي — کړه روشن د بنده نه ابدي

او بنده شو د خپل کار صاحب مختار — چې څهٔ عذر ورله نهٔ وي بیا دوبار



## وَفَرْضٌ لَازِمٌ تَصْدِيقُ رُسْلٍ
## وَاِمْلَاكٍ كِرَامٍ بِالتَّوَالِىْ

---

دا تصدیق دے اعتقاد اوهم قبول — بل معنی ده له دې قسم د رسول

چې جبریل پر دهٔ راوړے دي کتاب — لهٔ جانبه د خالق قادر وهاب

[۹۷] د رسل ترجمه ګل پېغمبران دي — خواه نبیان دي اوکه خواه دوئي رسولان دي

نبي صفه دے لهٔ ما زده کړه جواب — چې راغلے پرې لهٔ رب نه دے کتاب

رسول صفه دته وایې با صواب — چې جبریل پرې لهٔ خاوند راوړ کتاب

د املاک معنی شوه ګل فرشتګان — او کرام عزیز بهتر شو پهٔ دا آن

او نوال تهٔ توال وایې هوښیاره — نور معنی یې پې درپے شوله اې یاره

او نوال که چرې تهٔ لولې پهٔ نون — نور عطا بخشش تهٔ وایې پهٔ نمون

یعنې فرض هم لازم او حق ګڼل دي — د جمله وو انبیاوو قبلول دي

که لهٔ یو پېغمبر څوک به منکر شینه — پهٔ دا پوه شه دا ساعت به کافر وینه

او هم فرض و لازم شو په هر انسان — چې ګڼي حق وراستګوي پېغمبران[٨١]

چې هسه واړه حق راست دي په نزول — هم دي فرض چې کړي احکام ددوی قبول

که له يو کلامه څوک د پېغمبر — شومنکر په دا ساعت به شي کافر

# مسأله

بل په دا رنګ مسأله ده د کتاب — معلوم نه دی د نبیانو دا حساب

چې ددوی څومره په حساب وو په شمار — ولې بعضې دغه قول وايي بسکاره

چې يو لک څلېريشت زره وو نبيان — بعضې وايي چې وو دوه لکه عيان

[١٩٣] ولې دا خبر صحيح دا غ موسوم — چې حساب د دوی مطلق نه دی معلوم

پس په هر وخت چې ايمان راوړي انسان — دی دي وايي له بلند قوله عيان

سا ايمان راوړو په کل پېغمبرانو — چې له حق نه نازل شوي دي يارانو

هم حساب د کتابونو نامعلوم دی — چې له حقه دي نازل حال يې مکتوم دی

د ايمان راوړو په وخت دي وېل کاندي — چې ايمان راوړم په کل کتبو باندې

په دا رنګ فرض و لازم او حق ګڼه دي — هم د هغو ملايکو پېژندل دي

چې په نورو بزرګان دي عاليشان — بزرګي ده پې درپې ددوی په ميان

لکه دا رنګ جبرائيل عليه السلام — دی په نورو باندې زيات په هر کلام

پس له ده نه نور ملک له يو تر بل — له ما داوره رب بهتر کړه هم افضل

اوس سوال که څوک ته لولي په نون — نور معنی يې په دا رنګ کوي نمون

چې بزرګي د ملايکو خاص عطا — هم بخشش دی د هغه باري مولا

په دوی باندې وشو فضل د رحمان — بزرګان شو خلاف نه ځي له فرمان

بل ته داوره هم په دا رنګي فرمان — چې ملکو څه راوړي له سبحان

پهٔ نبیانو همه کل درست وسم دي — لهٔ ما داوره مبرا لهٔ زیات و کم دي

هم تهٔ پوے شه هیڅ ملک نه شي غلط[۸۲] — پهٔ خپل کارکښې دغه حکم دے فقط

[۱۹۳] لکه بعض روافض وایي بې دیـد — چې پهٔ وحي کښې غلط شو جبرائیل

دے پهٔ لفظ د غلط کاندي منسوب — پهٔ غضب سره د حق دي دوئې مغضوب

بعضې وایي چې غلط شو عزرائیل — د فلانې ساه یې کړه قبض بې تعطیـل[۸۳]

په دا لفظ سره شي دوئې کافران — دا پهٔ دا چې دغه کل فرشتګان

پهٔ فرمان سره د حق کار له راځینه — دوئې کښې[۸۴] نشته دے غلط داوره امینه

## مسأله

---

د ښمنان که څوک ګڼي فرشتګان — پهٔ دا پوے شه چې پهٔ دا شي کافران

لکه دوایي یو کس هسې دلیـل — فلانے وینم زهٔ پهٔ شان د عزرائیل

کهٔ پهٔ زړهٔ کښې یې د ښمن ګڼي قاهر[۸۵] — پهٔ دا پوه شه چې پهٔ دا شولو کافر

دا پهٔ دا چې عزرائیل دے مقرب — هریو کار د رب پهٔ حکم کړي اغلب

که مرده پسې څوک ویره ژړا کړینه — یا پهٔ سر باندې به خاورې غورځوینه

یا ګریوان پاره پاره کاندي بخیـل — نور پهٔ دا رنګ ګفته وکړي عزرائیل

که پهٔ ما باندې غضب کړي داکسـان — زهٔ داځمه تل پهٔ امر د سبحـان

او که خدا ے باندې کوي دغه غضب — دا کسـان شو کافران پر دا سبب

---

[١٩٥]

## وَخَتْمِ الرُّسْلِ بِالصَّدْرِ الْمُعَلّٰی
## نَبِیٌّ هَاشِمِیٌّ ذِیْ جَمَالٖ

---

ختم وايي په دا رنګ ځينې آخرين ته
صدر وايي د ځينو نو اولين ته

او عليت و برتري د ته وېل شي
نبي هغه دے چي وحي پرې نازل شي

هاشم جد[٨٦] دے د احمد رسول الله
يعني ته له دې خبر نه شه آګاه

چي آخر دے له نبيانو په ظهور
اولين په مرتبه کړلو غفور

او دا هغه پيغمبر دے خوش خصال[٨٧]
چي اولاد دے د هاشم صاحب جمال

د ده نوم وه محمد عاليحضرت
پس له ده نشته دعوه د رسالت

که څوک پس له ده دعوه د نبوت کا
په تحقيق به ځان کافر په دا ساعت کا

که بل کس يې نبوت کاندي قبول
په تحقيق سره کافر شو دا مفعول

که د دواړو په کفر کړي څوک شک
هم هغه شولو کافر داوره بېشک

دا په دا ده يقين نشته يارانو
محمد نه ګڼي ختم د نبيانو

صدر هغه دے ته داوره په دا حين
چي دے وي په مرتبه بالا نشين

او دغه دے محمد آخر زمان
زر صلوٰته زر سلام په عاليشان

پس چي دے شو افضل[٨٨] له کل نبيانو
که څوک پس له ده دعوه وکړي يارانو

[١٩٦] چي زه يمه پيغمبر شولو کافر
دا په دا طاقت د هيڅ يو پيغمبر

نشته هومره چي به پس له ده حضرت[٨٩]
راشي وکاندي دعوه د نبوت

او منسوخ کاندي د ده دين شريف
نشته هيڅ نبي له دا قدر طاقت

او عيسیٰ که شو رابکته له آسمان
دے په شرع د احمد آخر زمان

هميشه لري روان کار و کردار
يو عالم بي[٩٠] له امت نه وي په شمار

ښې وادره اې عزیزه دا ساعت — چې خلاف له شریعته د حضرت

جایز نهٔ دي وعیسی ځوندې رسول ته — دغه هسې رنګ رسول د رب مقبول ته

بد یوکس چې به خلاف پکښې کوینه — دے کافر کافر دے لهٔ یقینه

## اِمَامُ الْاَنْبِیَآءِ بِلَا اِخْتِلَافٍ وَ تَاجُ الْاَصْفِیَآءِ بِلَا اِخْتِلَالٍ

چې یې ورو ستو اقتدا کېږي مدام — وهغهٔ ته تل د پاڼ شي امام

اصفیا وایې وغوره دته صاف — او خلل شو لهٔ معنی د اختلاف

یعنې دے احمد رسول داورځ یارانو — بې خلافه دے پېشوا د کل نبیانو

لکه نور نبیان پېشوا د مردمانو — محمد رسول پېشوا دے د نبیانو

دے سرتاج د انبیاوو د ټولګي[۹] — نهٔ ولي ورته رسېږي نهٔ نبي

[۱۹۷] حقیقت کښې که ولي دے که نبي — همه واړه هم ددهٔ کړي پیروي

## وَبَاقٍ شَرْعُهٗ فِیْ کُلِّ وَقْتٍ اِلٰی یَوْمِ الْقِیٰمَةِ وَارْتِحَالٍ

باقي هغه ورته وایې چې دراز — ثابت پاتې پهٔ دوران وي لهٔ آغاز

ده دا رنګ د ارتحال معنی رفتن — لهٔ دې سرائے د زنده ګئ نه پهٔ مردن

یعنې داورځی شریعت د پاک احمد ‌ ‌ ‌ تر قیامت پورې باقي به دي امجد[92]

که منسوخ شو شرایع د کل نبیانو ‌ ‌ ‌ ددې شرع نسخ[93] نشته دے یارانو

هر ژوندي له ان د مرګ تر ساعت ‌ ‌ ‌ کار دے فرض د احمد په شریعت

که څوک وایي زهٔ یم اهل طریقت ‌ ‌ ‌ کار مې نشته د احمد پهٔ شریعت

پهٔ تحقیق سره مردود شولو مردود ‌ ‌ ‌ دے مردود شولهٔ د ذکاه درب ودود

دا پهٔ دا بې شریعته د احمد ‌ ‌ ‌ نشته لاره چې شي مقبوله تر احد

لهٔ دې قسمه که څوک وایي دا ساعت ‌ ‌ ‌ چې زهٔ څه د احمد پهٔ شریعت

دویم کس وایي زهٔ ځم پهٔ دسم خپل ‌ ‌ ‌ دغه کس شولو کافر پهٔ دا ویل

روګردان لهٔ شریعته د احمد ‌ ‌ ‌ کافران دي، دي د حق لهٔ دره رد

دا عادت دے دکافر وتل تهٔ تله ‌ ‌ ‌ چې دوی[94] تلل کوي مدام پهٔ دسم خپله

پهٔ تحقیق سره سني دے مسلمان ‌ ‌ ‌ چې پهٔ شرع د احمد وي تل روان

## [۱۹۸] وَحَقٌّ اَمْرُ مِعْرَاجٍ وَصِدْقٌ

## فَفِيْهِ نَصُّ اَخْبَارٍ عَوَالِىْ[95]

---

حق هغه دے چې وي لرې لهٔ باطل ‌ ‌ ‌ او ثابت دلته مراد شو ترې کامل

ترجمه[96] دهٔ د معراج اندر پایه ‌ ‌ ‌ صدق راست وته وایه شي پهٔ دصیه

وایي نص و پېدا وارو ته څرګند ‌ ‌ ‌ پېې داوره شوه د عال معنی بلند

یعني حق دے راست او حق یې دي ګڼل ‌ ‌ ‌ دا معراج هم د حضرت احمد اکمل[97]

پر ثبوت یې احادیث دي پر مشهور ‌ ‌ ‌ د احمد صلوٰة الله ډک لهٔ نور

پس معراج چې د سرور دے د عالم ‌ ‌ ‌ دهٔ پهٔ ویښه نهٔ پهٔ خوب وهٔ مکرم

او پهٔ تن وهٔ نه پهٔ روح روهٔ ظاهر — او منکر يې لهٔ معراجه دے کافر
او چې بعضې عوام کاندي دا گمان — که بالا پهٔ عرش نهٔ وے رب سبحان
نور پهٔ شپه به د معراج احد احمد — نهٔ وه پورته خېژولې پاک احد
کافران پهٔ دا گمان شو دا ساعت — دا پهٔ دا چې رب له نشته دے جهت
ولیکن پاک خداوند غالب احکم — پيدا کړے دے هشتاد هزار عالم
پاک احمد يې پورته بوتلو پهٔ يو دم کښې — کوز[98] يې پېر[99] درکړ اتیا زره عالم کښې
او اتیا زره عالم ته خپل محبوب — ده ښکاره آخر زمان کړلو مرغوب[100]
[199] چې دغه دے محمد آخر زمان — هم يې دهٔ وته ښکاره کړو دا جهان
چې لهٔ بعضو مخلوقاتو د ستار — دے خبر شي هم خبر کړلو غفار
دې دپاره يې بالا بوتلو احمد — نهٔ چې باندې پهٔ عرش باندې وهٔ احد
معراج حق دے داحمد پرې مهٔ شه غلط — چې لهٔ زمکې و آسمان ته دهٔ خطے
بيا په دا يې بوتلو دے پهٔ عرش بالا — چې ثابت يې فضيلت شي پهٔ موسیٰ
چې معراج وهٔ د موسیٰ پهٔ کوه طور — د احمد معراج پهٔ عرش کړو پاک غفور

## وَ اَنَّ الْاَنْبِيَآءِ لَفِيْ اَمَانٍ
## مِنَ الْعَصْيَانِ عَمْدًا وَانْعِزَالِىْ

---

امان هغه دے چې نهٔ وي درله وېره — نهٔ خلل پکښې پيدا شي پرا دره
د عصيان معنیٰ گناه ده دايماً — نبت دا غلط د معنیٰ د عمداً
وانعزل وايي د منع يکسان — يعنې داوره همه کل پيغمبران
لهٔ صغير کبير عصيان وو پهٔ امان — نهٔ پهٔ قصد يې گناه کړې پهٔ هېڅ آن

هم پهٔ دا رنګ پهٔ امان وو کل نبیان لهٔ زوال د نبوته پهٔ هر آن
یعنې هېڅ یو پېغمبر لهٔ نبـوت پاک الله ایستلے نهٔ دے نېک خصلت

## مسأله

یعنې هېڅ یو پېغمبر پهٔ قصد ګناه نهٔ دہ کړې تهٔ پهٔ دا شه بنه آګاه
[۲۰۰] ولې بعض پېغمبر لهٔ کوم ساعت پهٔ ګناه صغیره پریووت بې لهٔ نیت
لکه څوک سړے پهٔ لاره کښې تېرېږي بې لهٔ نیت د دغهٔ کس خپه د ښوییږي
دا ذلت دے ګناه نهٔ دہ یم ناطق هم حکمت غامضه[۱] دے د خالـق
دا حکمت الٰهی دا هسې وینـه چې دا کار به البته دا هسې شینه
هم جاېزوو دغه کار پهٔ حقیقت چې دا کار به هسې شي پر دا ساعت

## مسأله

نبي نهٔ وځي پهر لهٔ نبوت ولې وځي پهٔ ګناه لهٔ ولایت

## وَمَا كَانَتْ نَبِيًّا قَطُّ اُنْثٰى
## وَلَا عَبْدٌ وَشَخْصٌ ذُوافْتِعَالٖ

د انثیٰ معنیٰ ماده عبد غلام دے افتعال هم پهٔ دروغ سره کلام دے

یعنې ښځه نبي نهٔ وه شه خبر — دا پهٔ دا چې دي لازم پهٔ پېغمبر
چې به خلقو کښې ښکاره ناسته کوينه — پهٔ هر دم کښې د حق دين بيانوينه
او دوانهٔ دے دا کار دادره اکثر — چې به ښځه بې لهٔ اذنه د شوهر
لهٔ خپل کور څخه بهر ووځي اې يار — او که ووځي پهٔ اذن اې هوښيار
نور پهٔ منځ کښې دې د خلقو نهٔ کښينه — نه دې څخ و مردمانو ته ښايينه
بلکه نهٔ دې کړي پهٔ لوے آواز خبرې — نه آواز دې د بل اوري نژدې لرې
[۲۰۱] لکه ښځه بيګانه ووته نګاه — نا روا دے هم آواز شه پهٔ آګاه
مګر اوري دے آواز پهٔ د ساعت — چې پېدا وي ورله ډېر ډېر ضرورت
پس معلوم شو ښځه نهٔ ده پېغمبره — نهٔ غلام پېغمبر شوے برادره
دا پهٔ دا چې دا همه پېغمبران — پهٔ صورت سيرت کښې زيات دي پهٔ جهان
پس که وے چرې نبي غلام کمين — دے به وه پهٔ دا مخلوق کښې کمترين
لهٔ دې قسمه دروغ ګونه وهٔ نبي — نهٔ صحيح يو نبي دروغ ويلي دي
نهٔ دروغ يې دي ويلي د دنيا — نهٔ دروغ يې دي ويلي د عقبا
دا پهٔ دا چې دي دروغ ګناه کبيره — نهٔ ده کړي دوی هرګز ګناه صغيره
او چې بعضې عوام دا وايي يارانو — پهٔ خريد او پهٔ فروخت کښې مرسلانو
دوی دروغ واوره ويلي وو اظهر — دوی پهٔ دا باندې کافر دي هم کافر

وَ ذُوالْقَرْنَيْنِ لَمْ يُعْرَفْ نَبِيًّا
كَذَا لُقْمَانُ فَاحْذَرْ عَنْ جِدَالِي

---

ذوالقرنين نوم د سلطان سکندر دے — نوم د پلار يې فيلقوس[۱۰۲] واوره اظهر دے

قرن شاخ دے د قرنین معنی دوه شاخ　　دے خاوند وو دوو شاخو صاحب کاخ

[۲۰۳] اومراد لهٔ دوو شاخونو دے آفتاب　　د مشرق او د مغرب پهٔ التهاب

واوره دوه مسلمانان د کل جهان　　دو شاهان یو سکندر بل سلیمان

دوه کافر وو یو نمرود[۱۰۳] بل بخت نصر[۱۰۴]　　چې جوړ کړے یې جنت وه پهٔ دا قصر

لقمان[۱۰۵] واوره دهٔ حکیم پهٔ خوے جمیل　　وهٔ ځوکند دے لهٔ اولاد د اسرائیل

نوم د پلار یې ده باعور معلوم پرے دے وهٔ　　هم دا رنګ د ایوب نبي خوریے وه

نبوت د سکندر عالي سلطان　　معلوم نهٔ دے هم پهٔ دا رنګ د لقمان

لهٔ دې دوو مسألو وکړه احتراز　　روا نهٔ دے کار د جنګ مهٔ کړه آغاز

نهٔ دې ځوک وایې ودوئې دوته نبیان　　نه دې وایې ځوک ودوئې ته ولیان

پس که ځوک یې نامه واوري شه آګاه　　نور دې نه وایې پهٔ دوئې رحمت الله

دا دعا تل اولیاوُوله عیان دي　　شاید دوئې نهٔ دي ولیان پیغمبران دي

نادوا رحمت الله پهٔ پیغمبر　　بلکه بعضې هسې وایې شو کافر

هم دې نه وایې درود د دوئې پهٔ شان　　شاید نهٔ وي دا کسان پیغمبران

او درود بې لهٔ نبي نهٔ دے روا　　بعضې وایې چې کافر به شي پر دا

پهٔ تفسیر مدارک[۱۰۶] کښې دي ورود　　چې پهٔ آل د پیغمبر تنها درود

علامات د روافضو دي جید[۱۰۷]　　لکه واوري ځوک سړے نوم د سید

[۲۰۴] دے پهٔ دا نوم باندې دوایې صلوٰة　　دغه دي د روافضو علامات

دا پهٔ دا درود هغه وخت شي واجب　　چې نامه د پیغمبر واوري طالب

چې پهٔ دا کېږي تعظیم ددغه نام　　خاص د نوم د پیغمبر علیه سلام

که درود بې د نبي لهٔ اسم وایي　　دغه کار به لهٔ تحقیقه نادوا[۱۰۸] یي

لکه رخت پهٔ بدکس ځوک خرڅوینه　　درود وایې دغه کار نادوا وینه

وَعِیْسٰی سَوْفَ یَأْتِیْ ثُمَّ یَتْوِیْ
لِدَجَّالٍ شَقِیٍّ ذِیْ خَبَالِیْ

---

عیسی زویه د مریم او پیغمبر دے — اتوي وایي هلاکت ته دا خبر دے
شقي وایي وبد بخت ته پهٔ دا حال — تباه کار واوره معنی دہ د خبال
یعني زردہ چې عیسی عظیم الشان — پهٔ آخر زمان به کوز[109] شي لهٔ آسمان
او بد بخت دروغجن غرس د جبال — کړي هلاک دین د احمد کا بل مثال
او عیسی چې شي راکوز دے به هر کار — کړي پهٔ شرع د حضرت احمد مختار
یو عالم لهٔ عالمانو د امت — دے به وي خاص د احمد عالیحضرت
هم بهٔ تلل کړي پهٔ مذهب خاص د نعمان — چې راضي دې وي لهٔ دهٔ حق سبحان
[۲۰۳] او پهٔ خپله شرع نهٔ به کړي عمل — چې منسوخه ددهٔ شرع ده اول

کِرَامَاتُ الْوَلِیْ بِدَارِ دُنْیَا
لَهَاکَوْنٌ فَهُمْ اَهْلُ النَّوَالِیْ

---

که یو څېز هم برخلاف لهٔ خپل عادت — پهٔ دعا دچا پیدا شي نیک خصلت
که داکس وي پیغمبر واوره امینه — نور دې څېز ته معجزه ویلې شینه
او که دا داعي[110] ولي[111] وي دا ساعت — نور دې څېزوته ویل شي کرامت
که کافر یا مبتدع[112] وي دغه کس — استدراج[113] وایي دې څېز ته دایم بس

او معنی د استدراج لهٔ حق دوري ده — را ښکاره ترینه د کفر ظهوري ده

پهٔ لغت کښې کرامت وايي ظهور ته — نوال وايي خاص بخشش د رب غفور ته

کرامت د اولیاوو پر جهان — ښکاره کېږي دوئ مونده لهٔ سبحان

مراتب ورته لهٔ خدایه حاصل شونه — چې خالق د دوئ ته کړي بخششونه

په تمهید کښې د سلمی ابو شکور — دي راغلي پهٔ دا رنګ سره مذکور

ولي هغه دے چې دهٔ ګناه کبیره — چرې کړې پهٔ دنیا نه وي اې پیره

اوکه وکړي کبیره لهٔ ولایت — دے بېرون شي لهٔ دې دم لهٔ دې ساعت

بیا راوړي پهٔ زودي ذوالبرکاته — که ګناه صغیره ډېره وکړي زیاته

هم به دے لهٔ ولایت نه شي بهر — بیا تمهید کښې یې راوړي برابر

[۲۰۵] صغیره ګناه که قصد سره کوینه — دا به هم د کبیرې پهٔ شانې شینه

که څوک کشف[۱۱۴] کرامت پهٔ دا هنګام — څوک ترې دعواړې پیدا کړي دغه خام

دغه نهٔ دے کرامت پهٔ شان دده کښې — دا دے مکر الهي پهٔ شان دده کښې

دغه کار ورته ویل شي استدراج — دے دا کس لهٔ روایت څخه اخراج

پهٔ دعا چې د فرعون[۱۱۶] علیه لعنت — رود منیل شو پیدا نهٔ وو کرامت[۱۱۵]

بلکه مکر الهي پهٔ شان دده وهٔ — پهٔ هر وخت کښې پېشوا شیطان دده وهٔ

پېشوایان چې د کفارو دي جوګیان — کشف ښایي استدراج دے پهٔ هر آن

پس هر کس چې مخالف لهٔ شریعت — یا ګفتار کا یا کردار کا بد خصلت

او څه کشف ترې ظاهر شي کوم ساعت — استدراج دے دغه نهٔ دے کرامت

استدراج وايي دوري ورته لهٔ حق — نا امید یې لهٔ رحمت دے مطلق

وَلَمْ يَفْضُلْ وَلِيٌّ قَطُّ دَهْرًا
نَبِيًّا اَوْ رَسُوْلًا فِيْ انْتِحَالِ

---

دهر وايي زمانې ته په هر حال — او بخښش ده ترجمه د انتحال
يعني واوره هيڅ ولي په هيڅ زمان — بهتر نه ده له نبي په درجه شان
هيڅ ولي لره بهره نه ده افضله — په نبيانو باندې واوره اې اكمله
كه ګمان د بهترۍ په ولي كړينه — په نبيانو دا سړے به كافر شينه
[۲۰۶] لكه بعضې جهال[رح] وايي دا نكات — چې زه ويم په خلوت كښې درب ذات
او مهتر موسى ليدلې وو صفات — په ما فضل دے درب له موسى زيات
كافران به شي په دا رنګې يقين — چې دا فضل د اله العلمين
په نبيانو باندے زيات دے هم كامل — له وليانو څخه دا وايي سايل
په دنيا كښې دخالق د ذات ليدل — روا نه دي كړه عمل پر دا ويل
په ليدلو د ديدار د پاک الله — د معراج په شپه د پاک رسول الله
علماوو توقف كړے مثبوت — دوئ اصح كړلو په دا كار كښې سكوت

وَلِلصِّدِّيْقِ رُجْحَانٌ جَلِيٌّ
عَلَى الْاَصْحَابِ مِنْ غَيْرِ احْتِمَالِ

---

ترجمه ده بهترې ددې رجحان — جلي وايي پيداوارو ته عيان

اصحاب وایي یارانو ته هر حال | شک را غلط ترجمه د احتمال
دے بې شکه خاص صدیق لهٔ فضیلت | پر همه دارو یارانو د حضرت
پهٔ تمهید کښې یې راوړے دے سالکو | پس لهٔ دارو انبیاوو ملایکو
بیا صدیق اکبر افضل پهٔ خلایق | پر همه دارو یارانو دے فایق
بیا فاروق له فضیلت راغے جلي | پهٔ عثمان ذوالنورین حضرت علي
هم پهٔ دارو اهل بېتو هر ساعت | پهٔ مخلوق هم پهٔ یارانو د حضرت
[۲۰۰] بیا عثمان له فضیلت درکړو اکبر | پر علي پر کل یارانو د سرور
بیا حضرت علي لهٔ راغے فضیلت | پر اصحابو اهل بیتو هر ساعت

## مسأله

پهٔ دا پوه شئ چې دوستي د چهاریارو | هم پهٔ دا ترتیب نکاه لرئ هوښیارو
پس څلور دارهٔ یاران که دغه کس | پېژني پهٔ مرتبه پهٔ دا هوس
ولې دوست ګڼي دے زیات حضرت علي | دغه کس دے رافضي هم رافضي
او درد الروافض[۱۸] پهٔ رساله کښې | دي راوړي پهٔ دا رنګ پهٔ سلسله کښې
چې یوکس سفیان ثوري ته وویل | علي نهٔ ګڼم لهٔ درې یارو افضل
مګر زیاته یې پر زړهٔ لرم دوستي | سفیان وې تهٔ رافضي یې رافضي

## مسأله

او صدیق ته صدیق وایي پهٔ دا شان | پهٔ دا وخت چې دهٔ راوړے دے ایمان

معجزه يې له حضرت نه کړه طلب ددهٔ صدق په حضرت وهٔ ډېر اغلب

درې يارانو چې ايمان راوړو عجب معجزه يې له حضرت کړله طلب

ابوبکر چې کوم وخت راوړو ايمان ملاقي شوله نبي آخر زمان

حضرت ووې چې زهٔ يم درب رسول کړ صديق په صدقنا صدق قبول

[۲۰۸] چې يې بې له معجزې راوړ ايمان کړ صديق ددهٔ خطاب آخر زمان

# وَلِلْفَارُوْقِ رُجْحَانٌ وَّ فَضْلٌ
# عَلَى الْعُثْمَانِ ذِی النُّوْرَيْنِ عَالِیْ

يعنې پس له ابوبکر نه اکثر داوره درورہ فضيلت دے د عمر

په عثمان ذوالنورين په کل يارانو هم په داړو مخلوقاتو سامعانو

د عمر نوم شو فاروق په دا عيان چې تر کوم وخته دے نهٔ وهٔ مسلمان

دو يوځ به کافران مسلمانان مسلمان لره قوت نهٔ وهٔ عيان

چې له ځانه کافران کاندې جدا دوګړه وو مسلمانانو کنبې پردا

چې امير المؤمنين حضرت عمر ايمان راوړ په احمد عالي سرور

تېغ يې وکښل له کفاروے وکړ جنګ (۱۱۹) له مکې نه يې بهر کړهٔ په دا رنګ

پس له هغهٔ به قوت موندهٔ اسلام ماتېدلو به د کفر کمر خام

چې تر تن ورځ دے دا غلط په دا شان فرق يې وکړ د اسلام کفر په مېان

# وَ ذُوالنُّوْرَیْنِ حَقًّا کَانَ خَیْرًا
# مِنَ الْکَرَّارِ فِیْ صَفِ الْقِتَالِ

ذوالنورین وایي عثمان وته مسرورو — دا پهٔ دا دے خداوند دو د دوو نورو

[۲۰۹] دهٔ دوه لونړه د احمد علیه سلام — پهٔ نکاح شرعي وکړې خوشخرام

رقیه، ام کلثوم دې پهٔ فلاح — چې وفاته رقیه شوه پهٔ فراح

نور یې بیا کړه پهٔ نکاح ام کلثوم — چې کلثوم شوله وفاته اے مرحوم

احمد ووې که مې بله لور وے یاره — پهٔ نکاح به مې درکړې وه هو بنیاره

کرار دے حضرت علي پهٔ بنهٔ زینت — یعنې زیات ذوالنورین پهٔ فضیلت

پر علي تل پهٔ جنګرېز د کافرانو — ډېر افضل وهٔ هم افضل واورئ یارانو

هم د دین پهٔ مرتبه هم پهٔ دنیا — هم پهٔ جنګ کښې د کفارو واوره دا

دهٔ بهتر پهٔ دلېري او پهٔ ظفر — لهٔ ما واوره پهٔ حضرت علي حیدر

پس معلوم شو چې پهٔ بعض جنګ کښې یاره — دلېري د علي ښکلې چا بسیاره

تصانیف د رافضیانو دي دا کل — چې سني دي هغه نهٔ کړي دا ویل

دا پهٔ دا چې خلفاء الراشدین — رب بهتر کړهٔ پهٔ دنیا کښې هم پهٔ دین

لکه دا رنګ بادشاهي او دلېري — یو لهٔ بل دو پهٔ لوي او په برې

پهٔ دوستی یې پهٔ دا رنګ شه پرې آګاه [۱۲۰] — پهٔ دا وخت هم پهٔ دا شان لره نګاه

## مسأله

پس که دوایي یو کس په دا حصول — دري یاران ذه په ترتیب لرم قبول

[۳۱] ولې حب مې له حیدره زیات پیدا دے — چې مې پلار یا مې استاد یا مې پیشوا دے

دغه کس دے رافضي هم رافضي — د حق دین دے له تحقیقه ناقضي[۳۲]

وَلِلْكَرَّارِ فَضْلٌ بَعْدَ هٰذَا
عَلَى الْاَغْيَارِ طُرًّا لَا تَبَالِيْ

د حضرت علي نامه شوله کرار — کرار هغه وته وایي شه هوښیار

چې په وړین حمله وړتله کوي په جنګ — د ه له جنګه له کفارو نه کړو څنګ

په دا پوه شه شو حیدر له فضیلت — پس له دري داړو یارانو د حضرت

پر اصحابو په مخلوق داوره بېشک — دے افضل دے په دا کار کنې مه کړه شک

## مسأله

دے مذهب دا د سنت د جماعت — په ترتیب کښه د څلور یار فضیلت

هم په دا ترتیب ته هریو ګڼه دوست — چې دې نه شي په دوزخ کنې ځړو پوست

مګر وایي روافض په دائ العین — چې علي او فاطمه ، حسن ، حسین

خپلخانه دهٔ د حضرت نبي سرور — دوئي پهٔ درې واړو يارانو دي بهتر
دوئي لهٔ نوردونه بايدګڼو دوستان — دوئي پهٔ دا سره مردود شو رافضيان
بيا داوړي دي پهٔ سير الاحکام — که دوستان څوک اهل بيت ګڼي تمام
[۲۱۱] لهٔ دې درې واړو يارانو شو کافر — بيا تمهيد ابو شکور وايي ظاهر
پهٔ آيت کښې کلام الله عيان — روافض ياد پهٔ کفادو کړه سبحان
يا چې وايي پهٔ پنج تن دولس امامه — دغه قول د روافضو دے نېکنامه
هم که دا رنګ يا دوي څورلس معصوم — يا پنځه فرقې او لس ګېسو معلوم
شو پهٔ دغو کلماتو روافض — دا پهٔ دا چې دا لفظونه مناقض
نهٔ آيات نهٔ پهٔ حديث کښې دي راغلي — نهٔ اصحابو د احمد چرته ويلي
نهٔ ويلي امامانو دي د دين — دا لهٔ ځانه روافض وايي لعين

## وَلِلصَّدِّيقَةِ الرُّجْحَانُ فَاسْمَعْ
## عَلَى الزَّهْرَاءِ فِي بَعْضِ الخِصَالِ

---

صديقه بي بي عايشې وته وايينه — چې دا لور وهٔ د صديق اکبر امينه
منکوحه دا د احمد عليه سلام وهٔ — علامه لويه د علم د اسلام وهٔ
زهرا وايي فاطمې بي بي ته ياره — چې وهٔ لور د شهنشاه پهٔ دواړه داره
يعني وهٔ د عايشې لهٔ فضيلت — پر بي بي فاطمې بعضې لهٔ خصلت
او مراد بعض خصلت دا دے عجب — که وي چرې فضيلت پهٔ لوے نسب
پهٔ عايشه څلور يارانو د حضرت — فاطمې به ډېر لرلو فضيلت
[۲۱۲] فضيلت چې پهٔ درجه کړو خداے د دين — نور بهتر شو خلفاء الراشدين

پر بي بي فاطمې باندې برادره | هم عایشه پهٔ فاطمې شوله بهتره
اوعایشې له ظاهري ، باطني دواړه | پاک الله علوم ورکړی وو هم غاړه
ده معلومه فضیلت د علم زیات دے | د نسب پهٔ فضیلت دغه اثبات دے
لکه دا رنګ دے حدیث د پاک حضرت | دهٔ و یلے دے د علم فضیلت

## شرف الانسان بالعلم والادب لا بالمال والنسب (۱۲۲)

هم کتب د عقاید داوري پهٔ نیت | چې لهٔ دوه ادیا تولیو د بدعت
دا کسان دي چې پهٔ ځان کوي غرور | نیک عمل غورځوي شاته پهٔ ضرور
پهٔ آیات کښې وایي پاک پروردګار | نیک عمل کړه ستا پهٔ ذات مې نشته کار

## فَاِذَا نُفِخَ فِی الصُّوْرِ فَلَآ اَنْسَابَ بَیْنَهُمْ یَوْمَئِذٍ وَّلَا یَتَسَآءَلُوْنَ (۱۲۳)

روافض چې فاطمه ګڼي افضله | پهٔ عایشه دغه ګفته یې ده باطله

## مسأله

عایشه وه تر شپږ کاله رسېد لې | وه دا پاک نبي حضرت زمونږ غوښتلې
[۲۱۳] د نهٔ کالو پیغمبر علیه سلام | کور ته داوسته هغه بدر تمام
د اتلس کالو وه چې کونډه شوله | پس چې بعضې جهال وايي اې عاقله

عایشه ده منکوحه هم د کرار — ولې پښه یې دهٔ له خپله ورکړه یکبار
پر علي شوله حرامه لهٔ دې کام — بیا نکاح کړه محمد علیه سلام
نور پهٔ دا یقین کافر شو لهٔ دې شانه — دروغ جوړ کړ روافضو لهٔ خپله ځانه
دوی پهٔ حق د عایشې وایي تهمت — هم پهٔ دا دلیل سره پهٔ دا هیئت
ښځه شي پهٔ شیر خوردن هله حرامه — چې یې طفل د دوه میاشتو وي نکاحه
یا وي کم له دوه شو میاشتو خوري پښه شیر — نور پرې دا ښځه حرام شي پهٔ تدبیر
که لهٔ دوه شو میاشتو یو ورځې کم زیات شي — څوک که پښه دوه دفعه ښځې خوري اثبات شي
پهٔ دا شیر خوراک پهٔ چا نهٔ شي حرامه — پهٔ کتبو کښې د فقه دي ښکنامه
پس پهٔ حق د عایشې بي بي تهمت — دا رنګ وایي روافض علیه لعنت
که پهٔ دا رنګ وي پهٔ دفعه شیر خوردن — پر علي نه شو حرام پهٔ دا فن
نور معلوم شو دروغ وایي ګمراهان — ولې نهٔ شی دا دروغ وید پنهان
بیا شه پوه ښځې د هیڅ یو پیغمبر — کړې نهٔ ده دا زنا اې برادره
هم نکاح داوره د دوو عیدو ترمیان — ښه روا ده که نکاح کاندي انسان
[۲۱۳] دا پهٔ دا بي بي عایشه ښه پهٔ فراح — حضرت دوو عیدو ترمیان کړله نکاح
چې نکاح د عیدو میان کښې کوي منع — دے مذهب د روافضو وکړه سمع

# وَلَمْ يَلْعَنْ يَزِيْدًا بَعْدَ مَوْتٍ
# سِوَى الْمِكْثَارِ فِى الْاِغْرَاءِ غَالِىْ

---

د لعنت معنی هم دا ده ښکخصلته — چې دے دور شي د خالق لهٔ ښه رحمته
مکثار وایي ډېر ویونکي ته اې یاره — چې خبرې بېهوده کوي بېشماره

د اغراء ترجمه دا ده په فروق  چې حريص کړي په يو کار باندې مخلوق

او د غال معنی هم دا ده له ما زده کا  چې په هر کار کښې يو کس مبالغه کا

يعنې يو اهل سنت او جماعت  په يزيد ويل نه دے دا لعنت

مګر وايي هغه کس چې دے بسيار  ويل کړي مبالغې کاندي بې شمار

او حريص کاندي مخلوق په هغې شان  چې لعنت په يزيد وايي په يکسان

يعنې هيڅ اصحاب لعنت نه دے ويلے  په يزيد چې له دنيا تخته دے تللے

نه لعنت پرې هيڅ امام کړے د دين[۳۴]  مګر هغه چې ډېر ګوے دے په يقين

يو ترېله کړي ښووته هر ساعت  چې تل وايي په يزيد باندې لعنت

پس مذهب دے د سنت او جماعت  چې راغلے کافرانو له لعنت

[۲۱۵] او يزيد نه (وه) کافر ده مسلمان  په ګناه نه کافر کېږي هيڅ انسان

بيا تمهيد کښې يې راوړي په رای العين  کافر مه وايه قاتل ته د حسين

په ګناه نه شي کافر څوک له هيڅ حاله  مګر هغه چې ګناه ګڼي حلاله

او چې بعضې روافض ليکی بدنيت  چې يزيد خپلخانه واړه د حضرت

کړ سر توره او خپې ابله کل روانه[۳۵]  او همه واړه يې بوتله تر زندانه

د حسين سر يې وهلو په چوګان  دغه محض[۳۶] دروغ وايي رافضيان

دا په دا چې د حسين قاتل يزيد  په قصاص د حسين قتل کړ پديد

بعضې وايي يزيد دولس سرداران خپل  په قصاص د حسين قتل کړه په ځان خپل

يزيد دوې ما ويلي دو دا رنګ  چې حسين ماله راولئ خوشرنګ

چې ظاهر کړمه زه حق د سلطنت  چې وچا ونه رسېږي دا ساعت

نه وه کړے حکم ما په دا سعيد  چې ورځئ حضرت حسين کانئ شهيد

# وَ اِیْمَانُ الْمُقَلِّدِ ذُو اِعْتِبَارٍ
# لِاَنْوَاعِ الدَّلَایِلْ کَالنِّصَالِ

تقلید هغه وته وایي چې یو کس — پیروي د بل سړي کړی پهٔ هوس
پهٔ رفتار او پهٔ گفتار کښې پهٔ تعمیل — هیڅ طلب ورځني نهٔ کړي د دلیل
[۲۱۶] مقلد پیروي کوونکی دے مشیر — نصل دے تېغ ونېزه خنجر[۳۷] و تیر
یعنې داورئ چې اکثر د امامانو — کړ ایمان د مقلد غوره یارانو
دلیلونه بنهٔ راغلي دي روښان — چې درست دي مقلد لره ایمان
دي روښان دا دلیلونه لکه تېغ — لکه وي تېغ بران[۳۸] بې زنګ و مېغ
یعنې دوه قسمه ایمان داوره رجد دے — یو ایمان دے مدلل بل مقلد دے
هم ثابت کښي احد لهٔ نبوت — حشر نشر هم ثابت کښي پهٔ نیت
یا هغه چې تعلق پهٔ اعتقاد کا — دلایل یې کړي معلوم او بنهٔ یې یاد کا
پهٔ حق والي پهٔ درستي یې کړي یقین — پهٔ ایمان درست امامان کښي د دین
پهٔ ایمان د مقلد دے اختلاف — بعضې درست بعض نادرست کړي پر خلاف
او ایمان د مقلد دا دے عیان — چې هم رب هم احدیت د پاک سبحان
یا ثبوت د نبوت د انبیا وو — مسایل د اعتقاد اې صلحاوو
پهٔ دلیل خپل کښې هرگز نهٔ پېژنینه — یا عالم یا د بل کس پهٔ ویل ځینه
لکه دا رنګ دي عوام د دې زمان — بعض نهٔ کښي مقبول دغه ایمان
که د دهٔ[۳۹] ته وسواس راچوي شیطان — یا گمراه ورته باطل وکړي بیان
مدلل دا چې کښي پهٔ گفت سکوت — ده هستي یګانګي د رب ثبوت
[۲۱۷] نور فی الحال پرې دهلهٔ خپله اعتقاده — رو گردان شي دا خبره لره یاده

او مومن چې مدلل لري ایمان | گمراه نهٔ شي لهٔ وسواسه د شیطان
که اگرچې شي بسیار باطل گویان | خاص لهٔ دهٔ سره مدد ☆ وي د سبحان
ولې دا روایت دے صحیح [۱۳۰] نزول | چې ایمان د مقلد دے بنهٔ قبول
تر هغه چې دے مضبوط پهٔ خپل باور وي | او که وگرځېده هغه وخت به کافر وي

## مسأله

پهٔ څلور قسمه تقلید راغ تمام | لهٔ ما واوره دے اول ☆ تقلید عام
دا تقلید پېغمبرانو ته سالم دے | بل تقلید د یو عالم لهٔ بل عالم دے
چې به یو عالم لهٔ بل نه عالم تر وي | یا پرهېزګنې دا تقلید هم معتبر وي
او دریم تقلید د عامو عالمانو | پرهېزګارو دا هم درست شولو یارانو
خو تقلید د هر عالم پرهېزګار | درست نهٔ دے پهٔ دا وکړه اعتبار
چهارم راغ تقلید د فرزندانو | چې تقلید کاندي اولاد پر پدرانو
یا تقلید کوي خوردان پهٔ کلانانو | دا تقلید د دوی درست نهٔ دے یارانو
خو هله چې یې پلاران او کلانان | د سنت جماعت اهل وي یکسان
چې دا رسم د کفارو دے پدید | کړي پلارانو، کلانانو ته تقلید
[۲۱۸] که دے نهٔ وي د سنت جماعت اهل | نو پهٔ دا تقلید کافر شو کار دے سهل

## مسأله

که یو شخص مسایل د اعتقاد | دلیلونو سره بنهٔ زده کړي هم یاد

خو پهٔ ذرہ پرې محکم نهٔ کړي اعتبار　　دغه کس مسلمان نهٔ دے دے کفار

دا پهٔ دا چې کل حکمونه د سبحان　　بهٔ قبول کړي هله درست يې شي ايمان

دے پهٔ تسو پېژندو با ايمان نهٔ شو　　فرعون تش پهٔ دا نستن مسلمان نهٔ شو

## وَمَا عُذْرٌ لِذِي عَقْلٍ بِجَهْلٍ
## بِخَلَّاقِ الْأَسَافِلِ وَالْأَعَالِي

---

خلاق دا يې پيدا کړونکي ته سايرو　　(۱۳۱) اسافل شولو عالم د عناصرو

لکه خاک و باد و آب شو هم آتش　　عال عالم دے د افلاکو داوده خوش

له آسمانه د دنيا نه آن تر عرش　　دا عالم دے د افلاکو فرش پهٔ فرش

عذر نشته عاقلانو له امينه　　چې خالق د عناصر نهٔ پېژنينه

هيڅ عاقل له عذر نشته دے څرګند　　چې به نهٔ پېژني دے خپل خداوند

او پهٔ دا عذر بهٔ خلاص شي لهٔ عذاب　　دا پهٔ دا چې عقل ورکړلو وهاب

دي بايده چې خاوند خپل و پېژنينه　　او احکام يې پهٔ زړهٔ ځان ښهٔ قبول کړينه

[۲۱۹] که غافل لهٔ پېژندلو د سبحان شي　　ګرفتار به پهٔ عذاب پهٔ دوه جهان شي

پهٔ قيامت نهٔ کړي دا عذر رب قبول　　که څوک خدائے وته دا عذر کړي فضول

چې يا رب نهٔ وم خبر پهٔ فايدو خپلو　　که خبر وے ما به نېک عمل کولو

نېک و بد نه خبر نه وم لهٔ هيڅ حينه　　دغه عذر پاک الله نهٔ قبلوينه

چې خالق دوې په خپل کلام مجيد　　ما مخلوق ته نبيان واستول پديد

چې سباله عذر نهٔ کړي څوک و ماته　　چې هادي زمونږه نهٔ وهٔ عالي ذاته

چې رب ولېږل نبيان او کتابونه　　عالمان لکه نبيان هاديان شو نه (۱۳۲)

دسوي د دين دنيا صونړ نه حکمونه　　پس لهٔ دوئي د جهالت نشته عذرونه
داپه داکه تا وي کړے دا طلب　　تهٔ به بوره وې حقيقت پهٔ خپلمطلب

## وَمَا اِيْمَانُ شَخْصٍ حَالَ بَأْسٍ
## بِمَقْبُوْلٍ لِفَقْدِ الْاِمْتِثَالِ

---

ترجمه شوله دباث عذاب شدت　　ياس لهٔ دې څخه شو مراد هغه ساعت
چې څوک ووينې عذاب سختي د خدای　　لکه مرې چرې کافر بې ايمان وای
څنکدن کښې وينې څه خپل پهٔ سقر　　که ايمان داوړي قبول نهٔ کړي اکبر
امتثال دے اختيار دلته حصول　　يعنې نهٔ دے د هغه ايمان قبول
[۲۲] هغه وخت چې عذاب وينې د قهار　　دا پهٔ دا چې دهٔ له نه وي اختيار
هر بنده چې دے پهٔ وخت د څنکدن　　بې اختياره شي بېهوش راځي مردن
عذاب ووينې پهٔ دا وخت د سبحان　　اوس کافر وي اوس داوړي به د ايمان
دا ايمان ددهٔ مقبول نهٔ دے مضبوط　　دا پهٔ دا چې دې ايمان کښې دا شروط
چې دے داوړي پهٔ اختيار خپل کښې ايمان　　دا ساعت ددهٔ اختيار نه دے د ځان
لهٔ گناه که توبه کاندي گنهکار　　پهٔ دا وخت د څنکدن کښې بې اختيار
که رضا شي د خالق کړي به قبول　　اوکه نهٔ وي پرې رضا شي نامقبول

---

# مسأله

بعضې کس چې کړي وېل د مرګ په آن ‌‌ ‌ چې ما ولیدلو څېز چنین چنان

نور په دا څېر سره ښه نه دے غرور ‌ ‌ بلکه کفر پکښې وایي په ضرور

دا په دا چې په دا حال باندې شیطان ‌ ‌ طلسمات سرې ته ښایي په شان شان (۱۳۳)

دا په دا چې له عذاب د دب ببغم شي ‌ ‌ پېش له نزع (۱۳۴) دا ارواح کفر ته سم شي

لکه حورې یا قصورې (۱۳۵) یا براق ‌ ‌ په دا رنګ پیر و استاد په دا اطلاق (۱۳۶)

یار و دوست ما در پدر ورته ښایینه ‌ ‌ صه واړه طلسمات د ابلیس وینه

او په دا حال که بنده بخرے اور ‌ ‌ یا به دے مار و لړم وینې په زور

[۲۲۱] نا امېد شي له رحمته د الله ‌ ‌ دا بنده به پرې کافر شي شه آګاه

دا په دا چې له طلسمه د شیطان ‌ ‌ خالي نه دے دغه کار په دغه آن

او دا کار وې هغه وخت پر دغه شان ‌ ‌ چې بنده وې لا په خود پېژني ځان

او په هر وخت چې بېهوشه بنده شینه ‌ ‌ بیا دده معاینه حقاني وینه

ولې نه شي نا امېد دے له جلیل ‌ ‌ که اګر له دده سختې کړي عزرائیل

## وَمَا اَفْعَالُ خَيْرٍ فِيْ حِسَابٍ
## مِنَ الْاِيْمَانِ مَفْرُوْضُ الْوِصَالِ

دا افعال دے عبادت ځان دې پرې هست کا ‌ ‌ وصال دا دے چې یو ځینله بل پیوست کا

یعنې نه دے نېک عمل دا وره جواب ‌ ‌ له ایمانه پیوست شوے هم حساب

عمل بېل او ایمان بېل دے لۀ یقینه — ایمان دادے چې خالق یو وګڼینه [۱۳۸]

پیغمبر آخر زمان ګڼي احمد — حق ګڼي پرې راستولے دے احد

چې پر دا کوي اقرار په زړۀ باور — دے بېشکه ایمان دار دے بختور

او عمل دے نمونځ روژه حج و زکوٰة — یا چې نور عمل صالح دے داوره زیات

ایمان دار که نېک عمل دے نۀ کوینه — دغه کار ګناه ګڼي مومن به ویته

او که وایي لۀ عمل څۀ دي حاصل — ترې منکر شي شو کافر دغه جاهل

او که دغه ایماندار کړي نېک اعمال — دے مومن دے متقي پر دا خصال

[۲۲۲] هم خداے ترسه هم لایق دے د جنت — رب دیدار به ورله ورکړي په فرحت

# وَلَا يُقْضٰى بِكُفْرٍ وَّارْتِدَادٍ
# بِعَهْرٍ اَوْ بِقَتْلٍ وَّاخْتِزَالٍ

د قضا دا ترجمه حکم کول دي — ارتداد پس لۀ ایمان کافر کېدل دي

او د عهر ترجمه زنا واغلې — اختزال هم پر ښکول د څیز دي دلې

او په دا ځے اختزال دۀ رهزني — یعنې مۀ وایه مومن ته اې سني

چې فلانے شولو کافر په دا زمان — یا دغه مومن مرتد شولو عیان

دا په دا که مومن وکړي زنا خون — یا به لار وهي کافر نۀ دے هیڅ ګون [۱۳۹]

مګر هله چې حلاله کړی ګناه — نور په دا به شي کافر نعوذ با اللّٰه

وَمِنْ يَنْوِارْتِدَادٍ بَعْدَ دَهْرٍ
يَصِرْعَنْ دِيْنِ حَقٍّ ذِيْ انْسِلَالِ

---

ارتداد صفهٔ ته وايي هر زمان — چې کافر شي يو سړے پس لهٔ ايمان
دهر وايي زمانې ته پهٔ هر حال — او بېرته داوتل شو انسلال
که څوک نيت کا چې به پس لهٔ څو آيامه — يا به پس لهٔ ماه وسال داوړنېکنامه
وعده کړي چې به مرتد کافر پهٔ نيت شي — دے مرتد هم بهٔ کافر پهٔ دا ساعت شي
دے کافر شي مجرد لهٔ خپل نيته — لهٔ دينْ حق وځي بېرته لهٔ دې ساعته
[٢٢٣] لکه بعضې عوام دا وايي عالمه — که ژوندے تر فلانې وخته پاتې شومه
زهٔ به دغه بدکومه پهٔ اظهار — دغه کس شولو بېشکه ګنهګار
يا وعده کوي دکفر کافر شينه — هم پهٔ دغه ساعت واوره لهٔ يقينه
يا به وايي کاشکې زهٔ اول زمان — وے کافر او پهٔ دا حال شوے مسلمان
نو پهٔ دغه لفظ هم به کافر شينه — لهٔ دې وخته لهٔ دې رنګه لهٔ دې حينه

وَلَفْظُ الْكُفْرِ مِنْ غَيْرِ اعْتِقَادٍ
بِطَوْعٍ رَدُّ دِيْنٍ بِاغْتِفَالِ

---

لفظ خبره اعتقاد ده هکي — طوع ويل شي اختيار ته پهٔ نرمي
ترجمه د اغتفال شولو غفلت — يعنې پوه شه پهٔ دا حکم دا ساعت

کلمه که به د کفر پهٔ زبان — پهٔ اختیار خپل سړه وایي مسلمان
که پهٔ کفر یې داکس نهٔ دے خبر — هم قایل ددې خبرې شو کافر
که اګرچې دا خبره پهٔ غفلت — لهٔ دې کس صادره شي پهٔ دا ساعت
یعنې څوک که لفظ دکفر پهٔ زبان — بې قبوله د زړهٔ ووایي انسان
ویل کا پهٔ خپل اختیار مرتد کافر دے — که اګر پهٔ نادانۍ ترې قول ظاهر دے
که اګرچې نهٔ پوهیږي پهٔ دا قول — کافر کیږم پرې کافر شو ولا حول
لکه دې دوران کښې خلق پهٔ ډیر ګویي — لفظ دکفر وایي دے پرې کافر شي
[۲۲۴] دے پهٔ کفر خپل خبر نهٔ دے بد فن — خو خبر به شي پهٔ وخت د څنکدن
چې کافر دم او ایمان مې شو برباد — نا خبره بې ایمان ومرې ناښاد
تمهید وایي هر سړے دې پهٔ څو بار — هره ورځ دا کلمات کاندې تکرار

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنْ اَنْ اُشْرِكَ بِكَ شَيْئًا وَاَنَ اَعْلَم بِهٖ اَسْتَغْفِرُكَ لِمَالَا اَعْلَمُ بِهٖ تُبْتُ عَنْهُ وَاَسْلَمْتُ وَاَقُوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدُ الرَّسُوْلُ اللّٰه

---

نور ایمان بې پهٔ تسلیم کښې پاتې شینه — اوکه داکس عربي نه پېژنینه
نور دې وایي دادعا پهٔ خپل ژبان — که فارسي، ترکي، هندي وي یا افغان
او فارسي کښې یې معنی دا ده عیان — چې توبه مې کړله زهٔ شومه پښېمان
لهٔ جمله ګناه لهٔ کفره لهٔ بدعت — پهٔ خطا وو اوکه ما کړي پهٔ نیت
کلمه طیبه دے دې پهٔ ژبان — پسې وایي چې لهٔ سر شي مسلمان
صفه کفر د غفلت د تا دانۍ — شي ناچیزه دے مسلم شي بیا سني
که کافر پهٔ مسلمان جبر کوینه — پرې د کفر کلمه پهٔ زور وایینه
اوکه نهٔ وایي نور وژني یې بدنیت — مسلمان دې زړهٔ کړي ټینګ پهٔ دا ساعت

دے دې لفظ دکفر ووايي ظاهر　　دے پهٔ دغه لفظ نهٔ شولو کافر

[۲۲۵]

## وَلَا يَحْكُمُ بِكُفْرٍ حَالَ سُكْرٍ
## بِمَا يَهْذِیْ وَيَلْغُوْا بِارْتِجَالِ

---

دا هذيان لغو سخن باطل ته وايي　　ارتجال سخن گفتن د جلدي نما يـي

يعنې حکم پهٔ جلدي مهٔ کړه پهٔ مست　　چې کافر دے کفر وايي پهٔ پهوست

پهٔ مستي که بېهوده مسخره کړينه　　پرې دکفر حکم مهٔ کړه لهٔ دې حيثه

مست صفه دے چې دهٔ څښلي وي شراب　　او مستي پرې بانديې کړے وي شتاب

دهٔ ته مهٔ وايه کافر ونيسه گوش　　اوکه دے شولهٔ مستهٔ څخه پهٔ هوش

بيا پهٔ دغه کلماتو شي کافر　　کلمات که ترې د کفر شي اظهر

اوکه دے لهٔ بېهوشي نه پهٔ هوش شينه　　کلماتو نه د کفر منکر ويـنـه

نور پهٔ دا ساعت کېنې دے نهٔ دے کافر　　لهٔ زبانه يې اسلام شولو اظهر

## مسأله

---

که يو مست لهٔ مستي ښځه کړه طلاقه　　ښځه شوه پهٔ دهٔ طلاقه لهٔ اطلاقه

# وَمَا الْمَعْدُومُ مَرْئِيًّا وَشَيْئًا
# لِفِقْهِ لَاحَ فِی یُسْنِ الْهِلَالِ

فقه هم فهم ته وايي پهٔ لغت — ترې دليل دلته مراد دے دا ساعت

لاح ظاهر يمن برکت دے لره خيال — نوې مياشتې ته ويلے شي هلال

[۲۳٦] يعنې واوره چې دا کل واړه څيزونه — چې پيدا هم لهٔ مطلق نيستي نه شونه

نيستي نهٔ ده هسې شيئ داوره اظهر — چې وجود لري يا راشي پهٔ نظر

دا خبره شوه ظاهره پهٔ دليل — پهٔ برکت د ماه نو کښې بې تعطيل

يعنې دا دليل ظاهر شو هم روښان — لکه نوې مياشت ښکاره شي پهٔ آسمان

پهٔ برکت خپل کښې ظاهره وي روښانه — پټه نهٔ وي لهٔ نظر د هر انسانه

پس پهٔ دا رنګه دليل نهٔ دے پنهان — پهٔ برکت تر نوې مياشتې دي روښان

يعنې خدائے چې دا مخلوق کړې واړه بود — پهٔ ازل کښې څه څيز نهٔ وهٔ پهٔ وجود

چې هرشان ترې دا خلقت پيدا کړو حق — څو پيدا يې لهٔ نيستۍ کړو مطلق

او چې بعضې کتابونه ذکر کړينه — چې خالق کړه مرغلره پيدا سپينه

حق الله پهٔ دې نظر کړ د هيبت — دا شوه ويلې آب و دود شوه داساعت

نور لهٔ دوده يې پيدا کړه آسمانونه — او لهٔ آب نه يې پيدا کړهٔ زمکې غرونه

ولې دغه دړ زموږ نه حق تعالیٰ — کړ فقط پهٔ مجرد د کُنْ پيدا

نور پيدا يې کړه ترې زمکې آسمانونه — دا ټوله پيدا نهٔ وهٔ خوشمونه

# مسأله

د الله ترجمه دا ده غوږ په دا کا چې له نیست مطلقه هست مطلق پیدا کا

[۲۲۷] وَغَيْرُ اِنِ الْمُكَوَّنُ لَا كَشَيْئِ (۱۴۲)
مَعَ لِتَكْوِيْنِ خُذْهُ الِاكْتِحَالِي (۱۴۳)

تکوین فعل د باری دے داوره یاده
هم ده پیدا کول ای هوښیاره
دا صفات فعلیه د خالق دینه
مکون و پیدا شوي ته واپینه
مکون او دا تکوین دواړه جدا دي
مغیر په خپل صفت کښې واوره دادي
نه دي دوئ په شان د هسې څیز ای یاره
چې به عین یوله بدګډ وي هوښیاره
او دغه عقیده ته لره نګاه
چې د دین تر کمال ورسې ای شاه
یعنې داوره چې تکوین او مکون
نه دي یو سره ته پوه شه ولکن
بلکه دا تکوین دے فعل د خاوند
فعل ته دے له فاعل جدا په بند
مکون وایي مخلوق دته د خدائے
او مخلوق له خالق بیل دے په دا رائے
ته شه پوه لکه دے ذات د رب قدیم
صفات هم دي قدیمي د رب حکیم
پس تکوین صفت قدیم دے د مولا
مکون دده مخلوق نو دے پیدا
نور قدیم له نو پیدا نه دے یکسان
اوچې وایي دا رنګ بعضې ګمراهان
چې مونږ فعل شو د خدائے یو خدایان
دوئ بیشک کفر ثابت کړلو په ځان
دا په داچې مونږ خالق کړلو پیدا
پیدا څیز له پیدا کړونکي وي جدا

[۳۳۸] شو کافر چي څان په خداے ستایي ګمراه    امان غواړه له دې قول نعوذ بالله

# وَفِي الْأَذْهَانِ حَقٌّ كَوْنُ جُزْءٍ
# بِلَا وَصْفِ التَّجَزِّي يَا بْنَ خَالِي

ذهن دا دے چي په نړه لري څه یاد    او د حق معنی ثابت ده پر مراد
یعني داورئ چي په عقل د هوښیارو    ده ثابت هغه ذره داورئ دیندارو
چي له دغې ذرې نه شي یو او دوه    بیا ددې دپاره یاد شوه دا ذره
چي خالق د پرې ذرې کړلې پیدا    چي ترکیب کړم ترې اجسام جدا جدا
پس سنت او جماعت وایي تمام    چي ترکیب شوله ذرو واړه اجسام
یو ټولے فلاسفه چي ګمراهان دي    له ذرو څخه منکر په دغه شان دي
وایي دوئ چي شو ترکیب واړه اجسام    په دا شان له هیولا[۱۴۳] څخه تمام
په دا قول د دوئ کښې کفر دے عیان    هیولا به دراندې کړم درته بیان

# وَفِي الْأَجْدَاثِ عَنْ تَوْحِيدِ رَبِّيْ
# سَيُبْلَى كُلُّ شَخْصٍ بِالسُّؤَالِ

اجداث جمع د قبرونو ده اې یاره    او توحید یګانګي د حق هوښیاره
هم توحید وایي ایمان ته په هر حال    یعني داورئ په قبرونو کښې به سوال

د يو والي د الله شي د نص چا نه    په دا سوال به گرفتار شي داوره جانه

[۲۲۹] منکران له دغه سوال دي کافران    د درې ځينو سوال به کېږي له انسان

له اول به تر ېنه کاندي دغه سوال    اې بنده خاوند دې څوک دے وايه حال

که مومن دي نور به دوايي انسان    چې خالق دکل جهان مې دے سبحان

بيا پوښتنه به ترې کړي د پېغمبر    نور مومن به جواب ورکړي دلاور

پېغمبر مې دے احمد آخر زمان    بيا دريم سوال کړي د دين فرشتگان

دے به وا يي چې پاک خداے په پاک احمد    راستولي ما قبول کړه په خپل حد

نور ملک به وايي خوب کړه په راحت    لکه نوې ناوې کړي په فراغت

روح يې يوسي و سما ته دا ساعت    د ده گور يوه روضه[۱۳۵] کړي د جنت

که بنده کافر مشرک وي کړي بيان    رب مې تا سو يئ چې کړئ دا نه پوسان

په دا وخت منکر نکير[۱۳۶] گورز آتشين[۲]    آن[۲] په سر کړي داگوزار ددې لعين

روح يې يوسي د دوزخ ته وايي وخ    هم يې قبر يو کوے کړي د دوزخ

## ﷻ وَلِلْكُفَّارِ وَالْفُسَّاقِ بَعْضًا عَذَابُ الْقَبْرِ مِنْ سُوْءِ الْفِعَالِ

---

د کفارو او د بعضې فاسقانو    به عذاب وي په دا گور کښې مومنانو

وي لازم عذاب د قبر په کافر    همېشه چې دے په گور کښې وي ابتر

[۲۳۰] خو جمعه او په عيد ښو په رمضان    له عذابه څه خلاص شي کافران

بيا چې دا ورځې شي تېرې په شتاب    په کافرو بيا جاري کړي رب عذاب

يو بخشش چې گنهکار مومن ته وکا    بيا تر ورځې د قيامت يې عذاب نه کا

پهٔ قیامت دهٔ بیا رضا د پاک الله　　که یې نیسي که بخښي یې کل ګناه
که یې دنیو نور پهٔ قدر د ګناه　　به عذاب شي بیا به ځي جنت ته شاه
لهٔ جمعې که شوهٔ رونبجه شپه د اختر　　هم عذاب لهٔ دهٔ نه پورته کړي اکبر
او که راغله پرې اوله شپه د رمضان　　هم عذاب لهٔ دهٔ نه پورته کړي سبحان
دے حدیث لهٔ محمد، احمد، محمود　　چې پهٔ ګور کښې هر کافر له پاک ودود
نه نوي اژدها غټې راواستوینه[۳۴]　　تر قیامت به یې پهٔ نېش باندې وهینه
هسې نېش که ووهي پرې جبال واره　　شي به ویلې، لکه موم څوندې هم غاره

# مسأله

لهٔ عذاب او لهٔ ثواب که څوک د ګور　　د مرده شولو منکر کافر دے تور

# مسأله

روح د هر یو مسلمان پهٔ دېرش کاله　　پس لهٔ مرګه راځي خپلوله برحاله
پهٔ لس کاله راځي هر مسبا ماښام　　بیا لس کاله د جمعې پهٔ شپه تمام
[۲۳۱] بیا لس کاله دوئ پهٔ شپه د هر اختر　　ځي راځي تر اقربا وو برابر
که یې خپل پهٔ آب و نان او پهٔ دعا　　سره یاد کړي دوئ خوشحاله درومي بیا

وَ اِنَّ السُّحْتَ رِزْقٌ مِثْلَ حِلٍّ
وَ اِنْ یُنْکِرْ مَقَالِیْ کُلَّ قَالِیْ [۱۴۸]

---

سحت حرام او رزق هغه څیز دے پهٔ رفعه — چې مدام ترې مخلوقونه اخلي نفعه
دا مقال وپلې او قال ګوینده شولو — یعنې واوری پهٔ درستې سره عاقلو
چې حرام رزقونه شته دي پهٔ دنیا — پرجو سه کښې دي حلال غوندې پیدا
که اګر ترې منکران دي ګمراهان — چې حرام رزقونه نشته پهٔ جهان
رزق هغه څیز ته وایي دا جاهل — چې یو څیز پهٔ کسب خپل کاندي خپل
حرام دا چې یې لهٔ کسبه نهٔ وي نان — دغه رزق ګڼي ګیاه د بیابان
پهٔ خوراک ثواب، عذاب یې نه ګڼینه [۱۴۹] — پهٔ دا قول سره کافر شي لهٔ دې حینه
لهٔ آیاته د قرآن منکر دغه دے — بیا سنت جماعت وایي رزق هغه دے
چې لهٔ حلقه د انسان تېر شي تمام — خواه حلال وي دغه رزق که حرام
که حرام تېر کړي تر حلقه رزق یې شینه — ولې دے به معذب شي لهٔ یقینه
لکه زهر و خوري څوک رزق یې شولو — ولې دے به پرې هلاک شي اې عاقلو

حِسَابُ النَّاسِ بَعْدَ الْبَعْثِ حَقٌّ
فَکُوْنُوْا بِالتَّحَرُّزِ عَنْ وَ بَالِیْ

---

[۲۳۲] شوه د بعث ترجمه واوره ژوندون — حرز څه شولو پناه لهٔ دې مضمون

وبال وایي و گناه ته پهٔ دا باب　　یعنې واورئ حساب حق دے د وهاب

پهٔ قیامت به لهٔ مخلوق کاندي آغاز　　پس مدام کرئ لهٔ گناه نه احتراز [150]

د حرامو به ذره ذره حساب　　لهٔ تا وشي هم به تهٔ شې پرې عذاب

دا ذره واوره حصه ده څلویښتم　　لهٔ دانې نه د خشخاش پوه شه محکم

هم شوه صد و پاو [151] دهم حصه د جو [152]　　اې مومنه احکام زده کړه نو به نو

که پهٔ دا قدر حرام حلال گڼینه [153]　　شي کافر که نهٔ گڼي عذاب به شینه

شي پهٔ قدر د حرام خوراک عذاب　　بیا به لاړ شي و جنت وته کامیاب

د حلالو د حبې [154] حبې حساب　　هم به وکاندي لهٔ دهٔ سره وهاب

چې دا رزق د حلالو پهٔ شمار درکړو ماخدائے　　تاسو شکر کړو ددې نعمت په ځائے

خرڅ موکړ د دهٔ قوت پهٔ عبادت　　او که خرڅ مو پهٔ گناه کړ پهٔ بدعت

او حبه څلور د شپږ مه حصه یاره　　د روپئ ده پهٔ دا پوه شه تهٔ هوښیاره

نقل کړي چې د څلور څیزو حساب　　نهایت سخت و دشوار دے بې حساب

اول دا دے چې پهٔ تن دي سړے درست　　او دښمن به نه لوي دغه کس سست

بل چې تل د سوري لاندې خوب کوینه　　بل چې دے یخې او به هښته څښینه [155]

[233] بل چې تل به د غنمو خوري نانونه　　نو د پهٔ ځان باندې به گران کړي حسابونه

دي حدیث کښې که یو کس حصه دریمه　　د روپئ لهٔ چا پهٔ زور واخلي عالمه

پهٔ قیامت کښې به پنځه نمونځه مقبول　　لهٔ ظالم نه و مظلوم ته کړي حصول

د ظالم که نهٔ وو دا قدر نمونځونه　　خدائے به ورکړی د مظلوم کل گناهونه

دے د پاره د مظلوم به شي عذاب　　دا دے عدل هم دے داد د پاک وهاب

## وَيُعْطَى الْكُتُبُ بَعْضًا نَحْوَ يُمْنىٰ[١٥٦]
## وَبَعْضًا نَحْوَ ظَهْرٍ وَالشِّمَالِ

دا کتب وارهٔ اعمال د بندهٔ دینه — چې نېکي بدي لیکلې پکښې وینه

پهٔ قیامت به د عمل نامې اخلي يارهٔ — بعضې راست بعضې پهٔ چپ واخلي هوښيارهٔ

ولې دست چپ به مات کا د کافر — هم پهٔ بېرته به يې شاته کړي يکسر

هم مومن له به پهٔ ښي لاس ورکوينه — چې اعمال خپل نېک و بد کل ووينينه

هم شي پوه چې ګناهان صغير کبير — پهٔ دا رنګ شوي لهٔ ما غوندې حقير

چې نېکي ويني پرې دے به شي خوشحال — پهٔ ليدلو د ګناه به شي ملال

د کافر عملنامه هلته د ياس — ورکول شي لهٔ دې رنګه پهٔ چپ لاس

ملايک به د دوئې مات کړي ګردنونه[١٥٧] — هم بې وګرځوي شا وته مخونه

چې د دوئې عمل د کفر د الحاد — هم افعال زنديقيه هم د فساد

يا به کړله بندهګي دوئې د بتانو — هم يې سپک وېل نزول ته د نبيانو

[٢٣٤] هم عمل پکښې خپل وويني د دين — دوئې شي پاتې پهٔ غمونوکښې غمګين

هم شي پوه چې پس لهٔ دې نشته بنادي — يو پراتهٔ به پهٔ دوزخ کښې ابدي

## وَحَقٌّ وَزْنُ اَعْمَالٍ وَجَرْىٌ
## عَلَى مَتْنِ الصِّرَاطِ بِلَا احْتِمَالِ*

وزن وايي وتللو ته عيان — او مراد لهٔ وزنه دلته دے ميزان

میزان تله متن شا شوه له یقینه — صراط لاري ته وایه شي له هر حینه

او په دغه ځي صراط دے هغه پول — چي په پشت د دوزخ دے ، دے تړول

چي باریک دے له ویښته تېز دے له تېغ — جنتیان به پرده تېر شي بېدریغ

پرې لغزېږي به اقدام (١٥٨) د دوزخیانو — ترې به پرېوځي د دوزخ ته سامعانو

یعني حق او راست باید ګڼه تلل — په قیامت د بنده ګانو عمل کل

هم دي حق په قیامت تلل په صراط — هر مومن به سلامت ځي پر نشاط

## مسأله

که د چا په بدي زیات شو نېک عمل — نور بې (١٥٩) وبخښي خالق په فضل خپل

که نېکي ، بدي شوه دواړه برابر — هم رضا ده د هغه خالق اکبر

بیا به دے په شفاعت د شفیعانو — یا په فضل خپل بې وبخښي یادانو

یا بې (١٦٠) وساتي ځو وخته په اعراف (١٦١) — یا بې (١٦٢) ولېږي جنت ته وایم صاف

[٢٣٥] که بدي یې له نېکي شوه زیاده — په دوزخ به شي عذاب په ځو موده

که یو شخص له حرام او له حلال — یا له لوستو د کتبو دا اعمال

یا دا رنګ د عملونو له تللو — یا په دا رنګ د قیامت له حساب کړلو

یا دا رنګ له تېریدلو د صراط — شو منکر شولو کافر بې احتیاط

نقل دے بعضي صالح نېک مومنان — د صراط په پول به تېر شي هم شان

له صراط او له دوزخ به هیڅ خبر — قدرې نه شي دا مومن داوره اکثر

بعضي ځے به لکه وي تېز روه سور — بعضي ځے به د پیاده تېز روپه زور

بعضي ځے به هسې شان په صراط بر — لکه دروند بار چي چا ایښے وي په سر

په انداز د خپل عمل به هریو کس — په صراط باندې تېرېږي خوش نفس

اوکه غرق وي په ګناه کښې دايم وخ — يا کافر وي شي به پاتې په دوزخ

او صراط له موے باريک له تېغه تېزدے — له شپې تور له اوبو نرم په آمين دے

و لېکن که ګنهګار دۀ يا ايمان — په دوزخ به نۀ شي پاتې تر پايان

له دوزخ به وجنت ته شي درون — کافر نۀ شي له سقر چرې بېرون

## وَ مَرْجُوًّا شَفَاعَتُ اَهْلِ خَيْرٍ لِاَصْحَابِ الْكَبَائِرِ كَالْجِبَالِ

کباير دي واوره ته ګناه کبيره — يعنې دا اميد ور وړل دي اې فقيره

[۳۶] شفاعت ته د نبيانو عالمانو — په دا رنګ تر شهيدانو بزرګانو

شفاعت به دوئي کوي د ګنهګارو (۱۶۳) — که اګرچې ګناه ډېره لري يارو

له دې غرونو که صغير دے که اکبر — او منکر له شفاعت نه دے کافر

## مسأله

شفاعت د نا بالغو هلکانو — داوره حق دے چې به کړي د پېدانو

مورو پلار به له خالق عالی بېچون — دوئي وغواړي له دوزخ به کړي بېرون

# مسأله

دغه اوښکې تويول ژړل چې باب دي ‌‌ ‌ ‌ د اولاد په مرګ مباح، بلکه ثواب دي (۱۶۴)

او جامې شلول او چغې څخ وهل ‌ ‌ ‌ ‌ دا حرام په شريعت دي تل ته تل

نقل کاندي چې دا بعضې ګنهکار ‌ ‌ ‌ ‌ غلطيده شي و دوزخ ته ناقرار

اوربه دوی باندې حملې کړي دشتاب ‌ ‌ ‌ ‌ ملايک به دوی له داوړي قدرې آب

پرې بې ولې اوربه دور شي ترې يکسان (۱۶۵) ‌ ‌ ‌ ‌ دوی به وکړي ملايکو نه پرسان

چې دا څه اوبه دي اې ملکو بزرګو ‌ ‌ ‌ ‌ دوی به وايي دي اوبه ستاسي دسترګو

چې په مرګ کښې د اولاد مو تو‌ېولې ‌ ‌ ‌ ‌ مونږه دا اوبه (۱۶۶) تر اوسه وې ساتلې

چې په دا حالت کښې ستاسو شوې په کار ‌ ‌ ‌ ‌ پس معلوم حال د ژړا (۱۶۷) شو په دا دار (۱۶۸)

[۲۳۷] هر ژړا چې مخالف له شرعې (۱۶۹) نه وي ‌ ‌ ‌ ‌ نور په دا ژړا ژړل به وا‌وره ښه دي

هره ښځه چې په مرګ د اقرباوو ‌ ‌ ‌ ‌ په بلند آواز ژړل کا صلحا وو

يا جامې شلوي او څخ، (۱۷۰) وايي اوخ ‌ ‌ ‌ ‌ پاک الله به پرې در خلاص کړي د دوزخ

نوحه ګره ښځه قبر کښې چې بږدينه ‌ ‌ ‌ ‌ نور دا څخ ددې قبلې نه ګرځوينه

## وَلِلدَّعْوَاتِ تَاثِيرٌ بَلِيغٌ
## وَقَدْ يَنْفِيهِ اَصْحَابُ الضَّلَالِ

د بليغ معنی تمام ده په تدبير ‌ ‌ ‌ ‌ يعنې د دعا کولو له تاثير

ګمراهان نفي کوي دغه تاثیر — او تاثیر دے د دعا قبلیدو پیر
مسلمان که په روزګار خپل د دنیا — یا د بل چا په روزګار کښې داوره دا
یا په نفع او ضرر کښې د انسان — دعا کاندي قبلوي یې رب سبحان
پس دعا مه ترکوه داوره صوبښیاره — یو مسلم که بل مسلم مړي دپاره
دعا کړي یا خیر صدقه به ورکوینه — نو ثواب یې پاک الله دو چنده کړینه
چې داعي له هم مرده لره بس شینه — بیا قبول نه د دعا چې منکر دینه
نه دعا کړي و مرده ته نه خیرات — منکران یې له ثواب څخه دي زیات
[۲۳۸] ګمراهان او مردو دان[۴۱] شو دوئ په دا — عقاید و کښې احکام یې دے پیدا
دا په دا که په دنیا باندې کافر — دعا وکړي ، کړي قبوله یې اکبر
لکه وغوښت ابلیس عمر له سبحانه — تر میثاقه[۴۲] به ژوندے وي بې ایمانه
د فرعون په دعا ګوره چې جلیل — رب په مصر کښې پیدا کړ رود نیل

## مسأله

که دعا خیرات په مړه کافر کوینه — په تحقیق دغه الله نه قبلوینه
که اګر چې د کافر په حق دعا — اولیا کړي یا به کاندي انبیا
لکه د ابو طالب[۴۳] په حق دعا — احمد وکړه خو قبوله نه شوه دا

## وَدُنْيَانَا حَدِيْثٌ وَالْهُيُوْلٰى
## عَدِيْمُ الْكَوْنِ فَاسْمَعْ بِاحْتِذَالِىْ

---

حديث نوے پیدا شوے دے یارانو ‌ ‌ ‌ هیولا پهٔ قول د بعضې ګمراهانو
هغه څیز دے چې بل څیز ترېنه راست شینه ‌ ‌ ‌ احتذال خوشحال کولو ته واییه
یعنې هرچې پهٔ دنیا یاکه دنیا ده ‌ ‌ ‌ قدیم نهٔ دي کارخانه یې نو پیداده
هیولا بایده دي ته ګڼه نابود ‌ ‌ ‌ داخبره داوره تهٔ شه پرې خوشنود
فلاسفې چې دے هیولے د ګمراهانو [١٧۴] ‌ ‌ ‌ وایي دوئې پهٔ دغه شان څهٔ بنهٔ یارانو [١٧٥]
لکه خدائے چې قدیمي دے اې حکیمه ‌ ‌ ‌ پهٔ دا رنګ پارچه د ختې ده قدیمه
[٢٣٩] لهٔ هغې ختې مخلوق کړو رب پیدا ‌ ‌ ‌ هغې ختې ته دوئې وایي هیولا
کافران پهٔ دا ویل شو دا ساعت ‌ ‌ ‌ چې قدیم دے یو الله پهٔ حقیقت
بې لهٔ حقه هریو څیز دے نو پیدا ‌ ‌ ‌ دب پیدا لهٔ نیست مطلق کړله دنیا
هریو څیز پهٔ مجرد دکن حکیم ‌ ‌ ‌ را پیدا کړلو هغه خالق حکیم
چې قدیم ګڼي بل څیز غیر لهٔ الله ‌ ‌ ‌ شو کافر نعوذ بالله دغه ګمراه

## وَلِلْمَوْتَاتِ اَسْبَابٌ كَثِيْرٌ
## وَمَا لِلْعَدِ فِيْهِ مِنَ الرِّجَالِ

---

دا موتات داوره لهٔ مانه دي مړګونه ‌ ‌ ‌ یعني مرګ دپاره ډېر دي اسبابونه

لکه قتل د سړي زهر خوړل    یا دا رنګ له بلندي نه پرېوتل
نه حساب یې دے ممکن او نه یې شمار    چې د مرګ سببه څو دي ، دي بسیار
خو هر کس له یو سبب چې مړ شینه    په دا ځین ددهٔ اجل راغلے وینه

## وَمَا الْمَقْتُولُ مَقْطُوعٌ لِاَجَلٍ
## سِوَاىَ مِنْ عِنْدِ اَصْحَابِ الضَّلَالِ

مقتول هغه چې قتل کړي انسانان    او اجل دایې مهلت وته عیان
لهٔ اجل مراد مهلت دے دا ساعت    چې خداے ورکړلو ژوندو لره مهلت
تر هغه چې دا مهلت را ورسینه    دا ژوندي به په دا وخت کښې مړه شینه
که څوک مړ د چا د لاسه شي اسبهل[۱۷۶]    په دا نهٔ شي بریده ددهٔ اجل
[۲۴۰] یعنې دا مهلت چې رب کړو مقرر    نهٔ شي زیات او نهٔ شي کم وي برابر
دے په دا ساعت اجل ددهٔ راغلے    ځکه دے ددهٔ د لاسه شو وژلے
چې مېږے پورته کوي ګوره قدم    دا اجل دا قدر نه شي زیات و کم
بلکه مړ په دا ساعت کښې شي انسان    ولې وایي لهٔ دې رنګه ګمراهان
که مړ نه کاندي یوکس دویم انسان    ځلوښت ورځې وي لا ژوند ددهٔ د ځان
په دا قول سره کافر دے هم کافر    بیا دغه ګمراهان دا وایي اظهر[۱۷۷]
چې مقطوع شي اجل د شیخ و شاب[۱۷۸]    کشنده څهٔ له لایق شي د عذاب
جواب ورکړه کشنده لهٔ دې جهته    شي لایق دے د عذاب په دا ساعته
چې اجل د یوه کس دا ورسینه    البته به حق الله دے ووژنینه
پر بنده نهٔ دے واجب چې دیو کس    اجل راشي نور به وژني دا نفس

چې دے ملک او تصرف د کردګار
او بنده یې کړ مدام فاعل مختار

پهٔ اختیار خپل سره خون کوي ناحق
چې داخون پهٔ دهٔ واجب نه وهٔ مطلق

پرې لایق شو دعذاب داوره نکات
دے دغه بېت داوره تهٔ نهٔ ملحقات [۷۹]

## وَلِلْجَنَّاتِ وَالنِّيرَانِ كَوْنٌ
## عَلَيْهَا مَرَّ اَحْوَالٍ خَوَالِيْ

---

[۲۳] جنات جمع د جنت نېران دے اوره
کون هستی احوال کلونه دي اې دروره

خوال تېره زمانه بنایي نمود
یعنې هر جنت دوزخ دي اوس موجوُد

پرې کلونه دي تېر شوي بې حساب
پرې خبر نهٔ دے بل څوک بې لهٔ وهاب

چې لهٔ کوم وخته پېدا کړهٔ رب سبحان
ولې وایي لهٔ دې رنګه ګمراهان

چې جنت او دوزخ نهٔ دي پېدا شوي
پس لهٔ دې به پېدا کېږي داوره نوي

شوهٔ پهٔ دا خبره باندې کافران
دا پهٔ دا چې پهٔ آیات کښې د قرآن

جنتونه دوزخونه دي پېدا
کافران دي چې به لاړه نیسي دا

## وَلَا يَفْنَى الْجَحِيْمُ وَلَا الْجِنَانُ
## وَمَا اَهْلُوْهُمَا اَهْلَ انْتِقَالِ

---

دا جحیم نوم د دوزخ دے لهٔ یقینه
او دا اهل کسان سراے(و) ته وایینه

چې داخل شي په جنت کښې جنتيان — هم داخل په دا دوزخ شي دوزخيان

د جنت دوزخ فنا نشته ديندارو — نه يې اصل له فنا شته دے اې يارو

جنتيان به په جنت کښې وي مدام — دوزخيان به په دوزخ کښې وي دوام

ولېکن دا ګمراهان هسې وايينه — په هر وخت چې جنتيان په جنت شينه

او دوزخ ته شي درون هر دوزخي — هر جنت به له خپل اصل شي فاني

هم دوزخ به له خپل اصله فاني شينه — په دا قول باندې مطلق کافران دينه

[۲۴۲] چې آيت کښې د جنت دوزخ مېمونه [۸۰ل] — له خپل اصله فنا نشته له هيڅ ګونه

دوی منکر دي له آياته د قرآن — دي بېشک په دا خبره کافران

## وَ ذُوالْاِیْمَانِ لَا یَبْقٰی مُقِیْمًا
## بِشُؤْمِ الذَّنْبِ فِیْ دَارِاشْتِغَالِ

شوه د دار د اشتغال معنی سقر — يعنې مرچې ايماندار شي نېک اختر

په سبب به د ګناه په جهنم — پاتې نه شي په دوزخ کښې دا مسلم

په سبب څوک د ګناه نه شي کافر — نه به پاتې همېشه شي په سقر

مګر هغه چې حلاله کړي ګناه — او حلال ګڼل يې دادي شه آګاه

ګناه وکړي وايي ما وکړل حلال — يا په دا کښې ګناه نشته په هيڅ حال

يا به وايي چې دا کل داړه څېزونه — رب پيدا زمونږ دپاره کړه خوشګونه

چې دا نه کړو نو به څه کړو مونږ آزاد — فخر کړي چې ګناهونه کړي خپل ياد

چې لفظونه د ګناه کړي پر زبان — پرې خوشحال شي په دا وخت کښې دا انسان

يا په زړه کښې خوشحالي باندې کوينه — يا د بل په ګناه دے خوشحاله شينه

پهٔ دا کل داړو خبرو مسلمان — کافر کېږي پناه غواړه لهٔ سبحان

پهٔ حدیث کښې دي راغلي د سرور — پهٔ گناه سره مومن نهٔ شي کافر

خو کافر شي چې گناه وگڼي خواره — او خواري د گناه داده اې هوښیاره

[۲۴۴] نهٔ توبه کړي لهٔ گناه نهٔ پښېمان شي — نهٔ په وېره لهٔ قادر غالب سبحان شي

پس ددې زمانې داړه گنهګار — نه وېرېږي لهٔ خپل پاک پروردګار

نهٔ د زړهٔ پهٔ اخلاص ددې توبه کوینه — دا عجب چې به ایمان سلامت وړینه

بلکه ډېر کسان گناه گڼي حلاله — لکه خرڅ اصیلان کړي لهٔ هر حاله

لکه مړ کړي مسلمان یا مال یې خورینه — یا زنا شراب کړي یا یې وهینه

او حلال گڼي کافر شي پرې مطلق — پر دوی نمونځ د جنازې مهٔ کړه ناحق

خو هله که دوی توبه ایستلې وینه — دي مړ شوي جنازه دې پردهٔ کړینه

## لَقَدْ اَلْبَسْتُ لِلتَّوْحِيْدِ نَظْمًا
## بَدِيْعَ الشَّكْلِ كَالسِّحْرِ الْحَلَالِ

---

دا توحید یګانګي ده هم ایمان — بدیع صفه څېز چې نوي شي عیان

یعني وایي مصنف چې علم کل — د توحید د پېژندو د خالق خپل

ما د نظم پر لباس دوې تمام — هم د علم د ایمان واړه احکام

شو ملبوس[۱۸۱] پهٔ قاعده د شاعرانو — عقاید علم ایمان اې عالمانو

هسې نظم چې خوشرنګ نوي پیدا دي — دي همه د هدایت او د هدی دي

چې پهٔ هسې قاعده پهٔ نظم یاره — نهٔ وي کړي چا پخوا لهٔ ما هوښیاره

دا خوشرنګ شعر چې سحر دي حلال — لهٔ غایت لطافت نه پهٔ هر حال

[۲۴۴] چې به دوه کلامه یو کړي پیوسته | شاعران یې لهٔ میزان کاندي بسته

ګویا سحر شاعران کړي پهٔ خپل کام | دا حلال دي نور سحرونه دي حرام

لکه دا قول د شاعر دے درته وایم | دهٔ فارسی ویلے زهٔ پهٔ پښتو نمایم

هر سړے چې یو کلام لهٔ دوویم ضم کا | نور به څاڅکي د ځیګر لهٔ خونه کم کا

هم تهٔ پوه شه ترجمه د سجع کړمه | سجع وایي هغه څیزوته عالمه

چې پیوست دوه کلمې آخري شینه | هم پهٔ دوه کلامه واوره لهٔ یقینه

یا منثور او یا منظوم پهٔ حرف آخر | لهٔ ما واوره دغه سجع ده ظاهر

او پهٔ علم د بدیع کښې سجع یاره | پهٔ یوولس قسمه داغله هوښیاره

اول دا پهٔ فهم دے مصرع اول | د دوېم پهٔ تعلیق کاندي اکمل

دوي نوع تصریع تعلیق دے واوره تام | پرې مثال بیت د پښتو دے واوره تام

له محنت که مې خلاصے موبي ځیګر | یو نظر به پهٔ ما وکړي سیمین بر (۱۸۲)

شو پهٔ عرف کښې دا نوع سحر حلال | پس شاعر دوي کتاب به واوره قال

اشارت کړے ودې شعر ته وینه | پهٔ قاعده د شعر او ولهٔ یقینه

دغه سحر دے حلال پهٔ دا طریق | پښې بله مسأله ده پهٔ تحقیق

چې پهٔ بعضې سحر کړلو کافر شینه | او پهٔ بعضې کافر نهٔ شي لهٔ یقینه

[۲۴۵] چې پهٔ سحر مسلمان موبي ضرر | دا ساحر قتلول غواړي پهٔ خنجر

که سړے وي دا ساحر او که وي زن | لکه بعضې ښځې شته پهٔ دا وطن

چې مردي تړي دا ښځې د مردانو | د دوئ قتل دے روا اې سامعانو

دلې خلاصه ده لهٔ مرګه دا فضوله | که توبه کړي دا توبه یې کړئ قبوله

او پهٔ شان که د فرعون د ساحرانو | جوړ لهٔ پرې مار لړم کاندي یارانو

خلق یې خدائے ګڼي کافر شي پهٔ دا حال | د دوئ قتل دے روا پهٔ دا افعال

بې د شعر لهٔ دې سحر شو معلوم | نښته بد سحر حلال واوره موسوم

اې مومنه شه لهٔ کلا سحرونو دور | چې په کفر کښې پرې نهٔ وځې ضرور

چې پهٔ حب کښې د دووکسو سحر کړینه اش وایې پرې کافر شو لهٔ یقینه

## يُسَلِّي الْقَلْبَ كَالْبُشْرٰى بِرُوحٍ
## وَيُحْيِي الرُّوحَ كَالْمَاءِ الزُّلَالِ

شوه معنٰی د یسلی دلته بېغم د بشرٰی معنٰی ده زېرے پهٔ دا د م

روح راحت او آب خوش وایم زلال یعنې ماکړه دغه نظم پهٔ دا حال

هم پهٔ حق د اعتقاد د اسلام دین چې بېغم شي باندې قلب المؤمنین

لکه زړهٔ د چا بېغم شي هم خوشحال پهٔ مژده د خوشحالۍ واوره نېک فال

[۲۴۶] پهٔ دا رنگ لکه پهٔ بنو اوبو اې یاره حیوانات گیاه ژوندهٔ شي اې هوښیاره

ژوند د روح راحت د روح دے اې امینه بې راحته ژوند لهٔ مرگه بتر وینه

ژوندے شمېره کهٔ مړه وي پهٔ راحت لکه دا رنگ دي راغلي پهٔ آیت

چې شهید ته دې مړه څوک نهٔ وایینه بلکه دے دي پهٔ هر وخت ژوندے گڼینه

آب خوش صفه اوبه دي د حیات چې یې څښي لهٔ بنه رغبته حیوانات

او که دا اوبه گیاه ته ورسینه تازه تره پرې گیاه ولاړه وینه

او ترخې اوبهٔ هرگز نهٔ څښی حیوان هم گیاه پرې باندې سوځي پهٔ هر آن

چې مسلم دا کتاب لولي واوره تام ترې معلوم کل اعتقاد کړي د اسلام

پهٔ احکامو د اسلام شي بسهٔ آگاه بېغمې یې لهٔ خاطره شي همراه

لکه زېرے پهٔ چا وشي د راحت د دهٔ زړهٔ باندې بېغم شي دا ساعت

مسلمان چې دے سني او پر فروح زما نظم به ژوندے کړي د دهٔ روح

او چې دا اعتقاد ونه کړي معلوم زړهٔ د دغه کس خوشحاله شي مفهوم

نادانې نه کړي نهٔ کفر نهٔ الحاد　　نهٔ بېرون شي د اسلام لهٔ اعتقاد

## مسأله

[۲۴] حقيقت د روح کښې ډېر دے اختلاف　　بعضې وايي روح عَرَض دے وايم صاف[۱۸۳]

يعنې نشته دے دجود روح له امينه　　اوقايم دې همېشه پهٔ غيرو وينه

بعضې وايي روح جسد صاف نوراني دے　　اکثر قول د عالمانو هر آني دے

خو سنت جماعت وايي وايم تاته　　حقيقت د روح معلوم نهٔ دے دچاته

نهٔ ملک نهٔ پېغمبر ته بې لهٔ خدايه　　پس اطلاق پهٔ حقيقت د روح مهٔ وايه

اوکه کړې پکې خبرې شو حرام　　او حرام حلال گڼل کفر دے تام

فَخُوضُوا فِيْهِ حِفْظاً وَ اِعْتِقَاداً
تَنَالُوا جِنْسَ اَصْنَافِ الْمَنَالِيْ[۱۸۴]

پر اوبو دي ننوتل د خوض معنی　　ننوتل هم پر خبره داوره دا

پهٔ دا رنگ دے د خبرو پېوستن　　يا تېولے شي يو لهٔ بل سره يکتن

نال مونډلو رسېدلو ته وايينه　　د منال معنی بخشش دے لهٔ يقينه

يعنې دا نظم لطيف زما محکم　　داړه زړونه به لهٔ غم کاندي بېغم

دا کتاب اهل اسلام کړئ داړه ياد　　هم پرې راشئ پهٔ نظر د اعتقاد

دا خبرې کړئ ترې يادې پېوسته　　اعتقاد يې پهٔ زړهٔ تل لرئ بسته

چې رنګ رنګ ډېر بخښونه د بېچون[۱۸۵]      د عطا د رب لايق شي ګوناګون[۱۸۶]

[۲۴۸] يعنې دا کتاب کړي ياد په اعتقاد      هم باور پرې باندې ډېر کړي لوی ياد

چې دا ډېر بخښونه بې شماره      په تا وکاندي له فضله کردګاره

لکه دې جهان کښې دد يې کړ ايمان      په عقبىٰ باندې به دد کاندي جنان[۱۸۷]

شي له تاسو به احد، صمد راضي      بيا پسې دا مسأله واوره قاضي

دا عوض له اعتقاده دادے ياره      چې يادداشت بې اعتقاده دے بېکاره

که څوک ياد جمله علوم د شرع کاندي      دلايل عقلى[۱۸۸]، نقلى کل لاندې باندې

ياکړي ياد تفاسير داړه د قرآن      نه دے دے بې اعتقاده مسلمان

که له علمه ناخبرو[۱۸۹]، يو انسان      ولې دا اقرار کوي دے په زبان

چې اسلام مسلماني کړه ما قبوله      او بېزاد يمه له کفره له فضوله

هم په زړه کل عقايد دے د اسلام      کړي قبول دے مسلمان شو واوره تام

که مسلم سني دغه کتاب کړو ياد      دے مومن مطلق چې کړي پرې اعتقاد

اوکه نه شي يادولے دا کتاب      نو دباور دې باندې کاندي له هر باب

هم له کفره له الحاد او له بدعت      دے بېزار شي شو مومن له دې ساعت

که قبول کل عقايد کړي د اسلام      اوله يو شولو منکر کافر دے تام

# مسأله

---

[۲۴۹] عقايد که د اسلام مني ظاهر دے      او له کفره بېزار نه شولو کافر دے

که قبول کل عقايد کړي د اسلام      شي منکر له عقيدو د کفر تام

خو دوا ګڼي د کفر يو خبر      دے کافر دے هم کافر دے برابر

هم دوا که به يو کار د کفر کړينه      دے کافر دے هم کافر دے له يقينه

که د کفر یو خبره یا یو کار — په غفلت په ناداني وکړي یو وار

یا به کار وړل د کفر پر مذاق[۱۹۰] کا — ځان کافر به په دا دواړه په اطلاق کا

## وَكُونُوْ عَوْنَ هٰذَا الْعَبْدِ دَهْرًا
## بِذِكْرِ الْخَيْرِ فِيْ حَالِ ابْتِهَالِ

---

عون مراد یاري ورکړونکي ددې باب — او له عبد نه ناظم ددې کتاب

مناجات شو له معنی د ابتهال — چې خپل رب وته زاري کړي په هر حال

د سنت جماعت اهل شیخ[۱۹۱] و شاب[۱۹۲] — معتقد په عقیدو ددې کتاب

چې زما ودې کتاب ته کړ خپل لې — عقاید کړي داړه یاد دغه ښکلي

کړم اسید چې دوئي له ما وکړي یاري — چې خالق ته په دعا شي په زاري

ما دې هم کاندي په نیکه دعا یاد — چې ماهم له دوئي یاري وکړه او داد[۱۹۳]

عقاید مې کړه کل نظم د اسلام — چې په کار یې شي په دین دنیا تمام

[۲۵۰] هم په دا رنګې شارح[۱۹۴] ددې کتاب — التماس کړي له مومن نه په دا باب

چې دوئي یاد کړله د شرحې فواید — او ترې یاد یې د اسلام کړه عقاید

چې یې رب له خجالت په دوه جهانه — په امان کړي له وسواسه د شیطانه

هم په دا رنګ یې کوهر د ینه ایمان — په امان له شیاطینو کړي سبحان

هسې ماهم مصنف کل مومنان — ایماندار بوځي خالق له دې جهان

هم دغه فقیر حقیر د دوئي غلام — چې یې دا کتاب پښتو کړلو تمام

پابوسي د هر مومن ته دے دلشاد — خاص مریې د عالمانو خانه زاد

کړي یې شمار له بنده کانو نه احد — کمین چې دے د کوځې د پاک احمد

(۱۹۵)

آزاده شو پهٔ دغه بیت العتیق د احمد لهٔ رفاقت محمد رفیق
مشرف دې رب لهٔ دوئې کړې پهٔ دیدار هم رضا شه تر ېنه پاک پروردګار

# لَعَلَّ اللّٰهُ يَعْفُوهُ بِفَضْلٍ وَيُعْطِيهِ السَّعَادَةِ فِي الْمَآلِ

مآل ځ د بازګشتن دے پهٔ خپل نیت دلته مراد ترې ځنکدن دے یا قیامت
چې دې دوه ځایونه داوره هر انسان البته کوي بازګشت پهٔ خپل آن
سعادت ده نیکبختي پهٔ دغه آن یا مراد دلته جنت دے یا ایمان
[۲۵۱] یعنې تاسو دا بنده که مومنانو پهٔ دعا نیکه کښې یاد کړئ صالحانو
نور شاید چې لهٔ زواله د ایمان دا بنده کاندي نګاه قادر سبحان
دا پهٔ دا چې هغه خدا ے خالق اکبر مومن ته داکړو د ایمان عالی ګوهر
او ایمان دے اعتقاد کول تمام همګي پهٔ عقایدو د اسلام
پس چې اهل د سنت جماعت شینه دا ایمان به ورله څهٔ رنګې نهٔ وینه
مسلمان سني دې نهٔ کړي دغه سوال چې اې خدایه ایمان راکړه پهٔ دا حال
بلکه سوال دې پهٔ دا رنګ کړي مسلمان چې اې خدایه لهٔ ما مهٔ اخله ایمان
چې سنت او جماعت له ایمان وینه سعادت دلته مراد لهٔ بهشت شینه
او مآل شولو مراد لهٔ قیامت نور(معنی)(یې)خبرېي دا رنګ پهٔ زینت
چې خدا ے ورکا دې بنده لره جنت پهٔ دا ورځې د میزان د قیامت
د دې دوه ځیزد معنی چې کرم اظهار ترې غرض حل د ترکیب دے پهٔ هر بار
او که نشته ایماندار لره جنت بې ایمان لهٔ جنت نشته نهٔ راحت

# مسأله

دا ایمان مجمل په حق کښې د عوام
په دا شان دے په دا دود او په ایام

چې خدائے یو گڼي په شناخت هره خبره
مخالف له شرع نه کړي برادره

[٢٥٢] پیغمبر گڼي احمد آخر زمان
او چې پس له دې دعوه کاندي انسان

چې نبي یم ورته دے وایي کافر
او هم حق گڼي کلام د رب اکبر

مخالف دین له قرآنه له احمده
دے مردود گڼي بیزار وي ترې اسعده

پس له مرگه ژوندون حق گڼي میمونه
هم گڼئ حق جنتونه، دوزخونه

او افعال، اقوال د کفر نه کوینه
له دې قسم مسلمان دے له یقینه

که افعال، اقوال د کفر کړي ظاهر
دا ساعت به پرې کافر شي هم کافر

وَاِنَّ الدَّهَرَ اَدْعُوکِنَهٗ وَسُعَی (١٩٦)
لِمَنْ بِالْخَیْرِ یَوْمًا قَدَّدَ عَالِیْ

هسې وادره کنه وایي نهایت ته
وسع وایي په داځه کښې وطاقت ته

یعني وایي مصنف زه په بخښش
هغه کس له دبه غواړم په کوشش

چې ما یو ورځ په دعا نیکه کړي یاد
په ایمان دیدار جنت سره دلشاد

هر مسلم لره بایده دي هر ساعت
چې د بزرگ په اسم کړي علیه رحمت

شو په دا زمانه هسې د زړونو وړې
دا آداب ورځني نه کیږي کړے هسې (١٩٧)

مصنف ددې کتاب په دا سبب
دعا غواړي په آخر له تا عجب

که لوستونکي دکتاب ځېر لري وېر　　پهٔ دا ځي يې لهٔ دعا نه نهٔ کړي هېر

# مسأله

[۲۵۳] پهٔ دا پوه شه کل نبيان دي جنتيان　　لس ياران هم د نبي آخر زمان

ابوبکر او عمر، عثمان ، علي　　سعد[198]، سعد[199]، طلحه[200]، زبير[201] واوره جلي

پهٔ دا رنګ بوعبيده[202] عبدالرحمان[203]　　دي راضي دي تل لهٔ دوي ځخه بحان

هم پهٔ شان د اهل بېتو د رسول　　احاديث دي د احاد[204] واوره مقبول

ولې پس لهٔ دې کسانو منع دينه　　چې به چاته جنتي مطلق وايينه

که اګرچې وي اولاد د پيغمبر　　پرې قايل شو د جنت واوره کافر

که يوکس جعفر صادق[205] محمد باقر[206]　　بهشتيان مطلق ګڼي شي پرې کافر

پهٔ دا رنګ علی اصغر امام اعظم ☆　　شافعي[207] امام بصري پهٔ هر يو دم

يا ځهٔ نور ځهٔ اکابر د اسلام دينه　　بهشتيان به ورته وايي کافر شينه

د دوې شان کښې نهٔ حديث شته نهٔ آيت　　پس لهٔ دې لسو يارانو د حضرت

پس چې وحې شوله بند پس لهٔ نبي　　چاله نشته پهٔ غايبو آګاهي

چې فلانے سړے دروند شو پهٔ جنت　　يا فلانے شو و دوزخ وته رخصت

لکه دا رنګې يو طفل مړ وهٔ ياره　　عايشې بي بي دا ووې لهٔ ګفتاره

چې مرغه و د جنت شو پهٔ جنت　　ورته وويل دا رنګ نبي حضرت

[۲۵۴] عايشې مهٔ کړه ګفتار پهٔ داسې نيت　　ځهٔ خبر شوې چې دے شولو پهٔ جنت

چې پرتا نشته نزول د جبرئيل　　ځهٔ خبر شوې لهٔ غيب کاره د جليل

پس چې وروره د حضرت پهٔ پاک حضور　　شهادت د عايشې نهٔ وهٔ منظور

ګواهي پس لهٔ نبي به د کوم کس　　پهٔ بهشت د چا روا شي واوره بس

پس نور پس لۀ انبیاوو لۀ یادانو    جنتي مطلق مۀ ستا یئ سامعانو

اولیا واړه حیران دي پۀ د احد    هم لۀ ډېرې بې نیازۍ د پاک احد

انبیا واړه سر شوي پۀ حیرت    لکه دا رباعي واوره دا ساعت

## رباعي

واوره ذرۀ چې فضول کا دیې بوالعجب    کوم نشان د عافیت لري مطلب

سرگشته دے که ولي دے که نبي[٢٠٩]    پۀ وادي دلا ادري[٢١٠] ما یفعل بي[٢١١]

## وَ اَیْقِنْ اَنَّ کُلَّ الْخَلْقِ فَانٍ
## وَ یَبْقٰی وَجْهُ رَبِّكَ ذِی الْجَلَالِ

وګڼه تۀ پۀ یقین جهان فاني    خو یو ذات د پاک احد به وي باقي

چې صاحب د بزرګۍ د برترۍ دے    لۀ صفاتو د شرکت څخه بري دے

وجه ذات د پاک الله دے شو بیان    بعضې وایي پۀ دا رنګ مجتهدان[٢١٢]

[٢٥٥] چې قرآن کښې مخ او لاس یاد کړه جلیل    مفسر دي دا رنګ نۀ کوي تاویل

ولې لاس دے د قدرت او د نعمت    هر انسان وایي تۀ واوره دا ساعت

دوئې د مخ ته مخ او لاس ته وایي لاس    او سکوت پکښې کوینه واوره ناس

دوئې دې مخ د قدرت هم د قدرت ید[٢١٣]    وګڼې چې دي صفات د پاک احد

نور صفات به د مخ لاس لۀ منځه دور    او قدرت به شي ثابت د پاک غفور

مهٔ گڼهٔ صفات د مخ د لاس باطل — دا صفات دي د خدا داوره کامل

اولاس مخ چې شو مذکور اې ذیحیاتو[۲۱۴] — نهٔ پهٔ شان دي د مخ لاس د مخلوقاتو

پهٔ دا مراد څوک بې لهٔ رب نهٔ دي خبر — چې پهٔ کوم مراد کړه یاد رب الاکبر

حاصل دا دے کل خلقت به شي فاني — بې لهٔ ذات دپاک الله چې دے باقي

پهٔ مخلوق د روح اجسام کښې پهٔ اثبات — پهٔ عالم د معلومات د منظورات

پهٔ سفلی او پهٔ علوی پهٔ کل عالم — ذات باقي دے د خالق داوره محکم

او فنا د روح هم داده داوره فن — چې جدا یې کړي خالق له مالوف تن[۲۱۵]

او فنا جنت دوزخ لهٔ نشته یارو — دوئ پیدا جزا[۲۱۶] سزا[۲۱۷] لهٔ دي هوښیارو

څو صفه وخت چې فنا شي دا عالم — نور به اهل د جنت دوزخ له هم

[۲۵۶] یو سکران او بېهوشي[۲۱۸] شي داپېدا — بعضې وایې ده فنا د دوئ هم دا

او بقاد ذات د پاک پروردگار — تر ابد بې انتها ده بې شمار

شه درود پهٔ محمد احمد محمود — هم پهٔ آل پهٔ اصحابانو یې موجود

مصنف کوي زاري د دې کتاب — ما وغواړئ پهٔ دعالهٔ پاک وهاب

هم شارح یا کښنده او شنونده — پهٔ دا رنګ ددې کتاب چې خوانده

هم چې چا پهٔ زبان دوې د افغان — دا کتاب د عقایدو د ایمان

بخشش وشي پهٔ جمیع المومنین — لهٔ دربارهٔ د اله العالمین

پهٔ حرمت د محمد، احمد، محمود

مونږه وبخښې پر دهٔ شه تل درود

---

ددې دفتر ټول بېتونه (۱۳۳۲)

تمت تمام شد

دفتر دویم شمس الفلک

# د دوېیم دفترلمن لیکونه

## (حاشیې):

---

(۱) طاس : مسي کاسې ته طاس ویل شي او طاس آبگون کنایه ده . و آسمان ته .

(۲) کمین : څوک چې د یو چا یا ښکار د ښو خوړ څولو لپاره یو ځای پټ شي .

(۳) هدی : سمه لار ، رستګاري ، لار ښوونه .

(۴) ورقې : ورق یې .

(۵) جیفه : لاش ، مرداره ، بوی ناک مړ جسد (عمید)

(۶) اصل : داخیشته (د شاعر له لخې سره سم)

(۷) اصل : دایت کړه = رحمت کړه .

(۸) اصل : بحل ، دا کلمه ما په میسرو فرهنګونوکښې پیدا نه کړه - اما په (عربي - اردو) المنجدوکښې د بجل کلمه شته د خوشحاله او شادمانه کړل شوي او خوشحال او فراخ حال معناوې یې ورته کښلي دي چې په مسری کښې معنی ښندي او کېدای شي دا کلمه بخښل وي چې د بخل په بڼه بڼه یې لیکل وي - لکه چې په ټول دیوان کښې دا کلمه همداسې لیکلې شوې ده - او ښکاره به له کاتبه هېره وي !

(۹) اکابر : د اکبر جمع ، غټان ، لویان (ظفر)

(۱۰) واګه : لګام ، قبضه ، جلب

(۱۱) سمند : زېړ رنګ آس ، مطلق آس (پښتو ژبه)

(۱۲) سپاس : حمد وثنا ، شکر ، د لطف او منت په معنی هم راغلی دی (عمید)

(۱۳) تګ و پوی .

(۱۴) براق: روښانه، ځلېدونکی او هغه سپین آس چې حضرت محمد ﷺ ورباندې معراج ته ختلی و۔
(پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۱۵) قاب د قوسین: کنایه ده دقرب او نزدېوالي۔

(۱۶) بې: به یې۔

(۱۷) غضنفر: ځېر خو یه انسان، ځېر ونکی زمری۔

(۱۸) جنود: لښکرې، سپاهیان، دجند جمع۔

(۱۹) قراء: دقاري جمع، قرآن خوان، ناسک او عابد۔

(۲۰) درة التاج: غټه مرغلره (ملغلره) چې د باچهانو په تاج کښې وي۔

(۲۱) دارالسلام: بهشت، جنت۔

(۲۲) په صحاح سته ووکښې په دې عبارت کوم حدیث نشته۔

(۲۳) اصل: اغوړوینه۔

(۲۴) پدید: ظاهر، څرګند، نمایان (ظفر)

(۲۵) اصل: محمد اولي۔ د قصیدهٔ امالی ناظم ځینو محمد اویسي ښوولی دی (مخزن الاسلام ۲ مخ)

(۲۶) دُرر: ددُر جمع، مرغلرې۔

(۲۷) مکتوم: پوشیده، پټ۔

(۲۸) اصل: بینایې۔

(۲۹) پښو۔

(۳۰) مشیت: مرضي، خواهش، اراده (ظفر)

(۳۱) فایق: لوړ، غالب۔

(۳۲) کفرې: کفریې۔

(۳۳) مسند امام احمد حنبل، ج ۴ ص ۱۳۰ دغه حدیث شریف په خطي دېوان کښې په دې بڼه
خوندي دی: من تاخر عن الجماعة قدر شبر فقد خلع ربقة الاسلام عن عنقه۔

(۳۴) هین: وخت، مدت، هنګام۔

۳۵) اصل : ذوا انفصال خ : ذالفصالی

۳۶) ذاتي : ذات یې

۳۷) اصل : الذات والا

۳۸) بې : به یې

۳۹) اصل : ګرینه

۴۰) اصل : تُسی

۴۱) اصل : کاشیا

۴۲) اصل : پر

۴۳) اصل : وَغَیرٌا

۴۵) اصل : اخیښتل

۴۶) پذیرفتن : قبلول ، منل ، نقصان پذیر ، زیان منونکې .

۴۷) مشیر : مشوره ورکوونکې ، صلاح کار (ظفر)

۴۸) لوهار : پښ ، آهنګر

۴۹) اصل : تاغیر

۵۰) خبیر : آګاه ، دانا

۵۱) جوړې : جوړیې

۵۲) خصال : دخصلت جمع ، خصلت : خوی ، عادت .

۵۳) وے : واے

۵۴) شروح : دشرح جمع

۵۵) وړکا : ورکا ، دکربلا نیو پښتنو له لهجې سره سم ، خوشاعر دلته دالفظ دقافیوي ضرورت پر بنا راوړے دے .

۵۶) بلاغ : مقصود ته رسېدل ، چا ته دخبر یا پیغام درسولو په معنی هم راغلے دے.

۵۷) دقصیدهٔ امالی کوم خطی متن چې ما دشمس الفلک ددویم دفتر له عربي برخو سره مقابله کړ ،

پهٔ هغه خطي نسخه کې دا بيت نشته ـ د ملاعلي پهٔ شرح قصيدهٔ امالي کښې هم دا بيت نشته

(۵۸) دا "کښې" "د"کي" = کړي مفهوم ښندي.

(۵۹) عرض : متاع ، سامان ( فرهنګ لغات قرآن)

(۶۰) اصل: ښيږي : ښني ، پهٔ نور متن کښې دا کلمه دغسې پهٔ ښه راغلې ده. ما د شاعر لهجې ته پهٔ پاملرنه هماغسې پريښې او په حاشيه کښې مې ورته مروج ليکنه شکل ليکلی دے.

(۶۱) خښته : ښايسته ، د شاعر له لهجې سره سم پرېښوول شو .

(۶۲) قايمې : ، قايم : ولاړ ، ثابت ، ټينګ ، محکم ، کلک (پښتو ـ پښتو تشريحي قاموس)

(۶۳) مصور : نقاش ، صورتګر ( عميد )

(۶۴) نو : نوے

(۶۵) دا بيت هم پهٔ هغه خطي نسخه کښې نشته ، چې ما ددې متن عربي قصيده ورسره مقابله کړې ده. د ملاعلي قاري پهٔ شرح کښې هم نشته

(۶۶) توانې : توان يې

(۶۷) اصل: پوښده ـ

(۶۸) ترمذي ج ۲ ص ۱۱۹ ، اما د ديوان پهٔ خطي نسخه کښې حديث شريف داسې راغلی دی: "من فسر القرآن برائه فقد کفر" پهٔ دې عبارت حديث پهٔ صحاح سته دو کښې نهٔ و ـ

(۶۹) اصل : دا هال

(۷۰) د اهل جمع پهٔ لغتنامو کښې اهالي راغلې ده ـ د قصيده امالي پهٔ عربي بيت کښې هم دا کلمه اهالي ده ـ

(۷۱) بې مدار : بې څنډه ـ د مدار کلمه بيلا بېلې نورې معناوې هم لري چې لهٔ دې ځاے سره سمې نهٔ دي.

(۷۲) زنهار : امان ، پناه ، عهد وپيمان ، د تاکيد پهٔ مقام کښې هم ويل کېږي (عميد)

☆ ملاعلي : دا زمان و احوال

(۷۳) اصل: خزې

(۷۴) ويلي : ويل وي ـ

(۷۵) خ : المعالی .

(۷۶) اصل: مومنین ، تصحیح د بلې خطي نسخې د ضبط له مخې وشوه .

(۷۷) اصل: نذیر، چې په دې ځای کښې معنی نه لري ، ځکه نذیر د وېرونکي معنی لري.

(۷۸) بې : به یې

(۷۹) دلې : دلته

(۸۰) مکرم : عزیز ، گرامی

(۸۱) راستګوے : رښتیا ویونکي .

(۸۲) پوے : پوه

(۸۳) تعطیل : چُټي ، رخصت (پښتو ژبه) خو دلته بې تعطیل د بې له ځنډه په معنی راغلی دے .

(۸۴) اصل: که

(۸۵) قاهر : غضب ناک (ظفر) غالب ، زبردست (عمید)

(۸۶) جد : نیکهٔ (پښتو ژبه)

(۸۷) خصال : د خصلت جمع ، خصلت ، عادت ، خوے

(۸۸) افضلت : ډېر لوړ مرتبه ، برتر .

(۸۹) حضرت : نږدېوالے ، قرب ، حضور ، درگاه او هم د تعظیم لفظ دے چې د لویو اشخاصو ترنامهٔ مخکښې وېل او لیکل کېږي.

(۹۰) بې : به یې

(۹۱) ټولګے : صنف ، ډله .

(۹۲) امجد : ستر ، لوے ، بزرگ (ظفر)

(۹۳) نسخ : باطلول ، ردول.

(۹۴) رسم : رواج ، قاعده ، دستور (پښتو ژبه)

(۹۵) د قصیدهٔ امالی له کومې خطي نسخې سره چې ما په دې دیوان کښې راغلې د قصیدې عربي متن مقابله کړے دے په هغه متن کښې دا بیت تر دې ځایه د هغه راغلے دے.

(۹٦) اندرپایه : زینه

(۹۷) اکمل : ډیر بشپړ ، ښه پوره (ظفر)

(۹۸) اصل : کوټ

(۹۹) پېر : دور، گردش ، چکر

(۱۰۰) مرغوب : دل پسند ، قابل رغبت

(۱۰۱) غامض : پېچلې

(۱۰۲) دسکندر د پلار نوم دتاریخ په کتبوکښې فیلیپ ښودل شوے دے چې دمقدونیې پاچاو.

(۱۰۳) نمرود : د بابل د باچا نوم و - ده دخدایي دعوه کړې وه. او ابراهیم خلیل الله یې اورته غورځولے و.

(۱۰۴) بخت نصر : دکلدې د باچهانو څخه و - تر ۵٦۲ ق.م پورې یې پاچهي درلوده - بیت المقدس یې خراب کړ او د یهودو سلطنت یې له منځه یوړ.

(۱۰۵) یو داستاني حکیم و ، چې د جاهلیت او صدر اسلام له وختونو څخه اخبار له ده نقل شوي دي. ډېر اقوال ، اومثال اوحکم ورته منسوب دي.

(۱۰٦) تفسیر مدارک : تفسیر مدارک التنزیل د ابو البرکات عبدالله بن احمد نسفي دے - دا تفسیر په عربي ژبه دے او په دوو ټوکونو کښې - نسفي له دې تفسیره سربېره نور آثارهم لري دے د ماوراء النهر له جیدوعلماووڅخه و - په ۷۱۰ ه ق کال مړ دے - (لباب المعارف العلمیه ص ۲۰)

(۱۰۷) جید : کره (ظفر)

(۱۰۸) ناروایي : ناروا وې

(۱۰۹) اصل : کوټ

(۱۱۰) داعي : بلونکے ، دعاکوونکے (ظفر)

(۱۱۱) ولي : ولي دخداے (ج) له نومونو څخه یو نوم دے. او په عربي کښې یې معنا وې دا دي: کارسازه ، سرپرست ، خاوند ، مرستیال ، مددگار او دوست - خو په مسلمانانو کښې اصطلاحاً "ولي" د ولی الله په معنی کارېږي چې دخداے د دوست معنی ورکوي (اسماء الحسنی)

(۱۲) مبتدع : بدعت کوونکی ـ (عمید) په دین کښې د نوو خبرو را ایستونکی (ظفر)

(۱۳) استدراج : له عادت نه خلاف کارچې له یو غیر مسلم نه واقع شي او داسې تعجب خېز کارچې له معمول نه خلاف وي ـ

(۱۴) کشف : موندنه ، معلومونه ، لوڅونه ، د یو شي مشاهده ، زده کړه او یا موندنه په تېره چې بیا د لومړي ځل دپاره وي. په سلوک کښې کشف له خدای[۳] سره د انسان اړیکې او په چاروکښې د الهٰی ارادې موندنه ده ـ چې په مختلفو وسیلو سره ترسره کېږي " لکه : خوب لیدل ، مشاهده ، خوارق ، معجزې او نور ، له خدای[۴] سره پر دغو اړیکو کله انسان نه پوهېږي خو بیا یوڅه ورته څرګند شي ـ (پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس)

(۱۵) کرامت : لویي ، ستر توب ، مهربانه ، ځوانمردي ـ په لغت کښې یو ډول اعزاز دے ـ او په اصطلاح کښې د یو داسې خارق العاده کار څرګندېدل دي ـ چې له ایمان او صالحه اعمالو سره مقارن وي ـ خود نبوت دعوه ورسره نه وي (پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس)

(۱۶) فرعون : په لرغوني مصرکښې د هر یوه پاچا لقب ، د مصر د فرعونانو سلسلې ۲۶ او تاریخ یې نژدې ۳۰۰۰ کاله و ـ مرکز یې تبس او منفیس و ـ (پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس) او په اصطلاح کښې ظالم ، لوے چارے او مغرور ـ

(۱۷) جهال : د جاهل جمع (عمید)

(۱۸) درد الروافض په نامه ځینې رسالې ماته معلومې دي ـ خو شاعر دا نه دي ویلي چې مطلب یې د چا او کومه رساله ده؟ په پښتنو علماوو کښې ملا پیر محمد میاجی هم د القرایض فی ددالروافض په نامه یوه رساله لري (پټه خزانه ۱۳۲ مخ)

* اصل : صفیان : امام سفیان ثوري بن سعید (۹۷ ـ ۱۶۱ هـ ق) فقیه او محدث ، د احادیثو له ائمه وو څخه وو ـ دے په خپلو معاصرو فقهاوو کښې بې مثله و ـ د ده تصانیفو کښې جامع الکبیر او جامع الصغیر ډېر مشهور دي (اردو انسایکلوپیډیا ۷۵۳ مخ)

(۱۹) کفاروے : له کفاروېږي

(۲۰) اصل : ته

(۲۱) ناقض: ماتوونکی، د عهد وپیمان ماتوونکی.

(۲۲) دامتن په صحاح سته دوکښې نه دے ضبط شوے.

(۲۳) قرآن عظیم، المؤمنون سورة، ۱۰۱ آیت - ترجمه: بیا کله چې په صورکښې پوکے دکړ شي، صفه ورځ به دوئ ترمنځ دنسب اړیکې (په نظرکښې) نه وي اوله یو بل څخه به پوښتنه نهٔ کوي. (قرآن مجید پښتو ترجمه، دوهم ټوک، د صباح الدین کشککی ترجمه، دافغانستان د جهاد ثقافتي شورې، اسلام آباد، ۱۳۷۰ هـ ش، ۳۱۱ مخ)

(۲۴) اصل: پس

(۲۵) خپې: پښې

(۲۶) محض: بالکل، تمام، سراسر ☆اصل: ملاعلی: ذو، بله خطی: ذی

(۲۷) اصل: جنجر

(۲۸) بران: ډېر تېره (ظفر) ☆ اصل: د

(۲۹) اصل: لکه ☆ اصل: دے ☆ اصل: مدت

(۳۰) اصل: صحي ☆ اصل: پهٔ

(۳۱) اسافل: داسفل جمع، اسفل: ډېر کښته، لاندې (ظفر)

(۳۲) هادیان: هدایت کوونکي، پېشوایان، لاربښوونکي.

(۳۳) طلسمات: دطلسم جمع، طلسم: دکاغذ یا فلز یوه ټوټه چې جادوګران او فال لیدونکي پرهغه کرښې یا جدولونه کاږي. یا څیني توري باندې لیکي او عقیده یې دا وي چې داشیان دڅا یاکوم شي په محافظت‌کښې‌اوصدارنګه دبدو او آزارپهٔ دفع کولوکښې‌اغېزه ښندي یا کومه خارق العاده چاره سرته رسوي (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۴) نزع: ځنکدن.

(۳۵) قصور: دقصر جمع، ماڼۍ، قصورې: قصرونه.

(۳۶) اطلاق: منسوبول، محسوسول، دلالت (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

☆ شرح قصیدهٔ امالی: یُقْضیٰ

(۳۷) اصل: لاپه.

(۱۳۸) اصل: ډګرینه

(۱۳۹) ګون: ډول، قسم

(۱۴۰) اصل: اوځي

(۱۴۱) اصل: څکلي

(۱۴۲) اصل: کاشیا

(۱۴۳) بله نسخه: لوکتحالي، ملاعلي: لاکستحالی، اصل: اکتمالی

(۱۴۴) هیولا: د هر څیز ماده یا ماهیت (ظفر)

(۱۴۵) روضه: باغ، ګلشن، ګلستان (پښتو ژبه)

(۱۴۶) نکیر و منکر: دوې پرښتې دي چې تر مړینې وروسته د انسانانو په قبر د نو کښې حاضرېږي - او هغه اعمال چې یې په دنیا کښې کړي دي ترې پوښتي.

(۱۴۷) نه نوي: ۹۹

(۱۴۸) د قصیدې له بل متن سره چې ما دا متن مقابله کاوه - په هغه خطي متن کښې دا بیت پر دغه ځای نه دی راغلی. د ملاعلي متن هم دا ډول دی.

(۱۴۹) اصل: ګرینه -

(۱۵۰) احتراز: ډډه کول، ځان ژغورل، ځان ساتل، پرهېزکول (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۱۵۱) صد و یازدهم: ۱۱۱ یو سل دیوولس

(۱۵۲) جو: اوربشه

(۱۵۳) اصل: ګرینه

(۱۵۴) حبه: دانه، غله، اوربشه، ډېر لږ مقدار (ظفر)

(۱۵۵) اصل: څکینه

(۱۵۶) بله نسخه: فیعطی

(۱۵۷) گردن: غاړه، گردنونه: غاړې ☆ شرح پښتو: اهتبال.

(۱۵۸) اقدام: دقدم جمع، گامونه، پلونه (عمید)

(۱۵۹) بې: به یې

(۱۶۱) اعراف: دجنت او دوزخ ترمنځ یو ځاے (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)، دجنت او دوزخ ترمنځ یو دېوال چې پردې دېوال صفه اشخاص وي. چې هم دجنت اوسېدونکي او هم د دوزخ عذابېدونکي ویني (فرهنگ لغات قرآن)

(۱۶۰) (۱۶۲) بې: به یې

(۱۶۳) اصل: گونه کارو

(۱۶۴) مباح: جایز، روا، پاک (ظفر)

(۱۶۵) بې: به یې.

(۱۶۶) اصل: دوابه

(۱۶۷) اصل: جېر

(۱۶۸) دار: دهر: زمانه، روزگار، عصر

(۱۶۹) اصل: شروع

(۱۷۰) آوخ: دآه، افسوس کلمه ده.

(۱۷۱) مردود: ردشوے، رټل شوے، مردودان: رټل شوي، رد شوي.

(۱۷۲) میثاق: وعده، قول، قرار، پیمان (ظفر)

(۱۷۳) ابوطالب: دحضرت محمد (ص) تره او د حضرت علی (ک) پلار.

(۱۷۴) فلاسف: فلاسفه: فلسفیان، فلسفه پوهان.

(۱۷۵) اصل: څنبه، څنگه چې کاتب په ټول دېوان کښې څه دغسې لیکلا دے ما اول دا کلمه څخه لوستې وه. خو څنگه چې دلته سم نه لگي نو څکه څه بېه کړل شوه.

(۷۶) اسهل : ډېر آسانه، سهلتر

(۷۷) اظهر : ډېر ظاهر، ښهٔ ظاهر، روښانه (ظفر)

(۷۸) مقطوع : قطع شوے، پرې شوے (ظفر)

(۷۹) ملحق : پیوسته، متصل.

(۸۰) میمون : مبارک، بختور، برکت ناک.

(۸۱) ملبوس : اغوستے شوے، لباس، پوښاک

(۸۲) سیمین بر : سیمبر، هغه څوک چې بدن یې لکه سیم سپین وي.

(۸۳) عَرَض : هغه څهٔ چې قایم بالغیر وي. قایم بالذات نهٔ وي، جوهر، هغه کیفیت یا حالت چې وجود یې پهٔ خپلواکه توګه ممکن نهٔ وي. (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۸۴) بله نسخه : خیرا

(۸۵) بېچون : بې مثله، بې مانده

(۸۶) ګوناګون : ډول ډول، مختلف

(۸۷) جنان : د جنت جمع

(۸۸) عقلي : د عقلي اصولو سره سم، هغه څهٔ چې ادراک یې د عقل پهٔ قوې یا باطن سره حس کېږي (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۸۹) اصل : ناخبروو.

(۹۰) مذاق : ذوق، رغبت، میلان (ظفر)

(۹۱) شیخ : سپین ږیرے، زوړ بوډا (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۹۲) شاب : ځوان سړے

(۹۳) داد : ورکړه، بخښنه (پښتو ژبه)

(۹۴) شارح : بیانوونکے، تفسیروونکے، شرحه کوونکے.

(۹۵) بیت العتیق : کعبه شریفه (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۹۶) خ : وإنَّ اللّٰهَ یجزیٰ کل وَقتٍ ( پهٔ هغه خطي نسخه کښې چې د متن ورسره مقابله کړے دے.

داصبرکه دغښې ده )　　　　　　مخ اصل : و اِنْ

(۱۹۷) کړے : کړه یې .

(۱۹۸) بنایي مراد ترې سعد بن ابي وقاص وي . چې مشهور صحابي او اسلامي جرنیل و . پلار یې مالک ابن وهب نومېد . په ۱۷ کلنۍ کښې مسلمان شو . دده شمار په عشره مبشره وو کښې دے . په ۵۰ هـ ق یا ۵۵ هـ ق د ۷۰ کالو په عمر مړ شوے دے . او په مدینه منوره کښې ښخ دے .

( اردو انسایکلو پیډیا ۸۹ مخ )

(۱۹۹) د حضور (ص) په صحابه وو کښې د سعد په نامه څو نور نومونه هم شته لکه سعد بن حبتة چې په ۱۵ کلنۍ کښې مسلمان شوے او د خندق په غزا کښې یې تورې وهلې وې او په کوفه کښې مړ دے بل سعد بن ربیع ، سعد بن زید ، سعد بن مالک ، سعد بن معاذ او نور......

(۲۰۰) طلحه بن عبید الله مشهور صحابي له هجرته ۲۴ کال د مخه زیږېدلے و . له ابتدا یې اتو مسلمانو څخه و .

(۲۰۱) زبیر بن عوام له هجرته ۲۸ کاله د مخه پیدا و . د مکې په فتح کښې د حضرت رسول ذاتي علمبردار و .

(۲۰۲) بوعبیده نه مطلب بنایي ابو عبیده بن الجراح دي . دده اصلي نوم عامر بن عبدالله دے . جلیل القدر صحابي او په عشره مبشره وو کښې شامل دے په ۱۸ هـ ق کښې مړ او په دمشق کښې ښخ دے .

(۲۰۳) دا عبدالرحمن بنایي . عبدالرحمٰن ابو راشد الازدی دي . دا نوم ورته حضرت پیغمبر (ص) خوښ کړے و . د حضرت (ص) صحابي او دده د ډېرو احادیثو راوي دے . وایي چې دے کله حضرت (ص) ته ورغے نو یو ملګرے هم ورسره و . او د ملګري نوم یې قیوم و . حضرت پیغمبر (ص) د صفه لپاره د عبدالقیوم ابو عبیده نوم غوره کړ . نو له امکانه لیرې نه ده چې په دې بیت کښې راغلے بوعبیده هم دے وي .

(۲۰۴) احاد : د احد جمع (ظفر)

(۲۰۵) صادق : د حضرت جعفر بن محمد لقب ( د شیعه شپږم امام )

(۲۰۶) باقر: دمحمد بن علي بن حسين بن علي بن ابي طالب لقب (د شيعه گانو پنځم امام)

✡ امام اعظم ابوحنيفه (۸۰ - ۱۵۰ ه ق)

(۲۰۷) ابو عبد الله بن ادريس، شافعي امام په ۷۶۷ ع فلسطين کښې پيدا شوے او په ۸۲۰ ع په مصر کښې مړ او هلته ښخ دے.

(۲۰۸) عايشه: د ابو بکر صديق (رض) لور او د حضرت پيغمبر (ص) لهٔ زوجاتو څخه يوه.

(۲۰۹) اصل: له

(۲۱۰) ادري: پوهيږم (فرهنگ لغات قرآن) لا أدري: نهٔ پوهيږم.

(۲۱۱) يفعل: کوي.

(۲۱۲) مجتهد: هغه عالم چې شرعي مسائل لهٔ قرآن مجيد نه استنباط کړي (عميد)

(۲۱۳) يد: لاس

(۲۱۴) ذيحيات: د ژوند خاوند، ژوندي.

(۲۱۵) مالوف: گران، عزيز

(۲۱۶) جزا: بدله، عوض، صله (ريښتو ژبه)

(۲۱۷) سزا: د څهٔ غلطئ يا د جرم پهٔ بدله کښې تکليف.

(۲۱۸) سکران: مست، سکاري (عميد)

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# دفتر سوم

## غزليات

"الف"

(۱)

[۲۵ >] << ۱ >> << ۱۲ >>

امنا[۱] او صدقنا[۲] ده صدقنا بلبل ژوند کوي د گل په تمنا

چې جلوه د گلو نه وي په چمن کښې پکښې نه وي د بلبل خوږه ویناﺍ

که يې زر نشتره ښخ د خار په دل شي په خون سور شي هسکي لکه حنا

دغه خون يې شي نکريزې د منگولو دغه زخم له د عشق کوي ثنا

د عاشقو مذاهب په پنځ سوره دي له پنځو گلو اظهر شو پنځ بنا

تخت و تاج يې د دوستۍ پرې اراسته کړ چې يې دويل إِنَّا وَ اَعۡطَيۡنَا[۳]

شهنشاه يې کړ عاشق د کاښاتو په خطاب يې د إِنَّا او عَرَضۡنَا[۴]

د تحميد غونچه زيبا شوه په چمن کښې صد هزار بلبلو وکړه اَمَنَّا

د اخلاص ساقي په ميو بوسه زن شو يگانه په ميخانه د لن تنا[۵]

عبارت درته تبدید شي په معنا — چې یې نینګ په طبیعت د جهل مات شي

آدم ووې رَبَّنا (۶) او ظَلَمْنَا (۷) — د تجید ساغر یې بیا په دهٔ لبریز کړ

خاک پا یې شه د سپو محمد رفیقه

که په داشې دستګار اَنفُسَنَا

---

## "ټ"

(۲)

«۱» — «۲»

شي زما په خونخوارۍ رقيب مردار غتې
لکه تل خمر خوارۍ کا شراب خوار غتې

غمخورۍ د يار د ميني باريک خس کړم
په طاعون کښې چا ليدلے دے بيمار غتې

بې له ياره ښار په جنګ د رقيب مه څه [8]
په ځنګل کښې البته پېښ شي ښهمار غتې

په کمزورۍ ځان د مينې پېڅې ما خله
په جهان کښې دے د مينې کاروبار غتې

چې طاقت دې د سوزن د زخم نه وي
د ځيګر دپاسه مه ږده دا پرهار غتې

وحشي نفس آموخته مه کړه په حرامو
د حرامو په خوراک شي دا کفار غتې

چې طاقت دې د برداشت دي هومره اخله
مه کړه ته د مهاجن [9] سره بېپار [10] غتې

چې نزارشي [11] نور به چت د عشق په کارشي
تلے نه دے صحیح احد په دغه لار غتې

خوبښ په عشق کښې په خوارۍ په لاغرۍ شه
د خدا شي هر انسان چې شي بسيار غتې

د رباب له زير [12] وسيم آواز احسن کا
دکټي غوندې آواز دے د شهتار غتې

په رو رو [13] يه د سلطان په فوج کښې غتې شي
کوم انسان له ابتدا شو په تلوار غتې

تل د علم په علو دستار تاړه شي
بې له علمه څه په کار نه دے دستار غتې

چې معلوم يې د باريک پتنګ سوزش کړ
شمعې جمعې ته بکاره شو دغه بکار غتې

ناعلاجه چې ژړا يې په ماتم کړي
تر صباحه يې باران وي په رخسار غتې

د عشق تېغ هاله په لاس اخله "رفيقه"
که رستم غوندې لرې د جنګ اختيار غتې

# " ث "

(۳)

« ۱ » — « ۲۶ »

هسې رنګ په ځیګر خون یم الغیاث — چې په سل رنګه مخبون[14] یم الغیاث[15]

چې مې سر له درده دوکه صحت بیاموند — اخته شوے په طاعون یم الغیاث

حیف زما په نادانۍ او احمقي دے — چې په باد باندې مفتون یم الغیاث

چې اول آخر یې مرګ منځ یې ژوندون دے — زه ستومانه په ژوندون یم الغیاث

هم په دامې له چشمانو اوښکې دروې — چې لرزانه له بېلتون[16] یم الغیاث

د نا اهلو له یاره داد و فریاد دے — تې لاله[17] سوے لرمون یم الغیاث

تل د غم او د ښادې په منځ مې کور دے — نه درون نه ترې بېرون یم الغیاث

وزګار نه یم د درون د فوج له تاخته — اوړېدلے په شبخون[18] یم الغیاث

ستا د در له کمینه سپیو کمین یم — نه پوهېږمه څه ګون[19] یم الغیاث

سفېدې مې د مخ ورکه په سیاهي شوه — د زنګې غوندې شبګون[20] یم الغیاث

په ازل کښې دې پیدا یم قدمبوس له — نور خبر نه یم چې چون یم الغیاث

د غرځه غوندې له هجره رمیده یم[21] — خوابیده په مېړتون[22] یم الغیاث

د ایرج[23] په تاخت وته وم له توره — لاهو شوے په جیحون یم الغیاث

تیغ ابستے د جمشید په قصاص ګوره — په ضحاک تر فریدون[24] یم الغیاث

د خالق په توکل وته بېدیانه — د بې سترګو رهنمون یم الغیاث

د قدرت په خزانه کښې طالب شوے — د هغه دُرمکنون[25] یم الغیاث

د تسلیم دره په لاس له وحشیانو — سر په کوه و په هامون[26] یم الغیاث

که د خضر نجسته ترقدم زار شوم — په طالع فرمیمون یم الغیاث

چې ځې ملک ګشتاسپی محمد رفیقه

که ځبتن د کتابون یم الغیاث

## " ج "

(۴)

<< ۱ >> << ۵۶ >>

بېلتانه دې هسې زه کړم ناعلاج ... چې به نه وي څوک زما غوندې محتاج

که اياز غوندې قبول تر تا محمود شم ... کړم په سر به د اوو اقليمو[۲۷] تاج

هغه کس شولو محبوس په دواړو کونه ... چې د زلفو له کمند[۲۸] دې شو اخراج

که سلطان دے خو مجنون د عشق په ملک کښې ... هر ناکس نه دے لايق د دغه[۲۹] راج

زړه مې د نبت ستا د سرو شونډو په چنګ کښې ... لکه باز چې په منګول يوسي دداج[۳۰]

دا دعوه زما د عشق دعوه نه ده ... چې بې تا مې دا عزيز عمر کړو باج

ضعيف تن مې شه خالي بې ستا د عشقه ... عشق ستا مې دے د دين ايمان سراج[۳۱]

هم په دا يې په فرقت کښې ژوندے پايم ... چې د وصل بوے مې ګټو دے پر مزاج

زه په سوري د منصف شهنشاه ژوند کړم ... که جهان ټول ستمګر شو نر حجاج[۳۲]

که مقبول دې مشت خاک شو اے رفيقه
د ملکو ملک به يوسې په تاراج

# "چ"

---

«« ۱ »»  (۵)  «« ۰ »»

که مال لاړو پاک یې نشته چې مې شو دین و ایمان پیچ
بنه چې قتل اهریمن[۳۳] شو، شو سرین د سلیمان[۳۴] پیچ
که شو خرڅ بې قیمته په مالک څه پاک یې نشته
چې یوسف آفتاب د حسن شو له چاهه د کنعان پیچ
له الزام د زلیخې شو د خالق وته دویداره
بیا یې کړ عزیز د مصر شو د مصر له زندان پیچ
مرتبه دا د اخلاص ده چې علو د عام و خاص ده
هر انسان په مخلصي دے له عذاب جاویدان پیچ
چې سلطان اولین، رحمة للعالمین
پر عرب شو مبین شو له شرک نه جهان پیچ
چې پروانه به په مسجد[۳۵] وو په دیا راکع[۳۶] ساجد وو
په بدل یې ساقي کوره کړه د صبح میخواران پیچ
باغبان د ازل صې د وحدت چمن سیراب کړ
چې دده له سیرابۍ شوه تشنګان د رمضان پیچ
غراب[۳۸] پاتې بې بهره شو تر ابده جیفه[۳۷] خوره
له دې صې ونبترې نه عنادل[۳۹] شو د بستان پیچ
د رقیب په هر وېښته کښې زر نکتې د رهزنۍ دي
په خاطر د خپل حبیب کړه له دې ګبره مسلمان پیچ

کند په سر کچکول په غاړه شه ډېره د یار په در کښې

دا په دا چې ګنهکار شي په دوږمه کښې د رضوان بېچ[40]

که هاروت ، ماروت ملک وو لویې پرې ابتلا کړ ننګ ته[41]

کمینې زهره رقاصه کړه په برج کښې د آسمان بېچ[42]

د آدم صلوٰة الله مقبولې مستغفرې شوه[43]

چې یې خوے مستکبرې شو ترینه نه شولو شیطان بېچ[44]

پیمایش د هوا پرېږده شه له خاورو سره خاوره

د هوا سوارهٔ غلطان شو، شو پرېوتی خاکساران بېچ

لکه سروې آزاده شه له دوران " محمد رفیقه "

چې په دا آزاده ګرځې به له سموم شې د خزان بېچ[45]

---

(٦)

<< ۷ >>

زړهٔ صفا کړه د مومن له حسد پېچ[46]

په قضا باندې تسلیم د رضا وکړه

ځان د رب له معرفت سنګ پارس کړه

د بدانو مساوې جواب بدې ده

که ځوانمرد یې په نعمت د صبر سپړ شه

شه فدا له هغو شوخو سیاه چشمو

د انصاف چاړه په لاس داخله روان شه

بې پرسان یې وهه ځټ محمد رفیقه

<< ۸ >>

ضر احد ته مه شه ترېخ لکه د مرچ

د دنیا په غم خورې کښې مه شه وچ

معلومېږې په محک باندې زر سوچ

مه شه بد ته حلیم تر لکه د کوچ

مه ورځه په هر خوانچه لکه د چچ

چې بانهٔ یې په ځیګر ځي لکه کرچ[47]

باندې پرېکړه د بد ذات غوږونه خرچ[48]

په خوګانو کښې یکسان دے لوے وړکے[49]

# "ح"

(۷)

((۱))      ((۹۶))

زهٔ عاشق د مخ د یار کوم تشریح      څهٔ حاجت چې د بهار کوم تشریح

پهٔ ما زاغ بدرالدجی چې موصوف شوے      د هغو سترګو رخسار کوم تشریح

زهٔ هغه مخمور پهٔ کنج د خرابات یم      چې د خمرو د خمار کوم تشریح

چې د میني پهٔ خنجر مې زړه پرهر شو      د[۵۰] غه زخم د پرهار کوم تشریح

چې ګریوان مې پهٔ ژړل د اوښکو رود شو      د دې اوښکو د جویبار کوم تشریح

هغه شپه چې د دلبر د وصالت وه      لهٔ نسیم یې د سهار کوم تشریح

چې لایق یې زهٔ د دُرد امانت کړم      خواه مخواه یې د تیمار[۵۱] کوم تشریح

چې تاجونه د شاهانو یې نګون[۵۲] کړهٔ      د دې چرخ نګونسار[۵۳] کوم تشریح

چې خوناب مې یې لهٔ خوښ خاطره نوش کړ      د دې هجر د ښهماد کوم تشریح

چې جلیا مې یې وطن د زندګی کړ      لهٔ سوزش د هغه نار کوم تشریح

پهٔ یوه ساعت یې مرهم مې ژوندے کړي      لهٔ افسون د دې نګار کوم تشریح

چې یې ما پکښې دولت د وصل بیاموند      د هغهٔ لیل د نهار کوم تشریح

چې خرید و فروخت یې دواړه لهٔ نقصان نه      لهٔ متاع د دې بازار کوم تشریح

چې بلبل یې پهٔ بستان د وصالت کړم      د هغو ګلو، ګلزار[۵۴] کوم تشریح

چې یې سپے سکندري د هفت اقلیم کا      د هغه شاه د دربار کوم تشریح

چې جدا کړي دوه مین په نښش د ژبې        د هغه رقیب مردار کوم تشریح

چې بلا د پرې د عرب رشک جنت شو[55]        د هغهٔ عالي سردار کوم تشریح

که یې سپړ شوې کمینه " محمد رفیقه "

ستا د قدر د مقدار کوم تشریح

---

(۸)

<< ۲ >>        << ۱۰۲ >>

چې مې نشته لهٔ دهزن د عشق فلاح[56]        رب دې ماکړي د دستم غوندې رماح[57]

چې تاراج یې لهٔ مارخت د زندګۍ کړ        زما خون دے پر هغو ترکو مباح

رب دې ماکړي پروانه د هغې شمعې        چې یې څخ دے د ژوندون دعیش مصباح[58]

چې یې ودک کړلهٔ جهان دیجور د کفر[59]        لهٔ عربو شو بلند هغه صباح

شې لهٔ عمره برخوردار ساقي سرسبزه        چې دې راکړه پهٔ دا سبزه پیاله راح[60]

دا دے عین سعادت " محمد رفیقه "

چې یې ته کړلې ددې مټن شراح

---

# " خ "

(۹)

« ۱ » | « ۱۱۳ »

چې مې وليد د دلبرو بې نقاب مخ | راته هېڅ شو د آفتاب او د مهتاب مخ

هسې برېښي يې کړ په سبزه دوشاله کښې | لکه برېښي په شين ورق کا د گلاب مخ

پټ مرده يې په صدناز ساحرې سترگې | منفعل کا د نرگس آلوده خواب مخ

په صفحه يې د جبين نقطه د خال ده | يا غورځند کا په سما ثاقب شهاب[61] مخ

نور کاکل يې په عذار[62] سيمين باندې | تر چمن کو لاندې پرو د غراب مخ

علامه يې د ابرو[63] کمان کجې[64] شوه | په هلال باندې طعنه بردې ددې قاب مخ

د جهان آثار به واړه بهشتي شي | که ښکاره کړ د شاهد سرو شاداب مخ

د عذار دُرې[65] له نازه هسې رپې | لکه رپې په صدف کښې د سيماب مخ

په امان شه د رقيب له بد نظره | پرښتي ته ښکاره مه شه د گلاب مخ

په روشن مخ يې سايه راغله د زلفو | که په نور باندې ښکاره شو د سحاب[66] مخ

زړه مې درست شو آبله ديار په غم کښې | لکه جوړ شي له بارانه د حباب[67] مخ

کړه نظر د يار په مخ " محمد رفيقه "

په دنيا نشته روشن تر دا کتاب مخ

(۱۰)

«« ۲ »»

شو پیکان[۳۸] مې ستا د مینې په زړهٔ بنخ
چې جلا ددې اشارت د تیغ کړې پورته
تشنه کان دې په کوثر کله سېراب شي
د بېلتون چرخ دې هسې مضطرب کړم
چې درتېږي مې ځیګر د عشق په اورکښې
منازل راته پراته دور و دراز دي
بې طاقته بیمار پروت په سر دلاردیم
سلطنت د آخرت د اسلام لاندې
څو د ځان هومره ښادي یې په غم بویه

«« ۱۲۳ »»

ترملهمه یم په دا جراحت خوخ[۳۹]
مفتون زړهٔ مې ور ولاړ شي په بنجبخ
که یې نهٔ کړې په شربت د لقایخ
چې یې تاو دغم په دوک کړم لکه نخ[۴۰]
مقرر مې د ژوند کور شو په مطبخ[۴۱]
زماني کړمه په لاس و په خپو شخ
لهٔ رب غواړمه طاقت د شفا مخ
په تلې د مکئ دي یا شمخ[۴۲]
شکایت به دې لایق کا د دوزخ

د دښمن سر به کړي غوڅ «محمد رفیقه»
که خنجر د ریاضت کړې پرې برکخ[۴۳]

## "د"

### (۱)

«د ۱ »　　«د ۱۳۰ »

کرم له هسې بې نیازه داد و فریاد
چې سګان د جهان کښیناسته په داد

پلار و مور دې چواړې[۴] تهتمه[۵] مادې کا
په خمبه[۶] کښې یې ځای نه شي د زوے باد

د هندو پېښتي بدله په پولاړو شوه
پولاړو[۷] خوره له دنیا شو نامراد

سرنامه په پراچه عالیجناب[۸] شوه
په نیم اسم شي بلک عالي نهاد

رئیسان د زماني جاروب کشان شو
کړه فلک کرسه نشین داړه کمزاد

دا تیاره په پېښور[۹] شوه ډېره پورته
رب دي نه شرموي نور هسې بلاد[۱۰]

باغبان د اکبر پوري قرشیان[۱۱] شو
کشمیریان یې شو شیخان و سیدزاد

هر جولا د اعتبار پګړی په سر کړه
ته به وایې چې ابدال دے یا اوتاد

چې سګان یې امیران خره وزیران شو
په دبا دې د دوے تخم شي برباد

و عالم وته د دهر سپک نظر کا
چې په ځان له سپیو سپک دے په نژاد

رب د دوئ په دا دروغو کښې رسوا کړي
چې په خته باندې نوم بدي د فولاد

په آتش مې د نا اهلو زړه اوبه شو
چې په زر اکسیره نه کړي انجماد

بلبل ناست په خس و خاک غراب په ګل دے
په فلک کمینه نشته اعتماد

تل له تورو تخنه تور له سپینو سپین دي
د زنګي[۱۲] نه پیدا نه شو پریزاد

هغه ستړګې کمینه چې لوے کاته کا
خداوند دې یې پرندې کاندي برباد

دے دولت د محبت "محمد رفیقـه"
چې رسوا یې په شیرینه کړو فرهاد

"ډ"

---

(۱۲)

«۱» «۱۵۵»

پهٔ جلوه د ګلو مست شوٚ کړو بلبلو بوستان ګډ وډ
پهٔ نشه د سرو شرابو کښې پراته دي مستان ګډ وډ
د نسیم پهٔ داتله ګوره بسته شونډې غنچه وا شي
شقایق لهٔ ډېره شوقه پهٔ چمن شي پرېشان ګډ وډ
د سپین مخ صفحه سیمینه پهٔ سبزه شوه د خط لاندې
ددې باغ بهار ته ګوره کړو چاپېر خیابان ګډ وډ
د چمن پهٔ ساکنانو به پهٔ څرنګ مستي نهٔ وي
چې یې پروت پهٔ دروازه کښې له مستۍ نه دربان ګډ وډ (۸۴)
لهٔ مستي نه که آزاده سرو ناز سرو سهي دی
پهٔ خپل حسن مغرور نهٔ څې پاک نسبه خوبان ګډ وډ
چې دې تاک پهٔ نهال راغ غراب پرېوتو بېهوشه
خود پیماله کړهٔ بلبلو جیفه خواره زاغان ګډ وډ
توري زلفې د دلبر شوې راخورې د خط د پاسه
یا ماران مورچه کان نښلي یا سنبل کو ریحان ګډ وډ
که صېح رنګ سره د کفره لهٔ اسلامه ګډ ون نشته
و لیکن پهٔ قتل عام کښې شي کافر مسلمان ګډ وډ
نرګس زېږې سترګې زانګي د حېرت پهٔ باغیچه کښې
تر ابده منفعل کړ د ساقي منګران ګډ وډ

چې د کلو خاص نعمت وه د بورا په توره خوله وو
ناګها ترېنه خزان کړ د نعمت دوستخوان ګړ وو (۸۵)

دے دستور سرے له غمه په د نیا باندې ګړ وو شي
ولې ما اکثر لیدلي چې پراته وي شادان ګړ وو (۸۶)

شکایت له خلک مه کړه په هر حال له رب راضي شه
ګدایان صدر نشین شي کړي له تخته شاهان ګړ وو

که عزت دے که ذلت دے همګي بند په قدرت دے
کاسات به په یو دم کړي د قدرت سپاهان ګړ وو (۸۷)

چې خواره په درست جهان وو د اشد کفر فوجونه
هغه فوج د کفر مات کړو د عربو سلطان ګړ وو (۸۸)

چې د کل خلقت سبب دے نازنین شاه عرب دے
په صفت کښې یې رفیق شي له لذته پېچان ګړ وو

---

(۱۳)

«۲»    «۱۶۸»

ستا د هجر خار وخنده چې کړې شیرې د زړه ګنده
عاشقان شه په امان کښې له دې دا رنګې غوښمنه (۸۹)

رقیب دا رنګې پلید دے (۹۰) لکه سګ د پلید (۹۱) وند
بې لحاظه دے بې دینه له حیا څخه بربنده

د عاشق د آه په پلک رب کا مات دده مرکنده (۹۲)
چې یې نیت د لغزول شي شي شبرین لکه د کهنده

د شکرو په نوم ګوره　　خرڅوي د شګو[۹۳] پنډ

درته ناست په سمه لار کښې　　چې غلط کړي درته منډ[۹۴]

داړه قوم يې خارښتي دے　　غوړځوي په ځان لونډ[۹۵]

په دا خوږ زبان يې مه شه　　ويه کړي له تا ملنډ[۹۶]

ترې امېد د مېوې مه کړه　　د شجر اصل دے شنډ

بار تړه "محمد رفيقه"
دا کاروان نه کوي ځنډ

---

# " ذ "

## (١٤)

<< ١ >>

په خوږو شونډو د شاهد کښې چې شربت شولذيذ

چې يې جنت د وصالت په تمنا کوي ژوند

هسې دايم چې په چشمه کښې يې قايم شو حيات

هغه چشمان چې شو پر نورله هغه مخ د رحم

په[٩٨] نازنين لاس دې مضطريم چې تکليف يې ولید

څه شو که پروت يمه محروم له دولت د وصال

ثنا صفت دے د خالق چې ناخبر دے رقيب

دغه زما بخت بيدار دے چې په تا شوم شيدا

اګرچې زيات مې فلاست[٩٩] شه له ګردش د فلک

که کمربند سکندري هفت چشمه کړم ترملا

<< ١<١ >>

په هشت[١٠٠] بهشت کله پيدا هسې نعمت شولذيذ

په تمنا د وصالت کښې يې جنت شو لذيذ

ګوره کوثر يې پر اثر د وصالت شو لذيذ

هغه وجود له نبه معبوده په رحمت شولذيذ

اګرچې ماله ستا د لاسه جراحت شو لذيذ

زما په ځان ستا د هجران درد و محنت شو لذيذ

ګرچې خسته لره دې زخم د فرقت شو لذيذ

د کوڅې خاک دې په صد شوق ماته دولت شولذيذ

په محبت دې يم غني دا فلاست شو لذيذ

د هفت اقليم له سلطنت دې محبت شولذيذ

محمد رفيقه شه بيدار د صراحي په آواز

له سل سرود[١٠١] يې قلقل[١٠٢] په سماعت شولذيذ

## "ر"

---

(۱۵)

<< ۱ >>     << ۲۲۰ >>

خاک و خس یم ستا د در    ږده قدم زما په سر
که پوښتنه کړې چې څوک یې    زهٔ دې چېړ یمه کمتر
یو مې مهٔ شړه لهٔ دره    نور اختیار لرې دلبر
پروت دې خاص قدمبوسه ته    پهٔ هر شام و هر سحر
چې مې دوه سترګې څلور شوې    ستا پهٔ لور کوم نظر
تهٔ مې صبح د ژوندون یې    تهٔ مې میاشته د اختر
تهٔ زما د ځان دوا یې    تهٔ ملهم مې د پرهر
بې لهٔ تا مې پهٔ چا نهٔ شي    تسلي د خوږ ځیګر
تهٔ ساغر یې د حیات یې    تهٔ زما آب کوثر
تهٔ زما باغ و بهار یې    تهٔ زما ګل یې صدبر
تهٔ زما شاه شاهان یې    تهٔ مالک زما د سر
تهٔ صاحب زهٔ دې بنده یم    تهٔ سردار زهٔ دې نوکر
تهٔ مې جام د ژندګی یې    تهٔ شفیع مې د محشر
پهٔ جمال او پهٔ کمال یې    پهٔ فرقان د رب اکبر
تهٔ بشیر یې هم نذیر یې    پهٔ کونینو مشتهر [۱۰۲]
تهٔ محمود یې تهٔ احمد یې    محمد خیرالبشر
د خالق صلوٰة سلام دې    وي پهٔ تا پاندې اکثر
پهٔ نسب سلیم قرېش یې    لهٔ قرېشو عالی تر

برابر ستا لهٔ سپي نهٔ دي    که دارا که سکندر

لهٔ دوزخه بې پروا دي    ستا د مینې قلندر

د در خاک ته دې آرزو کا    که څوک تاج لري د زر

ستا د در چواړي خاندي    پهٔ خاقان(۱۰۳) او پهٔ قیصر(۱۰۴)

د همت پهٔ خزانه دې    پهٔ یو شان سنګ و ګوهر

د عرب بلاد پهٔ تا شو    روشنتره لا تر نور

مدینه شهر المداد دے    مدینه رشک القمر

مدینه تر عرشه لویه    مدینه د ژوند ثمر

مدینه رشک الجنان ده    پرې جهان شو معنبر(۱۰۵)

مدینه ځ د تعظیم دے    پهٔ تکریم شو مستتر

مدینه دې پایتخت(۱۰۶) دے    اې سلطان د بحر و بر

دا زما د تن خسته    خاس د فضل پهٔ صرصر

کړه ګوزاد پهٔ مدینه کښې    دبه سوال کوی کهتر

دبه روے د خپل حبیب کړه    سوال مې مهٔ کړه منحصر

هم سره له جانې دوسته    ما بنده کړه د سرور

چې دانجه یې لهٔ کوڅې کړم    پهٔ دوو سترګو خاکستر

هم زما د تن بستر کړه    صغه خاک مشک ازفر

قربانې مې د روضې کړه    دا زما روح مقصر

دا دې عین عنایت دے    دا دې فضل دے بهتر

مسکینانو ته نژدې یې    لهٔ مسکین یم منکسر

خاص ددې انعامې(۱۰۷) خدایه    امید وار یم سر به سر

که "محمد رفیق" یې سپے شي

دے لهٔ بخته بختور

(۱۶)

<< ۲ >> << ۲۳۴ >>

زلفان دي پهٔ مخ دي تار پهٔ تار تار تار
یا خور بن د سنبل شو پهٔ ګلزار زار زار

کاکل دي تسلسل کا پهٔ عارض باندې سیمبر
یا تاب پهٔ سر د ګلو خوري ښامار مارمار

افسوس مې پر پتنګ دے چې یې خنګ[۱۰۸] پهٔ لمبه د سهٔ
صحیح حال یې نهٔ شو شمعې ته اظهار هارهاً

یادهٔ دوره د مینې چې عاشق یې مضطرب کو
یا چرخ پهٔ دوران باندې د واد[۱۰۹] وار وار

حسرت دے پهٔ شهدا چې شو بسمل پهٔ تیغ د هجر
معلوم یې پهٔ شاهد نهٔ شو تیمار مار مار

هر درد چې سر سري وي پهٔ کم لطف د یار دردمي
صیقل نهٔ شي خوږلے د زنګار ګار ګار

هرګز د نیکي طمع لهٔ رقیب پلیده مهٔ کړه
پیدا کو رب پهٔ اصل کښې مردار دار دار

ګلریزه شو ګلبن دوباره بیالهٔ خجالته
عصیان چې پهٔ ګلشن داغ دلدار داردار

پروانهٔ د جنت نهٔ د دوزخ کا بې لهٔ یاره
مستان یې لهٔ عقل نهٔ ځي میخوار خوار خوار

پهٔ پیاز باندې دا نامهٔ کړه قیمت د مڼې خرڅ
مخلوق به خنده وکړي د بازار زار زار

ناکسه زمانه شوه تربیت کړي د ناکسو
کارغه لکه طاووس شو جلوه دار دار

اکثر شریف به ګوري د نااصلو مزدوري کا
خوسګ پهٔ دا زمان شولو سردار سردارسردار

دښمن د چاریارو د حضرت خالقه غوڅ کړي
ګردن یې د علي پهٔ ذوالفقار[۱۱۰] قار قار

پوسان که د مَنْ اَنْتَ[۱۱۱] لهٔ تاشي "محمد رفیقه"
خاص پیدا یے د سلطان د بشهٔ دربار بار بار

---

## (۱۷)

<< ۳ >> — << ۲۴ >>

ستالهٔ مخه شر منده دے پهٔ فلک بدرمنیر — پهٔ تعظیم ستا د درگا دے که سلطان دے که امیر

لاندې باندې سلاسل دي دا شکن پهٔ شکن زلفې — چې دلبر پرې باندې کاندي د عشاقو دارو گیر

مشکین خال یې پهٔ لنګر دے پهٔ بندر د روم ختا — ټیک یې شاه سکندر دے ترې یې لاندې کړ سریر

هزار زړونه د عاشقو د ښو پهٔ سیخ پېلي — تش کوګل پسې روان دي بېدلان خسته ضمیر

پهٔ کوشه کښې د خوبانو د ښتلیو حساب نشته — هر احد چې دے وځغلي شو فنا د عشق پهٔ تیر

د ګلرخو ته د لرې د ش دې څهٔ حاجت نشته — د نظر باز د ورایه پهٔ هر خوا کوي نخچیر[۱۱۲]

چې راځي د ښکار لهٔ د شته محبوبې پهٔ نیت د ښهر — وحشیان بې لهٔ کمنده پسې درومي دا منګیر

چې آهو ترېنه رم وخوړ هغه سترګې کله رم کا — څو یې نهٔ دے تسخیر کړے د دوران صغیر کبیر

د زینت لښکر یې جوړ کړ بیا پهٔ ملک د زړونو تاخت کا — یا فتاح فتح درکړې چې دې ښ داولې اسیر[۱۱۳]

قریشئ عربي سرداره اُمّ البخت دې پایتخت دے — بې ادبه یم که بولم ستا عرب جنت نظیر

اې عالي د نور سراجه پر شرف درة التـ جه — اې کریم ، حلیم سراجه هم خوشبویه ترعبیر[۱۱۴]

زما نه شوله خوشبویه تر محشره پهٔ تالویه — د ښمنانو دې ښکر دیه رقم ښکل کود تسخیر

د سګانو د قدم یې شه فدا " محمد رفیق "

د درانهٔ باردي شفیع دے پر هغه یوم[۱۱۵] العسیر[۱۱۶]

## "ړ"

(۱۸)

<<۱>> <<۲۵۶>>

د دنیا طالب ګیدړ پهٔ حرص باندې ککړ

د خشکي لهٔ زوره دې شي دے پهٔ کال نهٔ خوري غوړ

پهٔ هر ځلے وي شرمېدلے لهٔ حیا نه وي لغړ[۱۷]

چې د ولږې زور پرې راشي[۱۸] پهٔ سایه پروت وي د بړ[۱۹]

وطالب ستے وي پسونے[۲۰] خو آخر ترې پټ کړي چړ[۲۱]

که بې جرمه یې مضروب کړي[۲۲] څوک یې نهٔ ځي پهٔ ملاتړ

که درویش وته نژدې شي څټ کښې وخوري ترې لَوَړ[۲۳]

همېشه بې ځان وي وړے یا بې وي پهٔ نس کښې اړ[۲۴]

نور یې مهٔ ستا یه "رفیقه"
ډوب پهٔ ړب کښې شه د خوړ[۲۵]

(۱۹)

«۲»

په چمن کښې صبحدم ګردش نګار کړ
د یو نور دپاسه سل نوره ښکاره شو
په نګهت (۱۲۷) یې شګفته شوې غنچې واړه
سرو ناز یې د قامت (۱۲۸) له انفعاله
له حرامه یې خرام (۱۲۹) ونیوه زدکې
تکلم تر ښه د ناز زده کړو طوطیانو
چې ښکاره یې مرواري غابښ شوله شونډو
له ګلزار یې د عذاره خور آثاره
د تحرو اشیانې بیا په بوستان شوې
ګلو واچوه زهور د سرو د سپینو
دراهم (۱۳۲) د سمن توی په خیابان شوو
هم ریخته کړه سره مهران واړه ګلابو

«۲۶۹»

یو بهار کښې یې ښکاره دویم بهار کړ
چې چمن یې همګي جنت آثار (۱۲۶) کړ
شګفته ګل یې له حسنه شرمسار کړ
سر یې ښکته د زمین ته نګونسار کړ
په صفحه د خیابان (۱۳۰) چې یې رفتار کړ
چې یې غوږ د شکر بار (۱۳۱) په ښه ګفتار کړ
په ورق کښې یې د ګل شبنم آبدار کړ
هر ګلبن ترې په ګردن د ګلو هار کړ
چې خالي یې ترې همه دښت د کوهسار کړ
چې ښکاره یې ورته سرخ او سپین رخسار کړ
تازه تر یې سر ته سره سمنزار کړ
چې هر یو یې د ګلرخ تر قدم ذار کړ

دا به عین د " محمد رفیق " طالع وي
که یې پیې د محمد نبي مختار کړ

# «ز»

## (۲۰)

«۱» — «۲۹۱»

په هر بار چې سترګې پورته کړې د ناز
آشفته[۳۳] کړې صد محمود و صد اياز

چې دا ستا د محبت سخ[۳۴] به په بل کا
ګويا غواړي د مېنې لذت له پياز

هر چې ستا و شوخو سترګو ته اقدام کا
کبوتره په نخچير ورځي د باز

هر چې ستا په محبت کښې مرضي شو
تر محشره دا مرض شي پرې دراز

پورې اوسه تل زما د زړه په شمع
چې مې تل وي ستا دعشق په اورګداز

رب دې ورکاندې ښکې په دواړه کونه
چې په غم کښې دې له ما شولو انباز

د رقيب له مکره تل يمه په وېره
راته[۳۵] ښيي هزار دامه دي د آز

په کوخه کښې دې يو سپه کمينه زه يم
له خپل سپي کمينه نه شې بې نياز

که دې نيت سلامتي دخپل عاشق وي
غوږ کښېږدې په خبرو د غماز

د عاشقو[۳۶] دلبري په دلجويي شي
نه[۳۷] په دا چې ترېنه تل کړې احتراز

کوم سلطان د رعيت نوازنده دے
لکه ته يې د عاجزو دل نواز

سرفراز دې شو عاشق په دواړه کونه
دا په دا چې يې شاهد دے سرفراز

له نعمت د هشت بهشته بې نياز دے
چې د وصل په نعمت دې شو ممتاز

د هر عشق اول شته آخر يې نشته
ستا د عشق دے کامل آخر آغاز

په اوبو يې ستا د مېنې خمېره کړ
چې وجود مې د قدرت ملک کړو ساز

ربه ما له هغو خلقو په امان کړه
چې طوفان يې په ډکه غرق کړ جهاز

په قلزم کښې مې د مېنې شنا ورکړې
ما[۳۸] کړې پورې خاص د فضل په شناز

دېر يقين څه په اسلام د هغو نشته
چې دعوه کړي د اسلام وي بې نماز

چې دعده له مسلمانه په نفاق کا — شریعت کښې یې د قتل دے جواز

ولېکن په جهان نۀ دے چالیدلے — چې غراب کا د بلبل غوندې پرواز

هرچې هسې منافق بې دیانت وي — د غم فوج دې باندې تل کړي ترک وتاز[۱۳۹]

که شیراز[۱۴۰] د پارسي شعر دے رفیقه

پېښور شو په پښتون دویم شیراز

(۲۱)

«د ۲» — «د ۲۹۸»

د ساقي له جام به نشه محترز[۱۴۱] — په گردن یې لرم طوق د زلفو قز[۱۴۲]

خاک و خس پرې د جهان عنبرآثار شو — په کاکل یې کړي نسیم د سحر وز

په چمن تاخت کړي پوځونه د مارانو — که یې زلفې په رخسار کړې خېز وخز[۱۴۳]

په یوه دم باندې پوخ قرص د سنگ شي — که د ذرۀ په اورمې[۱۴۴] پورې کړي نان پز

دغه باغ به د شاهي شي اې باغبانه — که نهال پکښې تاکونه کړي ددز[۱۴۵]

چې د عشق په زلزله یې زړگے چاود دے — د شیون وینا کوه، لکه د غز

عیب جویي به د بېدل «رفیق» ونۀ کا

که په لاس کښې څوک لري د انصاف گز

( ۲۲ )

«۳» | «۳۰۵»

د دنیا یار و عزیز ! — دي احمق او بې تمیز

زړهٔ زما یې مستغرق کړ — پهٔ راوخوت د غم منیز[۱۳٦]

د هر کس پهٔ خولهٔ کښې بوے دے — هم د هوږې[۱۳۷] د گشنیز[۱۳۸]

ما وتهٔ شکل دلبره — ستا د سرو شونړو موېز

پادشاهي د انسان لاړه — پهٔ تخت کښیناستلو بېز[۱۳۹]

ستا دپاره به حاکم وي — پهٔ مجلس کښې ولي تېز

دُر د شعر دي "رفیقه"
نابینا ته دے هیڅ څیز

# " ژ "

## (۲۳)

<< ۳۲٦ >>

| | |
|---|---|
| د ناصح نصیحت ژاژ [۱۵۰] | راته داکړ وقت ژاژ |
| دے زما ممانعت کړي | د ساقي لۀ خدمت ژاژ |
| راته وايي مستغني شه | دے د عشق دولت ژاژ |
| دغه بار لۀ سر گوزار کړه | دے دا درد و محنت ژاژ |
| عاشقان داړه نېکان دي | دے يې کړي مذمت ژاژ |
| رهزنان د دغې لارې | پۀ آخر کړي حسرت ژاژ |
| دا حسرت يې څۀ سود نۀ کا | وي يې دا ندامت ژاژ |
| زۀ بنده خاص د ساقي يم | نۀ لرمه نيت ژاژ |
| دريا کليم مې وسو | نۀ کوم عبادت ژاژ |
| پس لۀ دې به شراب څښمه [۱۵۱] | نۀ دے دغه شربت ژاژ |
| که نعمت دے هم دغه دے | نور دے واړه نعمت ژاژ |
| عزت دا دپۀ مېخانه شه | نور دے واړه عزت ژاژ |
| مۀ راکاږه پۀ سر باندې | د دنيا مصيبت ژاژ |
| دنيا ناوې بې وفا ده | کړي شوهر پۀ ساعت ژاژ |
| د دے دام رنگينه اېښے [۱۵۲] | وڅړني تا پۀ حکمت ژاژ |

هر یو کار ددې جیغې دے　　پهٔ حدیث د حضرت ژاړ

سلامت پهٔ عقبیٰ بنهٔ دے　　دے ددې سلامت ژاړ

عبث تا وته ښکاره کړي　　دغه زیب ، زینت ژاړ

د صاحب د دنیا مهٔ بړده　　پهٔ ځان باندې منت ژاړ

(۱۵۳)

د حشمت د خاقان درشي　　دے دا واړه حشمت ژاړ

شو پهٔ دا محمد رفیقه

د دنیا سلطنت ژاړ

---

## "س"

(۲۴)

دد ۱ ›› — دد ۳۳۹ ››

تیک یې ناست دے پۀ مسند د جبین پاس — گویا بدر زهره دنیوه پۀ لاس

مشتري یې حضرت خضر شو پۀ عمر — د مخ خال یې غلام دنیو پۀ نخاس

چې سرود یې حلاجد د باز و بند کا [۱۵۴] — قاضیان د رقص وتړي مواس

چې نسیم یې پۀ هر تار د زلفو لګي [۱۵۵] — د بهشت غوندې راځي تړې خوش انفاس

چې دلبر دغوړاوه بازار د حسن — جنتونو تړې قرض کړي څو اجناس

چې ساغر کښې یې د عمر درازي ده — کړه یې شونډې پۀ پیاله دے انجماس

عاشقان یې د نظر پۀ تیغ حلال دي — بې نیازه دي لۀ تیغه هم لۀ طاس

چې ژړا یې مدام د عاشق زار وي — شګوفه یې د سرو ستر ګو شوه آماس

لۀ دنیا چې یې پۀ مینه مفلسان دي — سلطانان دي پۀ عقبیٰ دغه افلاس

پر نیا ان یې د جنت داړه مشتاق دي [۱۵۶] — هر چې خوب یې کا د میخې پر پلاس [۱۵۷]

پۀ اغیار مې یې دیدار کله پېرزو شي — یو عاشق یې لۀ دیداره مۀ شه یأس

ګمراهان دي رهزنان دعشق د لارې — امان راکړه مِنَ الجِنَّةِ والناس [۱۵۸]

که دعشق تندر یې راغ لۀ آسمانه
محمد رفیق نیولے ورته راس

## (۲۵)

«۲» «۳۵۴»

د نیا ناوې جلوه گره تر طاووس — د زینت په صدر باندې کا جلوس

چې په سل فتنه فریب ئې آراسته کا — زاهدان کړي ورغلان[159] دغه عروس

دا دربار به آخر پاک کړي لهٔ دوستانو — چې یې تل پهٔ اذان بولي د خروس

د طلسم د لغاتو یې حل نشته — بې پرهېزه لا پهٔ درې زره قاموس

رستم طوره کمانکش کمند انداز شه — که دې نفس اشکبوس[160] دے یا کاموس[161]

د غېرت مخ دې گردانه لهٔ دنیا کا — چې تور نهٔ شي په قیامت کښې تر ابنوس[162]

د همت د توکل لباس دربر کړه — بیا چې عمر پسې خورې هزار افسوس

که پهٔ عشق د شاهد کښې درو مجنون شوې — پهٔ سوله[163] به دې د ادر کاندې معکوس

د دنیا بې وفایې ته نظر وکړه — چې یوسف یې کړلو خرڅ پهٔ څو فلوس[164]

که دې ناوې د دنیا پهٔ شهوت بېکل کړه — پرې به بایلې د جنت کنارو بوس

تل عزت یې پهٔ گنبد د آسمان باندې — پهٔ رفتن ددې راغلي کاروان کوس[165]

څوک د شپې پهٔ تللو پرېوتل گړنگ ته — چا د وړاندې چراغ بل کړو د ناموس

چا اذان د حق کړو پورته پهٔ مسجد کښې — چا پهٔ دین کښې آواز هسک کړو د ناقوس[166]

د وحدت د سپاهیانو رب حافظ شه — په دا پول یې شتابانه ځي فروس[167]

که یار ئې پهٔ دوشاله ونغښت رفیقه

نه پټېږي نور د شمعې[168] پهٔ فانوس

(۲٦)

<< ۳ >>

زړهٔ دې وړے د دنیا هوا هوس

کله وشي جنړې د زیارتونو

دا پهٔ دا چې کروړي ښم یا لکي ښم

د ایمان سوال درنه هېر شي پهٔ دعاګښې

نهٔ به تا وېره د نیا لهٔ عذاب خلاص کا

د دنیا پهٔ طلب هسې لیونے یې

دا مرغه به دې د زړهٔ درنه وحشي شي

بې لهٔ خدایه به دې هیڅوک پهٔ کار نشي

عاقبت به دې دښمن د دین ایمان شي

جدا یې یې بې لهٔ عقل کامل نشي

پهٔ مطلب کښې به شاعر د زمانې وي

دا انسان ګذران به څهٔ رنګ لهٔ دهٔ وشي

پهٔ پرکار کښې د دنیا دې پهٔ دهٔ بانديې

<< ۳٦۸ >>

لهٔ خالق کړې شکایت پهٔ هر نفس

یا پرې بل کړې چراغونه پنځه لس

د حرص سترګې دې نه کړې چرې بس

کړې دنیا یې ډېرا[۱٦۹] لکه جرس

نهٔ پهٔ دام کښې چا نیولے دے ققنس[۱۷۰]

یاد دې د سر د پاسه خاک و خس

ناګها به دې شي مات د تن قفس

چې دې ځے شي د لحد پهٔ خاوره پس

پهٔ دنیا کښې دوستي مهٔ کړه لهٔ ناکس

د طاووس جامه اغوستې دهٔ کرګس[۱۷۱]

د تاوان پهٔ ځے به ځان کاندي اخرس[۱۷۲]

چې نفرت ترې طبیعت خوري د مګس

مقرر وي هميشه د غم عسس[۱۷۳]

پهٔ ناکس چې دې لاس بر شي اې "رفیقه"

پهٔ ګردن کښې ورکوه د نورې تس

# "ش"

(۲۷)

<< ۱ >> << ۳۸۱ >>

پهٔ خاطر خوږ مې دے ستا د بڼو خراش[۷۴] که دا خراش مې پهٔ ځیګر وے مدام کاش

دا څهٔ عیب دے که د یار لهٔ غمه تور شوم سیاه پوش کښې دے سفید مغز د ماش

چې تشنه یې د دیدار شو پهٔ پردېس کښې د نفس په کور یې نه کښېږي دهاش[۷۵]

پهٔ کافه کښې د مردانو بد ناموس شوې ژوند به کړې پهٔ توره شپه لکه خفاش[۷۶]

دیو د نفس که دې خوله واکړي شېرینۍ ته د شربت په بانه[۷۷] وکړه پکښې شاش[۷۸]

صبح د رب لهٔ احدیته خبر نهٔ ده ده د نفس طایفه داړه او باش[۷۹]

چې د نفس پهٔ معاش پسې سس شوې پرې حرام شولو د روح د تن معاش[۸۰]

د مردي[۸۱] پهٔ دوایې کښې منع شوې که ترشي ده د نارنج که د رواش[۸۲]

نیمه شپه یې شه ګدا پهٔ دروازه کښې چې دا سر دې ورقیب ته نهٔ شي فاش

سرهٔ ګلان به دې لهٔ[۸۳] قبره دمیده شي که پهٔ خاوره شې درګېر لکه خشخاش

د کمال ته د قدرت یې نظر وکړه چې خلید یې کړو پیدا لهٔ بت تراش

د عاشق سترګې دې وځي چې یې نهٔ کا معشوقه چې د عاشق کوي تالاش

پهٔ طلب شه د شاهد "محمد رفیقه"
چې د هجر پهٔ تخته دې پروت دے لاش

(۲۸)

<< ۲ >>      << ۳۹۳ >>

غافل مهٔ شه د فلک لهٔ کشمکش — د پر مخلوق یې ستا پهٔ شان دے جفا کش

لهٔ خالقه شکایت په دهر مهٔ کړه — همېشه اوسه پهٔ خپل قسمت کښې خوش

پهٔ لنګر به د تن روم کړې درنه لاندې — سکندر غوندې تاخت وکړه پر حبش

تېر لهٔ تېغه افراسیاب او دیو سفید کړه — زابلي خلاص کا، کاووس او سیاوش

تر قیامت به دې دفتر د تېغ لوسته شي — که رستم غوندې لرې د شېر منش[۱۸۴]

پهٔ باطن کښې د قاتلو زهرو ډک دے — پهٔ ظاهر ملمع د دنیا دے منقش

تر محشره به غافل وي لهٔ خاونده — چې لهٔ میو د دنیا شو رشحه چش

تر شهېرې[۱۸۵] دایمې یې سختي زیاته — که درپورته شو ددې تبې تفش[۱۸۶]

پېروي د قال الله قال الرسول کړه — مسلمان لره پهٔ کار دے دا روش

د نفس کوډے ډک مهٔ کړه پهٔ حرامو — چې قالب دې لهٔ ایمانه نهٔ شي تش

لهٔ دښمنه به پهٔ نېک خصلت خلاص نهٔ شې — کړه پهٔ تېغ د قناعت یې سرزنش

د اکوان[۱۸۷] پهٔ نیول څې " محمد رفیقه"
تهمتن[۱۸۸] غوندې محکم کړه یال و فش[۱۸۹]

(۲۹)

<< ۳ >>

تن دې زمکه شوه بې برو ښسته حشیش (۱۹۰)

د نفس په ډکولو حیران ناست یې

اصل نوم دې مکرم (۱۹۲) او سر بلند دے

فراخي لرې د نفس هومره خېته

خو دې توان وي د ساقي هومره خدمتګر

که پکار دې خسروي د روح جاویدوي

<< ۳۰۰ >>

لوے شکم دې دے انبان تغی دې ریش (۱۹۱)

لکه غټ ومنږک ته ناست وي پیش

نفس نوم دړباندې کېښود له تریش

چې به هومره خېته نه وي د حریش (۱۹۳)

دا خدمت دې دے د تن د روح معیش

ته په ځان باندې قبول کړه دا تشویش

کړه د هجر تلخي نوش " محمد رفیقه "

که په کار دې وي د سرو شونډو کشمیش (۱۹۴)

---

(۳۰)

<< ۴ >>

کند په سر کړه شه په در د یار درویش

د وصال نعمت به خوند درله درنه کا

سل دیهیم (۱۹۶) سکندري به یې محتاج شي

خسروي یې د بهشت په نامه ښکلې (۱۹۷)

که خاوند یې مستغني له هر حاجته

په حرص به د احمق چرې زیات نه شي

<< ۴۰۷ >>

سخت قبول کړه په ځیګر د فاقې رېش (۱۹۵)

خو و نه خورې له هجرانه هزار نېش

که دې سر کړ صدقه د یار ته پېش

هر عاشق چې شو له شرکه صفا کېش (۱۹۸)

خو بنده دې وي حاضر په خدمت خوېش

هغه رزق چې مقسوم دے کم و بېش

کړه هزار ثنا صفت " محمد رفیقه "

چې یې درکړ (۱۹۹) عاشقي د قسمت وېش

(۳۱)

<< ۵ >>     << ۳۲۳ >>

چې پهٔ عرش بانديې قدم دے د درويش — پهٔ هر تخته تخت سم دے د درويش

چې ليدلو د شاهد ته يې تلوار دے — د دنيا عمر ماتم دے د درويش

ځهٔ حاجت يې د ارم[200] پهٔ سکونت دے — درد د يار باغ ارم دے د درويش

د دنيا کور يې درويش لره ورنهٔ کړ — عرش د پاسه کور و چم[201] دے د درويش

پهٔ عزت بانديې عزت د فقير لوے دے — منافق ته قدر کم دے د درويش

چې پهٔ ځان يې د دنيا نعمت حرام کړ — آخرت دارالنعيم[202] دے د درويش

د فلک خم به لهٔ نصې طوره نهٔ وي — لکه قد پهٔ بندګۍ خم دے د درويش

پادشاهان که پهٔ دنيا حکمراني کا — خو ښکل کړے يې قدم دے د درويش

د مرهم حاجت يې زخم لره نشته — د شاهد مهر مرهم دے د درويش

پهٔ ژوندون بانديې يې سپر دي ترجنه — چې ژوندے ځان منعدم دے د درويش

چې قارون يې کړ لهٔ ګنجه ښخ پهٔ زمکه — حکم دا رنګې محکم دے د درويش

خسروان پهٔ ذريات کښې د آدم شو — زر خريد عرب عجم دے د درويش

د دنيا سلامتي يې پهٔ کار نهٔ ده — پهٔ عقبیٰ دارالسلم دے د درويش

د سمبورو[203] زندګۍ ورته غم ښکاري — د لق لاندې زړهٔ خورم دے د درويش

د آدم فطرت به ځهٔ له دهٔ سيالي کا — چې خطاب خير الامم دے د درويش

د ديدار وعده يې وکړه لهٔ درويشه — ځهٔ که ژوند پهٔ درد وغم دے د درويش

چې شوه سخته بې وفا محمد دقيقه

لهٔ دنيا ځنه قسم[204] دے د درويش

## «ص»

---

(۳۲)

«۱»

لهٔ ناهید چرخ فلک ویـنم رقاص [۲۰۵]

پهٔ تصدیق سره زهره شوه دنورسترګه [۲۰۶]

زر پوشان یې پهٔ دنیاکښې عاصیان کړهٔ

سلامت راشه لمن لهٔ دُرو پرُه

تلل یار یو خلې بیا راشه دنیا ته

که پهٔ کار دې معیشت پهٔ ملک آباد دے

کړې سختې ددې دنیا پهٔ ځان قبوله

«۴۳۲»

غرور واخیست لهٔ هاروت ماروت قصاص [۲۰۶]

پهٔ لوېې شو اوښان ملک خواص

دکلیم لاندې یې ځ وینم د خاص

پهٔ قلزم غوټه وهلې ده غواص [۲۰۸]

چې معلوم کړې د یارانو اختصاص

آبادان چمنستان دے د اخلاص

چې وجود دې لهٔ جاوید سختې شي خلاص

د بدانو تر خوله بد خبري «رفیقه»

پهٔ دهن کښې یې شه توے کړم رصاص [۲۰۹]

---

(۳۳)

| << ۲ >> | << ۴۴۰ >> |
| --- | --- |
| چې دلبرې لهٔ وطن شو مرخص[۲۱۰] | لهٔ هغې ورځې مې ژوند دے منغص[۲۱۱] |
| پس لهٔ مرګه د عاشقو وصالت دے | پهٔ دنیا دے څوک لهٔ هجره مخلص[۲۱۲] |
| پهٔ بهشت شوه بادشاهي دهغوجوړه | چې پهٔ مینه دشاهد کښې شو مختص[۲۱۳] |
| چې آدم د استغفار ډيوه کړه بله | وهٔ یې موند د کلمن[۲۱۴] سره سعفص[۲۱۵] |
| پهٔ دنیا یې سلطنت دوباره وشو | شو حوران د جنتونو مرقص[۲۱۶] |
| د ایرج[۲۱۷] د ځان به سل افسوسه وکړې | که دې واریدهٔ د سلم وتور قصص[۲۱۸] |
| چې یوسف(یې) بې ګناه دویشت کړنګ ته | پهٔ توبه یې وموندل د نور حصص |

پهٔ توبه د نصوحې ټینګ شه "رفیقه"
چې دارد دے پهٔ توبه د نصوح[۲۱۹] نص[۲۲۰]

## "ض"

(۳۴)

<< ۱ >>     << ۳۵۱ >>

نن چې بیا سحر سبا کړ د ساقي په دربار عرض    وشو غږ چې په دادرکښې دې قبول د سهار عرض[۲۲۱]

د دربار د نیول منرور دي په کوڅه د شاهد کوډ    چې وه دوي ته زیات قبول دے خصوصاً د دربار عرض

که سلطان د دې دنیا دے درتله بې وسیلې نه شي    که یو ځل یې ترغوږ نه شي ورته کړي په تکرار عرض

د وحدت ساقي ته ګران دے رسیده بې د رهبره    له کامل رهبره دروه چې دې نه شي بېکار عرض

په پرکار د کن فکان کښې د عاشق بهره شوه محور[۲۲۲]    چې د جاء دوصالت کانه کوې په تلوار عرض[۲۲۳]

امید شته چې بیا بهار شي د جهان په ادیره کښې    بېګا بیا ګل و بلبل کړ ستا د مخ په بهار عرض

حیراني د محفل لاړه خاص خبر د عشق په سر شو    د پتنګ له سولو شمعې کړ په جمعې اظهار عرض

د رندانو په کافه کښې جرعه کش[۲۲۴] باده پیما[۲۲۵] شه    چې دوبار په تا ونه کا زمانه د تیمار[۲۲۶] عرض

په درګاه یې د عزت کښې عرض قبول د عام و خاص شي    که یې کړې کله د دېرې ستا د مینې بیمار عرض

په دوطه د اجابت دے بې پرواه کم و بېشه[۲۲۷]    څو چې کړي هوسره قبلېږي د بسیار و بسیار عرض

ګرېخته د شمع کراتو ستا بنده "محمد رفیق" دے

اوس په عین لطف قبول کړه د بنده شرمسار عرض

(۳۵)

<< ۴۵۹ دد        << ۲ دد

د وجود په عرض د طول دي دي واجب د حق فروض[۲۲۸]

ګوره يونښې لحدله په ګردن باندې قروض[۲۲۹]

د ساقي د وحدت ے کړه ته د تن په صراحي کښې

له آياته له حديثه شو په تا باندې مفروض

د فرقان په لار فرقان کړه د حلالو د حرامو[۲۳۰]

پردے بار له ځان ګوزار کړه هسې مه درومه مقروض[۲۳۱]

له حسد سينه کړه پاکه آلوده مه ځه ترخاکه

شو جاوېد په دوزخ پاتې د مومن د ځان مبغوض[۲۳۲]

تل د مينې په ورطه کښې بې له خدايه سايد مه شه

محبت کښې دانسته کړه همېشه ځ د معروض[۲۳۳]

ستا غرض به روانه شي په تسبيح دريا باندې

سحر ورشه ميخانې له چې ادا دې شي غروض[۲۳۴]

د عاشق حالات به نه وي په يو شان له قبضه بسطه[۲۳۵][۲۳۶]

چې تر عرش يې راے العين ځي شي هغه نظر مقبوض[۲۳۷]

که په سجع خطا لاړ شي عيب جويي د "رفيق" مه کړه[۲۳۸]

چې انسان بې خطا نه وي نه يکسان لري عروض

---

## «ط»

---

### (٣٦)

«١» «٣٦٦»

عاشق نه کا ددنیا په څه نشاط — چې دنیا ده سراسر د غم رباط

هغه دم به بدل نه کا په کونینو — له شاهد سره که کښیناست پربساط

په هر ګل شي سایه بان چتر د زرو — د ناز فرش چې په ګلش کړي انبساط[239]

چې بېدل ورپسې ژاړي اوښکې وینې[240] — مرواري کړي له مرجانه اختلاط

ګوشت وخون پکښې ګرشوے د شاهانو — بنادي نشته د غبرا په دا سماط[241]

در په لاس به پنځه دره د راستۍ کا — په درې حرفه کښې د عشق پنج نقاط

چې حال د امانت یې کړي «رفیقه»[242]
رب دې در نه کا ددې حمل اسقاط[243]

---

### (٣٧)

«٢» «٣٧٨»

د یاد څه له نور د خدایه رب دې نه کړي ما غلط
اراسته دده له څه دے تل د مصر[244] وماه نمط[245]

دا یې خط دلبرې دے د رخسار په صفحه باندې
که دا ښکلا بنفشې دے چاپېره له سمن خط

د یار عشق بحر اعظم دہ طے زما شنا وري شوہ
اوس لاهو پکښې خوشحال یم دے ولاړ داته پهٔ شط (۲۴۶)

چې ملکو پهٔ سه یاد کړه خمبیرہ د آدم خاورہ
غم یې ګډ ددهٔ پهٔ خاک کړ شولهٔ خاکه مختلط

ببغمي به کړي حصوله پهٔ پرکار د کن فکان کښې
که دې نوش پهٔ مبحدم کړ د ساقي د میوبط

که عاشق څخه پرسان کړې چې به پاتې څهٔ باقي شي
بې دیار لهٔ پاکه نومه نور څهٔ نشته دے فقط

څهٔ زما اختیار نهٔ دے مېخوري ناصحه پیرہ
دا مې بښکلي پهٔ قسمت دي راته مهٔ وایه سقط (۲۴۷)

چې لهٔ ما د عشق پهٔ لار کښې پهٔ پردېس کښې کمک کاندي
ګویا زخم زولن باندې خریطه بردي مخرط (۲۴۸)

پهٔ ګدا کښې د دیدار یې دویې نشته دویي نشته
پهٔ تفریط کښې د شاهد وي همېشه دے مفرط (۲۴۹) (۲۵۰)

آفرین چې د در خاک یې کړو شپدا رانجه د سترګو
د رحمت نسیم پهٔ دهٔ وي لهٔ تسلیمه مسلط (۲۵۱)

د دلبرته تله پهٔ لاس مې سرخطي د بندهګي دہ
بختور یم که قبول شو دا زما سروس خط (۲۵۲)

تمسک (۲۵۳) د غلامي خپل ورکړہ تهٔ " محمد رفیقه "
پهٔ دا خپل قلم دې وکړہ لاندې باندې پرې دستخط

---

(۳۸)

<< ۳ >> — << ۳۸۵ >>

د دلبرو د خالونو تور نقوط (۲۵۴) — بوراګان شو لهٔ سمن سره مخلوط

بلبل هله شي د ګل د بوی‌ولو — چې د هجر خار یې وزغمه مضبوط

وصل نهٔ دے چا موندلے‌بې د هجره — لازم شوے دے د شرط سره مشروط (۲۵۵)

د عاشق او د معشوق سره حقوق دي — رب دې نهٔ کا دا حقوق لهٔ دوئي سقوط

کله بې شمعې د مخ مطالعه شي — د دلبر د دلبري مشکین خطوط

د یاد غم مې د ځیګر ټوټه کړه بېله — که د وصل خریطه یې کړې مخروط

بختو دو وموندہ "محمد رفیقه"

هر انسان نهٔ شي موندے دغه لقوطٌ

# «ظ»

(۳۹)

« ۳۹۳ » « ۱ »

حبطه داره[۲۵۶] مجلس شي په رقیب مردار غلیظ
بدبویي شي ترې روانه چې کوي گفتار غلیظ

چې د گل قدمبوسې له بلبل لاړو تر چمنه
د ځیگر په څنگ[۲۵۷] یې بیخ شو ناگهانه خار غلیظ

د عاشق لاره شاهد ته وه له خاره خندره صافه
بد رهزن یې پیدا نه شو بې له یو کفار غلیظ

تل پلیت[۲۵۸] لوبنډ زړوکے په ویښځل سره پاکیږي
په ویښځل به لا پلیت شي لکه سگ بسیار غلیظ

نفس شیطان په یو وجود دي دشمنان د حق د لارې
لکه پینې دوه غلیظان شي، شي غلیظ دوبار غلیظ

د شریفو په محفل کښې د خبرو تکریر[۲۵۹] مه کړه
لوے خبر دُرر آموده سپک شي په تکرار غلیظ

که په ملک د صفرا کښې یخني په یخني سره ده
ولې نه په انجماد[۲۶۰] دې شي روان انهار غلیظ

په کافه کښې د غلیظو د حلیم کار به غلیظ شي
په وجود د بدسرشت کښې دایمې دي کار غلیظ

د غلیظ له کار پرهېز کړه په دنیا "محمد رفیقه"
هسې نه چې دې سوخته کا په دوزخ کښې نار غلیظ

## « ع »

---

(۳۰)

«۱»　　　«۵۰۴»

(۲۶۱)
نقد د عمر مې برباد کړ ستالهٔ عشق نهٔ وم مطلع

عاشقان دې د دیدار دي پهٔ یوه توکړه قانع

(۲۶۲)
چې لهٔ خاورو نه پیدا وي څهٔ به ناز و تفخر کا

(۲۶۳)
که مخزن شي د علومو عزازیل غوندې جامع

پهٔ قیامت به لعنت اوري پهٔ کافه د مستکبرو

(۲۶۴)
د ګدا د تندي خاک به تر آفتابه وي لامع

څه د سوال د فقیر نه یې سلطنت ابدي ستا دے

(۲۶۵)
شرمېدلے پهٔ هر دردے چې بې تا نهٔ وي طامع

که ذلیل دے که شریف دے هسګي پهٔ سجده ستا دي

(۲۶۶)
د رحمت باران دې اوري پهٔ ساجد او پهٔ راکع

د مردې وخت پهٔ جهان کښې یو ساعت یوه ګړۍ وي

صد افسوس هزار افسوس دے چې لهٔ ما نه شو ضایع

عاشقان واړه بېدار شو پهٔ اذان د الست باندې

(۲۶۷)
شکر شکر هر دوګوش مې شو لهٔ دې بانګه سامع

(۲۶۸)
که علیا مرتبه غواړې په دنیا کښې درویشي د

منازل یې کړهٔ د خاورې پهٔ کونین مرتفع

کنار تګ د شهنشاه شهٔ پهٔ دا ګنج د خرابه کښې
پاک وجود يې خاص اکسير دے د سخا کرم منبع

که خادم يې پهٔ درګاه شوې خاص د سپو "محمد رفيقه"
سکندر به خاص غلام شي ستا د دا رنګه طالع

(۴۱)

«۲»　　«۵۱۳»

د يار مخ چې کړي شعاع (۲۶۹) نور ترې اخلي انتفاع (۲۷۰)
د ګلرخ د حسن نعت له بلبل کړي استماع (۲۷۱)
هر چې ځي ددهٔ ديدار له څوک بې (۲۷۲) وکړي امتناع (۲۷۳)
چې دده د مخ عاشق وي کړي تر عرشه ارتفاع (۲۷۴)
عاشقي سودا او سود ده که مبيع (۲۷۵) وي که مباع
سبقت (۲۷۶) هغه عاشق وکړ چې پهٔ دا کښې شو سراع (۲۷۷)
شهنشاه د آخرت شو چې پهٔ فقر شو قناع (۲۷۸)
فقيري دين و ايمان ده پهٔ دا شوې ده اجماع

که بې فقره شوې "رفيقه"
نور به واوړې پهٔ نزاع (۲۷۹)

(۳۲)

«« ۳ »»　　　　«« ۵۱۸ »»

ښکاره شوه لهٔ پتنګه د سپین مخ د حبیب شمع
هرګز نهٔ وه موندلې پهٔ پردیس کښې غریب شمع

(۲۸۰)
شاهد مې براېسي لېد پهٔ بالین د محب ګوره
بیمار ته ګڼلې وه پهٔ شپه کښې طبیب شمع

بندي به پهٔ زندان د توري شپې د رقیب نهٔ شي
پر سرکه درخشانه وي دا یم د نصیب شمع

هرګز به چرخ وتهٔ کا بلبلان د اور پهٔ شمعې
(۲۸۱)
لیدلې پهٔ چمن کښې د سور ګل عندلیب شمع

رفتن پهٔ شبچراغ د عقیدت کوه «رفیقه»
پر لار کښې ګڼلې ده لهٔ سحره رقیب شمع

---

# «غ»

---

## (۴۳)

<< ۵۲۴ >> << ۱ >>

دے زما د زړهٔ فراغ ستا د مخ د حسن باغ

ستا د مخ[۲۸۲] د حسن باغ دے زما د زړهٔ فراغ

د لاله پهٔ شان دے داغ پهٔ خاطرې ستالهٔ هجره

پهٔ خاطرې ستالهٔ هجره د لاله پهٔ شان دے داغ

تورکاکل دې پر[۲۸۴] د زاغ خور[۲۸۳] پهٔ څانګه دے د ګلو

خور پهٔ څانګه[۲۸۵] دے د ګلو تورکاکل دې پر د زاغ

سرهٔ چشمان لرې چراغ چې سوزش دې پر پتنګ دے

چې سوزش دې پر پتنګ دے سرهٔ چشمان لرې چراغ

سر زما شو بې دماغ ستا د مینې پر شرابو

ستا د مینې پهٔ شرابو سر زما شو بې دماغ

شکر وموند شو سراغ[۲۸۶] د دلبر «محمد رفیقه»

د دلبر «محمد رفیقه» شکر وموند شو سراغ

---

(۳۴)

<< ۲ >>

مناسب نهٔ دي د يار پهٔ يار دروغ

پهٔ قيامت به د صادقو ځي جنت وي

د رښتينو مال وځان وارهٔ حلال وي

فايدهٔ به د اخلاص لهٔ عمل واخلي

خبر دے خبر که بې اختياره دروغ وشي

پهٔ محشر کښې به بازار وي د رښتينو

پهٔ عزيزه خوله سبک دروغ ښهٔ نهٔ دي

پهٔ دنيا به شرمسار او بسيار خوار وي

دروغ ګو يه پهٔ منزل شو حېران پاتې

بر ملا به يې آخر دغه دروغ [۲۸۷] شي

د تصديق پهٔ صيقل باندې زړهٔ صفا کا

محبت د تصدق [۲۸۸] د يار همراه کړه

دلسوزي به پر پتنګ نهٔ لري شمعه

<< ۵۳۸ >>

مختورن شي چې کوي ګفتار دروغ

پهٔ دنيا کښې وايې تل کفار دروغ

مرداران دي چې کوي ګفتار دروغ

بې فايدې شو د ابليس کردار دروغ

ولې مهٔ وايه پهٔ خپل اختيار دروغ

پهٔ دنيا دے همګي بازار دروغ

بلوي پهٔ ايمان باندې نار دروغ

چې عادت شو د هر کس بسيار دروغ

چا تر ځايه رسولے کار دروغ

چې نيولي يې پهٔ زړهٔ کښې شمار دروغ

پهٔ خاطر کښې زيانوي تيمار دروغ

دړوي د حقيقت ګلزار دروغ

د دې اوښکو کړي پهٔ مخ اظهار دروغ

شمع ومري صبحدم " محمد رفيقه"

لهٔ عاشقه چې يې کړل سهار دروغ

# "ف"

(۳۵)

<< ۱ >> — << ۵۴۶ >>

که پهٔ ځ دي عاشقان د یار الوف[۲۸۹] — د به ما د دوئي لهٔ سلکه کړي موصوف

د هغو پهٔ نامه ختمه سلطاني شوه — چي يې عمر ستا پهٔ عشق کښي شو مصروف

علمیت د کائناتو ور حاصل شو — چي يې لوستي ستا د مینې څو حروف

عاشقان دي پهٔ امان لهٔ نجاسته — چي صيقل د عشق کړي پاک د دوئي ظروف[۲۹۰]

آفرین شه پهٔ همت د مرشدانو — چي بيان يې کړ د عشق امر معروف

پهٔ حشر کښي به راپورته مختورن شي — چي پهٔ دین کښي پهٔ ناحقه خوري حلوف[۲۹۱]

څوک محبوب به د شاهد لهٔ وصله نهٔ وهٔ — که معلوم د منازلو وه طروف[۲۹۲]

کوه ذبرمه د هغهٔ وطن "رفیقه"[۲۹۳]

چي پرې عطف شي[۲۹۴] دا ستا وجود معطوف[۲۹۵]

(۳۶)

<< ۲ >>     << ۵۵۴ >>

ساقي جام درکړه پهٔ لاس د خپل حريف
چې شربت دعه ستا د ميو ډېر لطيف

چهل ساله ومه غافل پهٔ خرابات[۲۹۶] کښې
نن مې داورېد د ساغر د عشق توصيف

رب دې نهٔ کړي مسلمان بد عاقبته
عاقبت د مومن تل اوسه منيف[۲۹۷]

هر چې نن خدمت د پير د خرابات کا
د محشر پهٔ ورځ به پورته شي شريف

پهٔ رشحه يې د شرابو مستانه کړه
د تن خاک دې ډېر ضعيف دعه هم نحيف[۲۹۸]

نفس توس لره ضعف[۲۹۹] ودکړه پهٔ دنيا کښې
چې ايمان دې پهٔ قيامت نهٔ شي ضعيف

که جهان مې پهٔ ديدار د يار شېدا شو
زهٔ بېدل يې عاشق شوے پهٔ تعريف

د کرم پهٔ سترګو عيب د "رفيق" پټ کړه
که غلط پهٔ قافيه وي يا رديف

# " ق "

---

## (۴۷)

«۱» — «۵۶۳»

چې مې ولوست ستا د مېنې یو ورق — را پهٔ یاد شو د اوو علمو سبق

پر جهان شو منجلي نوراني مخ دې — خاص آیت[۳۰۰] دے د رحمت خال دې مطلق

لهٔ خنجر دې د سرو سترګو امېدواریم — چې مې ذرهٔ شوے[۳۰۱] ببېد دبغه پرې شقشق[۳۰۲]

د خوږې چشمانو باز دې ورېے مهٔ شه — ترې مې زار شه د خسته زړګي علق[۳۰۳]

د فلک شمس و قمر به منفعل کا — که دې ببرته کړلهٔ مخ زري تتق[۳۰۴]

پهٔ سوله که د زلفانو دې قبلېږم — تر قیامت[۳۰۵] پرې تن زما شه معلق

د عاشق روژه به هاله شي تمامه — چې ښکاره ستا د عذار شي سپین شفق

د حسین[۳۰۶] خوندې پهٔ عشق فنا فی الله شه — که دې ووژني پهٔ دار د اَنَا الحق

د ګناه باد دې کړو دروند "محمد رفیقه"

پهٔ عرق د ستومانۍ شوې مستغرق[۳۰۷]

---

(۳۸)

<< ۲ >>      << ۵<۵ >>

که مې د موندلو دوران څخه توفیق
غوارم ځان د مېخانې په خم غریق[۳۰۸]

نقد د عمر مې په لاس یم ورغلی
که ساغر کړي راعطا ساقي شفیق[۳۰۹]

شراب څښل که محتسب ته کافري ده
بیا به څمه ددې کفر پر طریق

که ابدست کوي د عشق د نمونځ د پاره
ډک په خون د محبت لره ابریق[۳۱۰]

په تپوس کښې د همای[۳۱۱] مرتبه نشته
پیدا شوے دے جهان په تفاریق

په عرصه د عرصات کښې تلونې نه دي
نه جنت له نه دوزخ له هر فریق

تېدیان د تورو زلفو آزاده دي
د دلبرو کوڅه ده بیت العتیق[۳۱۲]

هر مجرم ته یې فرصت د تحقیق نشته دے
دزد[۳۱۳] کهتن او بربستن نه دے تحقیق

روژه ماته یې د مخ په مزي تور کړه
بیا یې نیسه د سپین مزي په تشریق[۳۱۴]

که د یار سیمینه خوله ده جام د زرو
پاس یې کېښو پرې د سرو شونډو عقیق

بې پروا شو د جهان له دولتونو
چې خالق کړو څوک ددې دولت لئیق[۳۱۵]

څه طاقت دے چې دې ځان په غلام ستایې
خاص بنده دے ستا د سپو "محمد رفیق"

# "ک"

---

(۳۹)

<< ۱ >> << ۵۸۲ >>

ښکاري بشر ته د دلبر شمس و قمر مشت خاک
رب الاکبر کو ورسي عالي افسر د لولاک[۳۱۶]

که د قامت سوری یې نه وه تعجب مه کوه
د حق له نور یې وه فطرت نور له سایې شولو پاک

د هر سلطان په سر به چتر وه انسان ښوله
د ده په سر شو د سحاب چتر نیوونکي افلاک[۳۱۷]

په میانه قد کښې بلند تر وه تر بسي بشره
باغ فردوس شولو کمتر د ده د در له خشاک[۳۱۸]

له طیب[۳۱۹] د زلفو یې جنات آراسته شوا ته
کرسي و عرش یې کړه خوشبویه د زمین له مغاک[۳۲۰]

کلب السعید دی چې تقصیر کا په خدمت کښې د ده
چې انبیاء یې رکیب[۳۲۱] بوسه شاطران دي چالاک

د ده صفت ته د چا توان دی "محمد رفیقه"
چې یې ثنا کړې خالق کړه له فرقانه ادراک[۳۲۲]

---

(۵۰)

«۲» «۵۹۱»

پرېږده خصلت مگس طینت[۳۲۳] واخله اخلاق د ملک
زبر قدم عالي همم[۳۲۴] کړه ته بروج[۳۲۵] د فلک

واخله خنجر شه دلاور په دېو سفېد د نفس
په عقیدت د شهامت لکه رستم اوسه کلک

کړه عبادت داحدیت نمک حرامه مه شه
هر څه شړلے دے د تطے چې وهلے نمک

ناکسان نه کوي وفا جفا په کښي نه وي
د ناکسانو په ایمان او په اسلام کښې دے شک

یاري د خرس، دلېوه، د سپي د خرترې ښه ده
د نا اصلانو په یاري کښې به ذلیل شې له کک[۳۲۶]

که تربیت یې کړې زر کاله دے به نه کړي ته دوست
خانه پرور[۳۲۷] خوک په خاوند باندې اول وهي چک[۳۲۸]

کفر اسلام یې نام معلوم اصل معدوم د بد ذات
مدام دکفر د اسلام په منځ کښې وي مشترک

چې وي اصیل وېرېږي تحقیق د اصالت مه کوه
وګوره بې چړې حلال کو، رب جراد[۳۲۹] و سمک[۳۳۰]

شه خاک پا د کریمانو "محمد رفیقه"
د هر کریم وي له فقیر سره امداد و کمک

(۵۱)

«۳»

د هجران له درد و دوک[۳۳۱]

په سرو سترگو مې خسته کړې

لکه طفل صبي ژاړم[۳۳۳]

که یو زخم مې رفو کړي

چې له نازه دستاد کښېږدي

شاه کمتر کړي له گدا نه

هم دده د فخ له مالکې

د دنیا په عروس باندې

کائنات شیدا دده دي

بلبلان په باغستان کښې

که وحوش دي که طیور دي

چې یې شک کړي په جمال کښې

«۴-۶»

ضعیف زړه مې شو ټوک ټوک

په بڼو مې وړې شوک شوک[۳۳۲]

مړم تد په سترگو سوک[۳۳۴]

دویم وشلوي په نوک

د تندي د پاسه هوک

په لرزش دي ترې ملوک

حورو واخیستو سلوک[۳۳۵]

غورځوي له ورایه توک[۳۳۶]

که الوف (دي) که لکوک[۳۳۷]

د دریاب سمک او غوک[۳۳۸]

په دا سلک دي مسلوک

صفه پاتې شو مشکوک

چې منکر دي ترې رفیقه

شو نامزد په نامه خوک[۳۳۹]

# "ل"

---

(۵۲)

«۱»　　　«۶۱۹»

لهٔ اول قسم پهٔ خدائے کړم پسې کړم ستا پهٔ جمال
خاص بنده یم دعاګو یه صبح و شام ستا د اقبال
خاصه درد شرف تهٔ یې پهٔ صدف دکن فکان کښې
هر احد لهٔ تا احمده خلعت واغوست د جلال
دویم کس لهٔ څهٔ طاقت دے بې بند کې د لاف د عشق
خاص عاشق چې ستا پهٔ مخ شو لم یزل او لم یزال
لهٔ بابا آدم پیدا یې بیا د دهٔ جدا علا یې
تر بنې بشر والا یې سیال دې ورک کړ بېهمال [۳۴۰] [۳۴۱]
چې خادم شو ستا د سپیو سلطانان یې خادمان دي
د مراد جام یې پهٔ لاس کښې وي لهٔ میو مالا مال
ستا د زلفو پهٔ زنځیر مې دست و پا دواړه بسته وے
پهٔ سولۍ د مینې سور شوے د حسین غوندې فی الحال [۳۴۲]
د میده خط مبارک شو ستا د مخ پهٔ سمن باندې
لکه وي د ګل د لاندې د ایره د ګل ظلال [۳۴۳]
کل جهان یې مځې کتو له ، لکه وی د اختر میاشته
چې دا ستا پهٔ محبت کښې شو باریک لکه هلال
د عاشق لهٔ مخ یه دور کړي دو باره د اوښکو ابر
که د هجر پهٔ ظلمت کښې شي ښکاره بدر مثال

چې پهٔ تیغ د شهامت دې دابنکاره ګوهر ددین کړ
تو محشره به تابان وي پهٔ حکمت د ذوالجلال
چې لهٔ تا نه منکران دي پرې حرام دارالسلام شو [۳۴۴]
ملایک بے [۳۴۶] پهٔ ګردن کښې واچوي د اور اغلال [۳۴۵]
ستا دمخ لهٔ بنهٔ رحمته زنګ د کفر زدوده شو [۳۴۷]
چې یې غبر لهٔ تا بیان کړ هغه شول پهٔ انفعال [۳۴۸]
ستا د درلهٔ خاص سګانو که یو سپے کمینه زهٔ یم
دا مې عین جاه وحشمت دے دا مې عین مال ومنال [۳۴۹]
ځان و روح مې وزګار نهٔ دي اشتغال د بد کتاب نه
پهٔ کتاب کښې ستا دحسن شب و روز کا اشتغال

د در سپو نه دي محتاجه سکندر ذوالقرنین دے
د مسکین " محمد رفیق " دي رسیده تر دوئي حال [۳۵۰]

---

(۵۳)

<< ۶۳۱ >>　　　　<< ۲ >>

یار مې پهٔ بیت المقدس کښې شو چراغ د محفل
ظاهر شو فخر د آخرو پهٔ باطن وه اول
چې یې خلعت د برکاتو ورکوئي ورکړ تمام
د ناز پرواز یې عجب ساز کو د جهان د محمل

نیمه طرفه کښې یې براق په ساق دعرش ودسپد

تګ د شدین (۳۵۱) یې د مهمیز له دمزه خوت معجل (۳۵۲)

چې یې اکسیر کړه په نسیم سره تودة د غبرا

کړ مبارک یې پر قدم د سمواتو محل

چې منکران ووله دې شپې له هسې نور عزیز

په قافلې د صداقت یې کافران شو خجل

څوک یې دعلم په انکار په جهنم شو محبوس

څوک په تصدیق یې د معراج شو کاملان مکمل

چې په پرتو یې نوراني شو دولس داېره بروج

په نیم نظر یې مشکلات د زحل داېره شو حل

د مشتري د اشترا (۳۵۳) نرخ یې ارزان کړ واړه (۳۵۴)

هغه تلخې شوه د ایامو همه شیر و عسل

تازه تازه نوے اختر یې په تشریف د خ و

د کاف و نون (۳۵۵) له دایرې شو هسې شان غم ګسل

لاس (۳۵۶) یې د رپورته دګدا کړ په فتراک د حسن

آفتاب په طاق کښې د فلک لکه چراغ شولو بل

پتنګ له شمعې نه جادوګې څو ستي پرې نه شي

ذره چې نیولے په شعله کښې یې د ستورګو منزل

رب العزت یې دے صفت خود په فرقان کښې کړے

" محمد رفیق " یې د صفت کله وېلے شي غزل

(۵۴)

<< ۳ >> — << ۶۴۴ >>

ستا د سرو شونډو په تېغ شوم مقتول — قاتلان همېشه اخلي خپل معمول [۳۵۷]

ستا د در په ځاورو باندې سلطاني کړم — رب دې ماله دې دولت نه کا معزول [۳۵۸]

په نامه يې ختمې سد سلیماني[۳۵۹] شوې — چې دا ستا د در په سپو شولو مقبول

که د یار له دردې داوړلو نسیمه — تن زما دې وي له دې خاکه موصول [۳۶۰]

مخ دې هسې رنګ آیت[۳۶۱] د بنه رحمت دے — چې په زر تفسیرې نه شي شا نزول

تر ابد يې په قسمت نارالسعیر دے — چې دا ستا له حکمه کړے چا عدول [۳۶۲]

د اسلام په شمع جمع پتنګان شو — ګو نکتې جوړ کړلو له ګو نه ګو مجهول

نفس شیطان کړه ته بسمل په تېغ د صبر — په دا هسې مقصد[۳۶۳] کېږي حصول

په ظاهر نعمت د رب انکاري مه شه — په دا خوشي شکایت مه شه ملول

کا شکې زه يې د حبیب کېنده پېدا کړے — همېشه په دغه سوال يمه مسؤول

تن دا پورته به طالع د " رفیق" څه وي
چې خاص سپے شي د احمد خیر الرسول

(۵۵)

«م»      «۰ ۶۵۰»

(۳۶۴)
شو رکاب پوش دې د شبدیز طائر العرش جبرئیل
اور د نمرود واړه گلزار شو ستا له مخ په خلیل

ابو الحکم شو منفعل ستا له بې مثله علو
شق والقمر له اشارت دې د انگشت شو دلیل

شو منور ستا په انوار سبع الجنان په کرسي
(۳۶۵)
هم دې کړ بند له سمٰواتو نه حزب العزازیل

لا په مکتب د نبوت دې فرقان نه وو درست
چې دې منسوخ کړه له زبور سره توریت وانجیل

څه دے طاقت د دویم کس چې برابر شي له تا
چې په کافه د انبیادو شوې احمده جمیل

ستا په کریم نور د رخسار باندې شیدا دے احد
ته معشوقه یې اې محموده د واحد رب جلیل

صدر نشین دې په کونېنو خادمان ستا د سپو
شو منکران دې مدام پاتې په دوزخ کښې ذلیل

بخښل عاصی «محمد رفیق» کړه په خاطر د نبي
له تا طلب کړي د کمک د گناه بار یې ثقیل

«م»

(۵۶)

«۱»　　　　«۱۶۶»

چې شهید د یار په تېغ شو ځایې شو دارالسلام [۳۶۶]
آزاده فارغ البال دے په برکت د الف لام

چا شراب د دنیا نوش کړه شو سرمسته په غفلت کښې
الامان له دې غفلته ساقي را د میو جام [۳۶۷]

ایاز [۳۶۸] گوره یو بنده و، د محمود [۳۶۹] له بنده گانو
په جذبه د محبت کښې شو غلام د خپل غلام

هزار مرغه یې هر پېچ کښې په هر تار د زلفو بند دي
چې د خط په سبزه زار کښې دي هر رنگ یې ایښې دام

له کمال، جمال یې گوره په پرده حور و ملک شو
ځکه ځ پو بنسلي گرځي مهرویان د روم و شام

چې د حسن په خرمن یې د خېرات لاس لگولے
درته نور [۳۷۰] کچکول نیولے له سحره آن ته شام

بسته گان دي له فتراکه د شبدیز هزار هزاد دي
نه یو زه یمه ترلے یک تنها په دا زمام [۳۷۱]

له نسیم ستا د کاکل شوه حاشیه د سنبل ورانه
له چمن د ځ دې جوړ شو د سرو گلو انتظام

چې یې ستا رفتار لیدلے د بوستان په سراچه کښې
په تحسین کبک دري کا په مرغانو کښې خرام

شقایق چې ستالۀ هجره لۀ ځیګر توے کړے خون دے
ذرۀ یې پاتې ورېت بې نوه شو دامن یې خون آشام

د صفت اتمام یې نشته اې عاصي "محمد رفیقه"
پۀ عدد د پیدایش شۀ هم پۀ دۀ صلوٰة سلام

---

(٥٧)

«٢» — «٦٧٦»

ستا د خورو زلفو لۀ هر پېچ وخم — صد هزار کمندہ پۀ ګردن مې صنم
عطر دې لۀ زلفو پۀ سپین مخ کاږې — یا پۀ ګلاب توے شوله شبنمه نم
برېښې د صدف میان[373] کښې کا دریتیم[374] — یا د صنم غاښ دے پۀ مخزن[375] دفم
سیال یې چرته نشته دکمال دجمال — یاد کړلو خالق پۀ جمیل[376] الشیم[377]
موږ تر ابد تر ښه شهدا حیات — سرې شو نرې یې حوض د کوثر قسم
وصف د بصرو یې ما زاغ کوٌرَبه — دور یې لۀ دورانه کو کشف الظلم[378]
نۀ یې شو قبول پۀ منش[379] کوه زر — بحر وۀ د جود هغه عالي همم
مخ چې یې ظهور کړۀ بنۀ آثار دنور — توغ[380] د شرف لک شو د آفاق پۀ چم
لاندې یې د سپو دے پۀ دربار علو — خان دے که خاقان دے که جمشید و جم
نقش عرش وینو مشترې پۀ لاس — دا یې لا د حسن خریدار دے کم
یاد پۀ کوم صفت کړمه سلطان عرش — ناست پۀ حیرت کښې یم ابکم[381] اصم[382]
فخر د آدم شۀ سلطان دهر — اسم یې لۀ دل نه وړي درد و آلم
ورکړو مهمن هسې لوے احتشام — نشته شهنشاه هسې بل محتشم

ناسته که شاهان کړي د غبرا په تخت | دے صدر نشین دے د دارالسلم

درک شه په عشق کښې "محمد رفیق"
ژوند دے د دنیا همه دریاب غم

---

(۵۸)

<< ۳ >>   << ٦٩٢ >>

په چمن شو د بلبلو جوړ هجوم | چې غوټۍ یې د سرو ګلو کړې مقسوم
چا کړهار د یاسمین سمن په غاړه | څوک له ویش شو مستغني د ګل په نوم
هر بلبل کړله حصه د قسمت ببله | غراب پاتې شوله دې حصې محروم
د ازل په نصیب خوروینې پېرزو کړه | د سعید سعیده بخره د شوم شوم
هر بلبل چې نیش د خارینې په زړه ما دے | په دامن کښې د ګلانو شو مکتوم
هر شهدا چې په شاهد باندې ربښتیا وي | د شاهد په اسم باندې شي موسوم
د عاشق دے دهمدا مذهب د عشق | څه د نورو مذاهبو په رسوم
په حضیض[۳۸۳] د هاویه[۳۸۴] شي مدام حبس | هر چې ظلم کا د مینې په مظلوم
وړ پرهیز وایم له دې پېرانو خامو | چې په در د طریقت یې نامعلوم
لکه طفل له باغ پرې کړي میوه خامه | یا هلک نارسیده[۳۸۵] لیکي مرقوم
تش په کش باندې روش د چو پاڼي کا | د کنړک له حفاظت وي نامفهوم
کل رمه به ترې تباه ګرګ[۳۸٦] درنده کا | پرې به کېښوے شي هزار[۳۸۸] د لایم[۳۸۹] لوم
امانت دے د صفه چې خاین نه وي | نه بنده په ځان جهول[۳۹۰] دے یا ظلوم[۳۹۱]
د ګل ګشت مه کړه په دشت بې له دېواره | چې بې وسېځي ناګاه نارالسموم

پهٔ امین ددې دولت سترګې بینا کړه دُر له خاکه ساته پاک مهٔ شه مغموم[۳۹۲]

د مشفق ساقي بنده "محمد رفیق" دے

دغه دُر یې پهٔ دا سلک اوسه منظوم[۳۹۳]

---

(۵۹)

« ۳ » « ۷۰۷ »

پیچ در پیچ مې شو پهٔ زړهٔ ردیف المیم — مخ پهٔ مخ راته ولاړ دو غول عظیم[۳۹۴]

لهٔ استاده سره خوک نزاع[۳۹۵] کړه پورته — رب دې ورکړي پهٔ دوزخ ناراالحمیم[۳۹۶]

بد بشریې د خنزیر سترګې د سپې دي — کړې ګوښ یې لهٔ فساد شیطان رجیم

امان غواړمه ددهٔ لهٔ اشد قوله — که مې شي لاندې د خال عظیم رمیم[۳۹۷]

در پهٔ غاړه پهٔ دنیا شهٔ طوق دلعن[۳۹۸] — ورپهٔ سر شهٔ د دوزخ د اور کلیم

د دنیا شرمساري واړه ددهٔ شه — پهٔ قیامت پهٔ جهنم کښې شه مقیم

دا بخیل لوي پهٔ زړهٔ لهٔ استاد بخل — لهٔ رحمته دې محروم شي د کریم

نهٔ پوهیږمه[۳۹۹] چې ګبر که ترسا[۴۰۰] دے — لهٔ ابلیسه یې هر فعل دے ذمیم[۴۰۱]

د استاد پهٔ اهانت[۴۰۲] باندې کافر شو — پهٔ کافر شولو حرام جنت نعیم

رب دې دے کړي مختورن پهٔ دواړه کونه — هم امید یې تل بدل اوسه پهٔ بیم

هر سحر رب الجلیل ته پهٔ فریاد یم — لهٔ شیطان سره سوخته شه پر جحیم

ایمان نشته پدې خرس ځنګلي کښې     د استاد له حق انکار کوي لئیم [۹۰۳]

صد افسوس مې د دوران په ناخواله شي     چې دا هسې کافران ګرځي سلیم

خلق یې بولي ستا قریب " محمد رفیقه"

په مرګ خوښ یم نه په دا طعنه وسیم [۹۰۴]

---

# "ن"

(۶۰)

(( ۱۶ ))　　　　　　　　(( ۱ ))

مجنون که ستا په عشق کښې شو یو موټه استخوان
لیلیٰ شوه په قوت د عاشقي کښې پهلوان
عاشق وته عاجز شو په خلاصي تدبیر د عقل
زنځیر دي ګلو ګیر په څهٔ تاثیر سره زلفان
پر عشق د زلیخا یې لاعلاج حبس قبول کړ
یوسف په تأسف سره د مصر په زندان
الحمد و صد ثنا صفت مدام د کردګار دے
قبدي دي دستګار دے په کونینو جاودان
پښتي یې کړه ددهٔ هسې شفیع د دواړو کونو
خالص هم په عاشق باندې منت دے د منان
معراج یې معرج شو لهٔ عیسی ته' لا مکانه
بادشاه دے شهنشاه دے' دے سلطان دهر سلطان
نیت چې د سورلۍ وکړي سالار د دواړو کونو
افواج د انبیاوو یې ځي وړاندې شاطران
خالق یې په سر باندې ده جوغه د علو ایښې
عالي یې پر نسب کړلو احمد آخر زمان

دامن که د احمد نهٔ وے پهٔ سر د امت سودے

پر فعل د شنعت[۳۰۸] به وو لایق کل د نیران

آدم وموند نجات د دهٔ لهٔ عین اسم پاک

نوبت دے پهٔ کونبنو د هغه صاحب زمان

هسراه دې پهٔ قلزم دے هسې نوح "محمد رفیقه"

خوف مهٔ کړه د کشتۍ لهٔ استغراقه[۳۰۹] د طوفان

---

(۶۱)

« ۲ » « ۳۹ »

خم دې شوه قامت وته سروې چمن رشک دې لهٔ مخ وړې گلابُ السمن

بیا به کړي تازه چمنستان د دهن وا پهٔ تبسم که کړې غوټچه دهن

کل پهٔ انفعال نني[۳۱۰] چشمانی ستا جوړه غزالان د ختا[۳۱۱] و ختن[۳۱۲]

نشته د دلبر غوندې پیکر د نور شاه دے پهٔ مسند د زمین و زمن

خوږ یې دے پهٔ عشق کښې د عاشق په نین[۳۱۳] موږه د اوربشو لهٔ سلوی د من[۳۱۴]

سخته یې وجود ته نازکي د کل نشته پهٔ حورانو هسې کلبدن

ښکه یې پهٔ مخ داغله سبزه د خط اَنْبَتَهُ[۳۱۵] اللّٰه نباتا حسن

ستا وصل د یاره یې تعجیل د مرګ ناسته د عاشق ده پهٔ بیت الحزن[۳۱۶]

نهٔ وم خبر اے شهې شیرین پهٔ عشق شکرې شوم ستا پهٔ طلب کوه کن

شکر چې رانښکه شم پر نخاس د عشق    طوق مې د مے گردن کښې د زلفو رسن

ښه چې دې په نښ شو د مژګانو رېش    ستا د غم په نورې ضعیف دل مین

ستا په برکت سره « محمد رفیق »
زده کړو د طوطي غوندې شیرین سخن

---

(٦٢)

«« ٢ »»    «« ٣٥ »»

(١٢٣)
دایره یې د آفاق کړه باغ و دشت د ربع مسکون
له صیغې د کن بنا شو په پرکار د کاف و نون
را پیدا چې رب جهان کړ یو یې تخت پکښې رخشان کړ
هم په دا تخت یې سلطان کړ له لیلی سره مجنون
د عاشق له تېغه تېزه زمري پاتې له ګرېزه
دا کافه د ځان خونرېزه تو یوي د ځیګر خون
چې منبلا په غم خاک وي له سلطان زمان بې باک وي
له عشرت د جهان پاک وي خوبش د هجر په طاعون
عاشقان د داغ د لاندې لاله زار ته نه ځي وراندې
عشق یې ایښي په زړه باندې وي داغونه ګوناګون

کړه ثنا « محمد رفیقه » د خالق له هر طریقه
الامان له دې فریقه چې مشرک وي د بېچون

(۶۳)

" ۴۲ "　　　　" ۴ "

زړونه بند صد و هزار دي ستا دزلفو په تور حسين

ټیک دي شاه سکندر دے خال دي شاه د حبش چين

تو دکاکل ابر رحمت ستا له خورشیده زیات زینت ستا

ترې کړې نور د مخ طلعت ستا ستا اوربل خاور زمين

د یوسف نورکه تابان شو دېره چين دا ستا د خوان شو

نمکين داړه جهان شو ستا له حسن نمکين

رب شاهي په نامه ستاکړه په یٰسين او په طٰه کړه

رسولانو امنا کړه شوې دواړو ته امين

په تا خاص فضل رحمان کړ نوم یې ستا آخرزمان کړ

تو غ یې ستا تر لامکان کړ ته د عرش صدر نشين

سلیمان که شهنشاه دے یو بنده ستا د درګاه دے

محمد رسول الله دے اسم ستا په عالمين

معشوقې د پاک مسجود کړ و ساجد په تا ودود [۳۱۸]

لا آدم نه وه موجود له وجود د ماء و طين [۳۱۹]

ستا صفت رب العزت کا په تا صد هزار رحمت کا

ما دې رب ستا له امت کا چې دې سپے یم کمترين

چې بندي دا ستا په طوق ځي ستا ګدا له شاهه فوق ځي

دوح یې ځه په ذوق وشوق ځي چې یې ناست ته پر بالين

د شیرینې عشق که داد دے په فرهاد خسرو بېداد دے

بندي ستا د عشق آزاد دے چې خسرویې هم شیرین

چې منکر دي د روستو ورانديږي ځان به سېځي د دوزخ کاندي

ستا د نور په تارک باندې خالق کېښو تاج زرین [۳۲۰]

که " محمد رفیق " غلام کښې پرې اختر به د غم شام کښې [۳۲۱] [۳۲۲]

رب وېلي په کلام کښې دي یحب المحسنین

## " و "

---

(٦۴)

« ۱ »

له سلطانه که کشکی نان شي ملاو (۴۲۳)

بیا به مینه په چشمه د حیات نه کړم

تر بازاره مې د مینې سر راوړې

چې په مینه دروغجن شو لعنتي شو

په تربت د وصالت چې یې زړه ـ یخ شو

لاس به وښنډم په نیت د کائناتو

په میدان کښې ستا د مینې وقمارته

بې د وصل له اکسیر به پیوند نه شي

چې د یار له ښه دیدار بوس وکنار شي

« ۵ »

احمقان دي چې به خواست کا د پلاو

که ساقي مې شو د تږي زړه سقاو (۴۲۴)

ولې ګران دے د شاهد د حسن باد

رب دې ما کاندي له دې کذب بچاو (۴۲۵)

تشنه نه شي د دوزخ د اور په تاو

که سرود راته د مینې شو بچاو (۴۲۶)

ځان و روح مې دواړه ایښي دي په داو

په هر زړه کښې چې شو جوړ د هجر کاد (۴۲۷)

وریښې شي متصل د هجر غاو (۴۲۸)

نه ګدا " محمد رفیق " یې باج ګذار دے

خوبان اخلي له شاهانو باج و ساو (۴۲۹)

---

(۶۵)

<< ۲ >>

ستا د هجر په آتش کښې مې ځان وسو
هسې تاو مې له کشتۍ د ځیګر خېژي
په حقیره پروانه یې ذره ونه سوو
چې دې پروت دے تل د مخ په آتش باندې
که یې ډراندې پناهې د ښو نه وے
که عذار دې جوړ له ناره د نور نه وے
د مخ نور چې دې په اور باندې غالب دے
خال بنده دې پاسبانې د حسن کړله
شېرینې که دې له لبو خلطه نه وے
چې ښکاره چینې جبین تیک آتشین کړې
نصم په دا چې یې هر سوے رحم آلوده
چې باغبان دې د قدرت باغ آراسته کړ
که یې خوے د سمندر نه وے اخیستے [۳۳۵]
باغ د مینې دې لښې د آتش کاندې
چې خالونه [۳۳۷] ستا د مخ معاینه کړه
د لیلیٰ په انجمن کښې ور داخل شو

<< ۳ >>

بیا د سوې ځان په اور مې هجران وسو
په دا تاو د آهنګرو دکان وسو
له خپل اور سره د شمع رخشان وسو
له تیشه [۳۳۰] یې سالو د الوان [۳۳۱] وسو
ستا د سترګو په لمبه به بوستان وسو
په جلوه به یې د خط خیابان وسو
په شعله یې د مجمر [۳۳۲] آتشدان وسو
له پرتوه یې غلام نګهبان وسو
پرې به ستا د مروارې غاښوکان وسو
په شعاع [۳۳۳] سره یې چین د خاقان وسو
ستا د عشق په شراره [۳۳۴] کښې جهان وسو
د ګلشن په تجلې دې باغبان وسو
ستا د شونډو په انګار به پېزوان [۳۳۶] وسو
د دیدار په دروازه یې دربان وسو
پرې محفل د ثریا په آسمان وسو
اور د عشق که د مجنون استخوان وسو

تاب د مخ یې وریت کو خال "محمد رفیقه"
محبت یې په جنت کښې رضوان وسو

(۶۶)

« ۳ » « ۹۲ »

تور کاکل پهٔ سپین بشر شو — پاسبان د باغ اژدر شو

که یې تیک خاقان د چین دے — تورې زلفې یې لښکر شو

د خورو زلفو لهٔ بو یه — نقطه خاک مشک از فر شو

یا د روم پهٔ بندر باندې — جانشین زنګي بدتر شو

سور پېښ‌وان (۳۸) یې تشنه ولې — پهٔ چشمه کښې د کوثر شو

لهٔ شوخي یې د سرو سترګو — مردمک (۳۹) عین نظر شو

کمان ورورځې بانه تیر ستا — ښخ زما د زړهٔ پهٔ سر شو

شرمنده یې لهٔ رخساره — اول شمس بد قمر شو

ستا د عشق پهٔ تېغ بازي کښې — ښخ زما پهٔ دل خنجر شو

چې د مخ شمع دې ګوري — پتنګ ځکه پرې اوتر شو

غم د هجر د دلبر و — پهٔ هر رګ زما نشتر شو

ستا د قد تر ګلبن لاندې — هسک زما د ژوند شجر شو

ستا لهٔ لاس پیاله د زهرو — دا زما د عېش ثمر شو

ستا زقوم (۴۰) زما پهٔ حلق — عین قند و یا شکر شو

ستا د غشي هدف زهٔ یم — که پهٔ بخت مې برابر شو

که باران زما د اوښکو — ستا د مینې پر ده در شو

پهٔ آخر مې پهٔ سل عیبه — دُر د عشق (۴۱) مستتر شو

څهٔ به غم " محمد رفیق" کا

چې غم ستا عینِ اختر شو

(٦٧)

«۴»

باد یې دور کړلهٔ کاکل رنګین سالو
لهٔ خوږې ژبې د یار پهٔ ګلستان کښې
شیرینې یې لهٔ منې زنق[۴۴۳] موندلے
د بهو عکس یې جوړ غښه خدنګ شو
هم پیدا یې دسپین مخ پهٔ مرغزار کښې
پهٔ افسون د مسیحایې خلاصے نشته
مستقیم به یې د مینې پهٔ صراط وي
عارفان یې ځي د مینې پهٔ دریاب کښې
فاخته طوق د بندهګۍ لري پهٔ غاړه
دغه زهر به دې د مینې خوار دهٔ نهٔ شي
د مسرف[۴۴۶] پهٔ څان بلامدام اسراف شي

«۸۰۴»

پهٔ ووزه[۴۴۲] یې خوشبو شو کشمالو
لذت بیا موند کابلي سیب و آلو
که انار که ناشپاتي که شفتالو
شو بنا چاچې کمان[۴۴۴] یې لهٔ ابرو
دوه چشمان یې رمیده جوړه آهو
چې بند شوي یې د مینې پهٔ جادو
چې یې ورد دے لا اله الّا هو
پهٔ کشتۍ کښې د یاهو د یا منهو
پهٔ فراق کښې یې فریاد کړي کو بهکو
څو و نهٔ څکې[۴۴۵] د هجر تمباکو
په انداز سره کلو او اشربو

پهٔ خنجر که یې د مینې زړهٔ پاره شو
"رفیق"[۴۴۷] نهٔ غواړي ددې زخم رفو

---

(٦٨)

" ۵ "　　　　" ۸۱۴ "

(۴۴۸)
بلبل ذرهٔ مې غزلخوان شو د ګلرخ پهٔ بهار د درو
اې نسیم عنبر شمیمه کړه پېره پهٔ ګلزار دورو

د چمن ساکنان واړه چاپېره نعت ګویان شو
چې د ناز پهٔ خیابان کښې مې رفتن کا نګار دورو

د دلبر مثل خورشېد دے مهرویان واړه نجوم شو
لهٔ دیدار بې شرمسار شي که دي سل که هزار دورو

خوبرویان که د جهان دي پهٔ زینت عالي تر شمع
خو د شمعې قتلېدل دي د سحر پهٔ آثار دورو

چا د وصل شربت نوش کړ بې د هجر لهٔ تېشه
معشوقې همېشه کاندي د عاشقو تیمار دورو

تور کاکل یې پېچ وتاب څې پهٔ ګلزار د عذار باندې
که پهٔ څ د سرو ګلونو کښې تاوېږي ښامار دورو

امېد شته چې سلطنت به د آفاق پهٔ نوم زما شي
د خپل سپي پهٔ نوم مې بولي د قرېشو سردار دورو

د ساقي د ناز پهٔ حسن تازه ګي ابدي اوسه
چې یې پوه پهٔ میخانه کړم د ساغر پهٔ اسرار دورو

خدایه مشت خاک زما کړه د ساقي د کوڅې خاوره
چې یې لاندې تر قدم شم پهٔ مست ومیخوار دورو

هر صباح یې تر سګانو شه فدا " محمد رفیق"
که پهٔ هسې تواضع کښې کړي دے چې د دربار دورو

(٦٩)

«٦» «٨٣٦»

پهٔ سپین مخ چې دې د زلفو زنځیر ونیو
پهٔ دا طوق دې ماه و مهر شبګیر ونیو

شینکی خال دې حبشي پهٔ لښکرزاد دے
چې پهٔ روم کښې سکندر جهانګیر ونیو

پهٔ سرو[۴۴۹] شونډو دې بخري د پېزوانډي
اورګے[۴۵۰] دې د زلال پهٔ ابګیر ونیو

دوه چشمان دې حمله زن جوړه بازونه
لهٔ جهان یې کبوتر د ضمیر ونیو

د سرو سترګو پهٔ آتش یې کبابېږي
چې هر زړهٔ یې د مږګانو پهٔ تیر ونیو

پهٔ غبغب[۴۵۱] یې خال د زنې مقید شو
که یوسف یې د کنعان پهٔ حفیر ونیو

د عذار پهٔ ګلستان یې کاکل خور شو
که سنبل یې د فردوس پهٔ تشویر ونیو

پهٔ ګلبانګ[۴۵۲] د جلاجل یې شیدا دروي
که تمځرے یې د غم پهٔ صفیر ونیو

د سرو ټیک دې پهٔ تندي مرغ زرین دے
که آفتاب طایر العرش د بیر ونیو

د عاشق دے دست بسته د شاهد پروت دے
که پهٔ غلا کښې د سلطان یې فقیر ونیو

سپے رقیب یې پهٔ کوڅه د یار نیولے
اهریمن[۴۵۳] یې پهٔ ګلشن د کشمیر ونیو

چې د حسن پهٔ بازار یې خریدار شو
پهٔ نخاس کښې فلک بدر منیر ونیو

هر بېدل چې یې تپش د هجر تېر کړ
پهٔ دامن کښې د همت یې سعیر ونیو

لهٔ کمند یې د رستم ایستلے یال وهٔ
ساده رویو پهٔ عقاب د نظیر ونیو

چې پهٔ دست د وحشت رمیده تلے
آهو چشمو د غمزو پهٔ نخچیر ونیو

پهٔ مرآت د مخ کښې رنګ د عاشق ګوره
چې لهٔ پانڼې د خزان یې تغیر ونیو

ستا د سپو پهٔ تلاوه رقیب نسکور شو
مړ کافر دے چې منکر او نکیر ونیو

شو پاکان د زمانې د خاورو لاندې
ناپاکانو پهٔ آفاق کښې سریر ونیو

صاحبدل کړه بتخانه د دنیا ورانه　　نوریې بیت المقدس لهٔ تطهیر وننیو

په نمک سره هر څېن نمو داري کا　　غم نمک یې د آدم پهٔ خمیر وننیو

خیابان د چمن څه چې یې شـېدا کړم　　ناګها د مورچه کانو بهـیر وننیو

شو پهٔ قتل مې ستومان " محمد رفیقه"

مرمٌ لاس پهٔ سینه پاس د تقصیر وننیو

---

# "ی"

(۲۰)

«۱»　　«۸۴۶»

اې سلطان نوري پېکره شهنشاه یې عالیجاه
هر چي پېښ دي د درګاه شو په آفاق شو شهنشاه
بلند تر عرش عظیم شو، چي شو ستا د قدم لاندي
شرمنده شمس و قمر دے مشتري ستا تر کلاه
نه تنها په انتظار کښې موږ سکان ستا د درباریو
سلیمان که سکندر دے رب یې کړي پشت و پناه
که په نورو رسولانو به نزول د صحیفو وه
درست په تا یاندي فرقان شو، هم شوه درسته بسم الله
له خپل اسمه یې نوم ستا کړ خالق درسته کلمه کړه
لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه محمد رسول الله
ته غالب عزیز معز کړې نور دي ستا له عزت لاندي
منکران دي کافران شو چي له تا نه دي آګاه
په دنیا چي مشرکان دي یا له تا چي منکران دي
کړي په وخت د ځنکدن کښې ستا په عشق یې صداآه
(۴۵۵)
د بهشت ښادي پرې وایم چي شو ستا د قدم لاندي
چي شو ستا له قلم پاتې صفحه پاتې شو ګمراه

خپل عمل د هر چا مل دے نه چې ځوک پیغمبر زاد شي

که د نوح زویه کنعان وۀ شو کافر چې شو بېراه

ستا د حسن غزل وایي " محمد رفیق " لۀ شوقه

زهره رقص ورته کاندي تماشبین یې مهر و ماه

---

(١٧)

« ٢ »

ستا لۀ سبزه دوشاله ځار شم ملا به

ستا د وصل فلاست خانه خراب کړم

د طالع عنقا مې ونښتو پۀ لومه

د آه تېغ به دې ځیګر پاره پاره کا

د عاشق د دل لۀ سوزه خبر نه یې

دردانه یې د مقصود پۀ لاس نیولې

تد پۀ کنج د خرابات مست و مخمور دے

[٤٥٨]
چې یې طوق د بنده ګۍ د زلفو زېډ شو

د عاشق د خسروي تخت یې کرسي کړ

څو بنده یې د بنده د قدم نۀ شي

د خدمت پۀ اندازه عزت زیاتیږي

د ګلرخو د در کاه که خاک و خس شي

که مجنون که د جنون زنځیر پۀ غاړه

« ٨٦٣ »

لۀ دیداره دې فدا کړم زر آفتا به

ځي پۀ چاک د ګریبان مې زر سیلا به

لۀ نسیم د صبحدم شوم دولتیا به

د بلبل پۀ نشیمن ناسته غرا به

[٤٥٦]
تپیده د عشق پۀ اور دے تو سیما به

پروا نۀ لري د عمر لۀ حبا به

[٤٥٧]
مغبچه لري مخمور یې لۀ شرا به

مفرح و دوت د دوو کونو لۀ با به

نښانه یې د بند ګۍ شوه مستجا به

پۀ نامه یې سلطاني شوله کمیا به

[٤٦٠]
بې خدمت دے بنده کوم عزت ما به

د سرو شونډو پۀ پیاله بۀ شي سیرا به

د شکیب خانه لیلیٰ کړله خرا به

چې پتنګ د اور په ځلک نیول ګیره شو | کړه سینه یې د شاهد په اور کبابه
د حسرت اوښکې د شمعې په مخ دروې | مبعدم د زندګۍ یې شوه بې آبه
چې په نفس د عاشق دم د شاهد شي | په یوه ښادي کښې دواړه وي شادابه

که یار غواړې بې حجاب "محمد رفیقه"
مستغني شه د سحر له شکر خوابه (۳۶۳)

---

(۷۲)

<< ۳ >> | << ۸۸۴ >>

علو شان عالي نسبه | خور آثار قمر اشهبه (۳۶۴)
عالیجاهه عالیقدره | شکر پاره شکر لبه
سمن رویه سیمین بره | سیمین تنه سیم غبغبه
سنبل مویه عنبر بویه | په ذات لویه بوالعجبه
د جمال همال دې نشته | له مشرقه تر مغربه
د جمال جلوې دې ورک کړ | نحسیت له کواکبه (۳۶۵)
په آسمان بنکاره هلال شو | نیم رکاب ستا له مرکبه
هر ګفتار دې خوږ له قنده | هم شیرین دے له رطبه
د جنت نسیم دا دروې | له بلا ده د عربه
که یې بیا ستا د کوڅې کړم | دا وعده کوم له ربه
د دوو سترګو به را نجه کړم | صفه خاوره مینک طربه (۳۶۶)
که مې سر دے که مې ځان دے | که مې روح دے خوش لقبه

تر هزاره به دې زار کړم همګي عالي منصبه
يو ذره ستا له جماله شوه جهان له منتخبه
طالبان دې د در دواړه رسېدلي تر مطلبه
هر ذره د کائناتو شوه پېدا ستالهٔ سببه
پهٔ فرقان د رب قديم کښې لهٔ يٰسينه مخاطبه
هزار ځانه مې فدا شه لهٔ بطحیٰ(۳۶۷) او لهٔ يثربه(۳۶۸)
که ځان بېږ ستا د درګاه کړم يم کمالِ بې ادبه
ګستاخي راته معاف کړه شهنشاه ذوالحسبه

ولې مهر نعت خپل کړه
د " محمد رفيق " پهٔ ژبه

---

(۴۳)

<< ۴ >> << ۸۵۷ >>

پهٔ بالين د خپل وژلي راشه راشه اې طبيبه
روح مې ورسېد تهٔ شو ننوو شو وتونه عنقريبه
پهٔ خسته خاطر دپاسه مې توبرې(۳۶۹) د هجر مات دي
دغېده يې مشکل کار دے بې لهٔ مهره د حبيبه
تربيت که پهٔ ترتيب شي بې ترتيب تربيت نشته
د دانا ته اذيت دے تربيت بې لهٔ ترتيبه

د لاله غونډې غرقاب يم سراسر د زړهٔ پهٔ خون کښې
د رنګ ساعت پياله د عمر توېيد و ته ده قريبه

وريښي پهٔ شان د برق آهيخته[٤٠] تېغ د خزان دے
هسې مست و غافل مهٔ شه پهٔ چمن کښې عندليبه

تل پهٔ لهو پهٔ لعب[٤١] کښې دا عزيز عمر دې باج کړ
لکه طفل خرمستي کا پهٔ مکتب کښې بې اديبه

که حاصل پهٔ صبر يادکړې کل بنادي شوه پهٔ تا ختم
چې يې زخم د تېغ خوږ دے لهٔ خوراکه د زبيبه[٤٢]

شاه چې لاړه پهٔ کوم لار شي سنګ شجر مشک و عنبر کا
تهٔ عجب که يې نظر شي تا خوشبوے که لهٔ طيبه

چې دعوه د عاشقي کا کړي بازي پهٔ وينو خپلو
د منصور غونډې پهٔ عشق کښې پروا نهٔ کا لهٔ صليبه

که يار جام د ادبو غواړي ور پهٔ لاس د ځيګر خون کا
اميدوار د مهر اوسه لهٔ درګاهه د مجيبه

هر عاشق له پهٔ جهان کښې زور و شور غضنفري دے
دا کافه د جوانمردو د زمرو غونډې مهيبه[٤٣]

بې د يار لهٔ خاصه فضله رسېده بشاهد ته ګران دي
دا پهٔ دا چې هر قدم کښې رهزنان دي زر رقيبه

که دا موږه خاک دې خاک کړهٔ پهٔ رشتيا "محمد رفيقه"
امېد شته چې خاک به ځي لهٔ دې خاکه بې نصيبه

(۳۷)

<< ۵ >>     << ۹۰۴ >>

زندګي مې د مجنون شوه د ګردون پياله شوه چپه

په غربت کښې بسمل پروت يم د هجران د تېغ له خرپه

هزار درده دا ولاړ شي په قالب د خسته دل کښې

لکه لار د ويښې زوې شي له زخم زولن تپه

فرېدون که وسپارلو مملکت په ايرج باندې

ناګهان په شبخون راغله[۳۷۴] پرې د سلم د تور هپه

ما وېل چې وصالت دے پس له دې نه ورک محنت دے

الغياث ستي په اور شوم له دې هسې تابه تپه

په چشمه يې د سرو شونډو هسې پروت سوخته ځيګر يم

چې قلزم مې په نظر کښې نمايش کا نسيمه لپه

چې دښمن يې ښکاره نه وه خوش د عشق په دُر دانه وم

ما وېل چې په دولت کښې نن ده ما وهلې شپه

پټو انده پرده دې لاړه غمزده " محمد رفيقه "

چم ګوانډ[۳۷۵] د يار خبر شو د رقيب کلب[۳۷۶] له غپه

(۷۵)

<< ۶ >> << ۹۱۹ >>

پیاله را ساقي مهوشه[۳۷۷] د سرو شونډو له نباته
چې ګلبن مې جلوه زن شي له منبعه د حیاته
له بهار شوه په چمن کښې سلسله د ګل بنېرازه
له شکن د حوادثو د فلک دوره شوه ماته
ژندګي دوباره راغله د جهان په دایره کښې
د چمن پژمردګي شوه خلعت پوشه له حیاته
د سنبلو توري څڼې دوباره شوې مشک آلودې
آزاده سروِ سهي[۳۷۸] شوه له کشش د کاشناته
د سمن غنچه په چنګ کښې چنبري جاله بورا کړ
د غبرا ژانګو شوه پورته هم له ابنه له نباته
شقایق له هزار شقه زړه یې ورېت د غم په داغ وه
د بهار نسیم شاداب کړ د غمو نو له پرساته
د ګلاب ورق له نازه عین عذار د معشوقې شو
لکه پروت شاهد خشمي وي سبزه پوش د نور شعاته[۳۷۹]
بنفشې د سیمو لبسته پېچیده[۳۸۰] له سفېدار کړه
لکه تاو زېور د حسن و محبوبې دلربا ته
سپرغم ایښ په باغ کښې په تارک د ے تاج دزرو
منازل یې بهاري دي له الوانه درجا ته
نسترن په سپین لباس کښې جوړ شفق د مجمر شو
چې یې هسکه روښنایي شوه په جهان باغ صحراته

هرگیاه یې له تجیده[۴۸۱] په تحمید صفت خواني کا
ایستاده په هسکه غاړه د شاهد حمد و ثنا ته

بیا د ګلو په محفل کښې انجمن د بلبل جوړ شو
په ظاهر غزلخواني کښې حریف لاړو معماته

د ساقي عجب مارغه دے چې په دوه ځانګه[۴۸۲] پرواز کا
معرج به کل جهان کا په یوه دوره سما ته

که لوا[۴۸۳] یې احدي دے بسط بساط یې محدي دے
ترې محرومه ابدي دے چې یې تن شو بې زکاته

ځان فدا کا تر شفیقه تر ساقي "محمد رفیقه"
که دې خون چرې قبول شي تر مخدوم[۴۸۴] د خراباته

---

(۷۶)

<< ۷ >>

نه دا ستا غوندې سلطان عالي مکان شته
نه یو زه دا ستا د حسن دعاګویم
ماله تاغوندې خاوند نه پیدا کیږي
چې دا ستا په بنده ګۍ یې ملا تړلې
بادشاهان یې دایمې حلقه بګوش دي
چې تا ورکړله علو هغه عالي شو
هر چې ستاله دره سپک شو هغه ورک شو

<< ۹۳۸ >>

نه زما غوندې ګدا ستا په آستان[۴۸۵] شته
هزارها دما په شان دعاګویان شته
ستا زما غوندې بې شماره بندګان شته
د دوران په سلطانانو یې فرمان شته
چې نشت یې په دفتر ستا د دیوان شته
نشتن[۴۸۶] یې خاص د خلد په ایوان شته
کله ځ یې په دا زمکه په آسمان شته

پهٔ دماغ مې ستالهٔ عشقه سل جنونه
په خاطر مې ستالهٔ غم هزار داستانشته

که خپل ځان وته مې تهٔ رهنما نهٔ شې
ما جهول له (د) درتللو کله توان شته

کرم ښه چې نادیده پهٔ تا عاشق شوم
نهٔ دې ملک نهٔ دې ښهر نهٔ مکان شته

ستا پهٔ عشق کښې که مې توے شوے اوښکې وینې
پهٔ دامن مې کان د درو د مرجان شته

که پهٔ زړهٔ مې چاک (۳۸۷) دعشق لیدلے نهٔ شې
ظاهرې نخښه یې چاک دګریبان شته

ستا دمینې پهٔ سوله باندې پانې شوے
چې پهٔ خوله کښې مې حسین (۳۸۸) غوندې زبانشته

پهٔ منزل د عشق کښې ګکړ پهٔ دست وپایم
بل پهٔ سر مې عظیم پېټۍ دعصیان شته

که فلک مې دګناه کړ پهٔ سر پو ره ته
چې تهٔ لوے یې لوے امید مې دغفرانشته

یو نامه دې دکریم ده پهٔ ځان اینبې
بل شفیع مې محمد آخر زمان شته

پهٔ عدد ستا دخلقت دې پرې صلوٰة وي
هم پهٔ دا قدر سلام پهٔ عالي شان شته

لکه څوک چې پهٔ خرهٔ سور او پهٔ مخ تور وي
تر دا پورته مخ توري زما د ځان شته

کړه امید د مغفرت "محمد رفیقه"
تر بخښونکي کوم کریم پهٔ دا جهان شته

---

(۷۷)

<< ۸ >> << ۹۴۸ >>

ستا لهٔ هجره پېچ وتاب یم د خاطر سرور مې نشته
یو ګوزار شو مه ګرنګ ته بل د سترګو نور مې نشته

د هغو سترګو مفتون یم چې پهٔ هرګوزار مې وژنې
تل دځان پهٔ وژلو خوښ یم د ژوندون ضرور مې نشته

د دربار په خس وخاک یې زه سلطان د زمانې یم

په داسې سلطانۍ کښې د جنگړې تربور مې نشته

پس له دې شنادرې کړم په دربار د یار د مینې

په قلزم د محبت کښې بې شنا عبور مې نشته

که هر څو وصل د یار مې کړد حاصل په څوڅو باره

ولې څهٔ کړم چې قالب کښې هغه دل مهجور مې نشته

لا نغون[۳۸۹] به وم وتلے زهٔ له دې گردابه پورې

چې په عشق کښې دستگیرې کاودې د نځهٔ رنځورې نشته

که اگرله سپو بتریم هس چې یم د یار د دریم

د راستې په در ولاړ یم په بدخوانفور[۳۹۰] مې نشته

په غربت کښې مې دلبرته نذرانه د ځان و روح ده

بې د ځان د روح له نذره د دولت نذور[۳۹۱] مې نشته

که مسیح زما پیدا شو په نیم شف[۳۹۲] به مې ژوندے کا

چې حیران په تحته پروت یم د مسیح ظهور مې نشته

په صراط به له دلداره لکه برق خاطف[۳۹۳] تېر نشته

بې د یار له بنه کناره په صراط مرور مې نشته

چې له تیر یې د چشمانو ملامت " محمد رفیق" یم

زهٔ په خپل قسمت کاهدیم د جانان قصور مې نشته

(۷۸)

<< ۹۶۴ >>    << ۹ >>

پیاله داکړه د شرابو اې ساقي ذوالبرکته [۳۹۴]
صوفي لاړو جهنم ته د توبې له مذمته
بې نصیب چې له ساغر شو دے بېشکه دزدد دین دے
هیڅ احد بېنوا مه شه ددې خمرو له نعمته
چې دوستي یې له ساقي وه عیسی وخوته آسمان ته
قارون [۳۹۵] گوره لاتر اوسه گنج په سر دروي په بنکته
که کوش دے که دیدار دے څوک موندے نشي بې جامه
دا په داچې خالي نه دے دغه جام بې له حکمته
نفحات مې تازه تر شي په نسیم سحري کښې
څکه لاس په دعا ناست یم امیدوار له د رسالته
وشاهد ته کتل گران دي چې یې لورته کاته نه شي
نرگس زېړي ستر گې زانگي له دې هسې بصارته
که د مخ شمع بنکاره کړې کل جهان به پرې ځان دریت کا
د آدم عشق به نه وي سراسر له جهالته
د شاهد رمزکه نه وي څه طاقت د عاشق خوار دے
چې بې رمزه د معشوق ورسېږي تر حاجته
د ازل په منکرانو د دیدار لذت حرام دے
دا په داچې قتل عام یې دایمي له خپل عادته
که دا ستا په محبت کښې حب د غیرو کافري ده
ما وهلے غم د دهر نزغونه دے لا په لته

خو مې عمر دے که خدا ے کا پس لۀ دې به دغه کارکړم
روګردان به چرې نۀ شم د مېخوارو لۀ خدمته

چې لازم قدمبوسې شوه د ساقي زما پۀ غاړه
څۀ ګناه که خون کشي کړم هم لۀ خاصه عبادته

ملابسته د توکل کړه پۀ درې میاشتې شراب خورشه
لۀ ځان لرې احمقي کړه شه قوي لۀ دې همته

د ساقي د درغلام ئی قلمزن پۀ هفت اقلیم شو
څوک یې فرد د زمانې کړ څوک معزول شو لۀ دولته

چې بې دینه بې جرأت و، زمانې هغه امین کړ
دا امین څۀ امین نۀ دے چې دړې لاس تر امانته

رب دې خوار دغه ټکان کړي غمزده " محمد رفیقه "
چې نۀ خوف کوي لۀ خدایه نۀ حیا لۀ خیانته

---

(۷۹)

«۱۰» «۹۷۴»

ګیله مۀ کړه لۀ یار غمته — پرې شه توے دغم سکروټه
پۀ دروغه کوي لافې — برېت دراز کړي بډېه چټه (۳۹۶)
پۀ سفره چې لۀ تا کښېني (۳۹۷) — شکم ادت لرې تر مټه
وې د غم پۀ شراکت دې — لکه بلا دبه ښځه لټه
بې کېنې هسې غمېږي — لکه بږدې پۀ دېوال خټه

چې ځې پېښ دخوانمردىٔ شي
حکمتي شي لا تر نته [۴۹۸]

تهٔ به وايې اصل نهٔ دے
پيدا شوے لهٔ دې جته

تل پهٔ بخه وي کمزورے
دغه سگ نسي تر څته [۴۹۹]

په دهٔ کار کړی دا دي ذاسته
لکه وي چار مني څته [۵۰۰]

پهٔ دنيا " محمد رفيقه"
آخرت لهٔ کېږي گټه

---

(۸۰)

<< ۱۱ >>

پهٔ فرقت کښې سترگې سرې گونه مې زرده
د ژوندون خانه مې وکه شوه لهٔ درده

درقيب پهٔ خوله به خهٔ رنگ لهٔ ما گرځي
د نامردو چارې نهٔ شي لهٔ څوانمرده

چې رو تابه شو لهٔ هسې لوے خاونده [۵۰۱]
د رقيب پهٔ شان به نه وي بدنامرده

چې به خوف کوم لهٔ دا رنگې مردوده
د سگي نامه داپورې ستا د دردهٔ

د قدرت پهٔ مملکت دې همال نشته
شهنشاهه پهٔ کمال پهٔ جمال فرده

قدمبوس دې د سگانو سرداران دي
سروري هم پهٔ دوئي باندې منحصر ده

پهٔ انبارچې دې د حسن لاس کو پورې
دگدا کاسه پهٔ سر اېښې قمر ده

پهٔ يغماچې دې لستوڼي پهٔ جنبش کړهٔ
يو ذره دې لهٔ جماله ورې نور ده

له چشمې د شېرينئ دې د سرو شونډو
يو رشحه گړه پهٔ حوض د کوثر ده

هرچې ستالهٔ بنهٔ جماله منکران دي
پرهغو د شقاوت خاوره پهٔ سر ده

<< ۹۸۶ >>

که پیشو دې ده دحسن نعت خوانه      زوره وره دا پیشو په غضنفر ده

طوالت لره دقت دے اے" رفیقه"

د غزل سجع [۵۰۳] پکاره مختصر ده

---

(۸۱)

«۱۲» — «۱۰۰۳»

که سرې شونډې یې دوا د رنځورنهٔ ده      بله تبه په عاشق کښې ظهور نهٔ ده

پتنګ ولیده دنیا کښې هسې شمع      چې لیدلې په فردوس کله حور نهٔ ده

چا به کړې مخرہ وي اوکه نهٔ وي      په زنګي باندې نامه د کافور [۵۰۴] نهٔ ده

وموسلی ته یې ښکاره کړه اوکه نهٔ وي      دا جلوه مدام [۵۰۵] په غرهٔ کښې د طور نهٔ ده

ته او زهٔ یې نابینا په محفل ناست یو      تجله یې لهٔ عاشقه مستور نهٔ ده

هر کریم چې په ریا سره کرم کا      د ریا عمل نامه یې منظور نهٔ ده

دایمي عاشق په طبع د معشوق ځي      په شاهد د عاشق طبع ضرور نهٔ ده

چې بې عشقه شو په دار هغه مردار شو      دا سولهٔ هغه سوله د منصور نهٔ ده

په جیفه اصل دنیا دي سره جمع      دا کافه په ے د میني مخمور نهٔ ده

که دیدار په جمال حکم په غایب کړې      دے د بښتیز ګواهي یې په زور نهٔ ده

اور د هجر کړه هغه سینه کبابه      چې د وصل لهٔ شرابو مسرور نهٔ ده

بریده دې وي د هغه شاعر ژبه      چې دیار د ښهٔ صفت په مذکور نهٔ ده

یک وجوده کړو مجنون لهٔ لیلیٰ مینې      جدایي یې نشانه د مهجور نهٔ ده

په بابنه د محبت تر هغه ښکار کړه      څو ورغلې په منګول د باتور نهٔ ده

د ایرج سر که یې پرېکړ باک یې نشته      څهٔ دنیا میراث د سلم د تور نهٔ ده

د نعمت زوال مدام په بې شکرۍ شي — دا بلا پورې په ځان د شکور نه ده

غم د درد دې په "محمد رفیق" اختر دے
ستاله غم خلاصي پکار د صبور نه ده

---

(۸۲)

« ۱۳ » — « ۱۰۱۷ »

په فقیر خاطر کرم کړه لئیم مه شه — خو په دا سفله طینتو[۵۰۶] کریم[۵۰۷] مه شه

ندیم[۵۰۸] مه شه په کافه د مستکبرو — وایم بیا د کبرجنو ندیم مه شه

له توانګي[۵۰۹] د استکباره په پرهېز شه — ته هم خلقه له شیطان رجیم مه شه

په خصلت مستکبري کښې بدرګي[۵۱۰] ده — په بدرګ باندې تور سګ د جحیم مه شه

د دنیا په تنګدستي کښې یې حکمت دے — ته غافل له دې حکمت د حکیم مه شه

که قبلېږي یې د درکمینه سپو کښې — د صدف په خوله کښې در یتیم مه شه

پسخور ده که یې د سپو در پېرزو کړه — قبلوونکے د جنت د نعیم مه شه

د یار درکښې خس پس په خاوره کښېنه — تاج په سر ته صنشین د دیهیم مه شه

که د ذره استقامت دې درست نه وي — په خانه د بیت الله مستقیم مه شه

چې بوے نه وي له نسیم د یار د زلفو — آشفته د غېر چمن په نسیم مه شه

عاقبت چې دې مقام په تور لحد دے — په دا کنج د خرابه کښې مقیم مه شه

میم د اسم یې روښې چشمه د نور ده — ح یې حمد دے، غافل له حمیم مه شه

میم و دال یې د خم د پاسه مدد دے — له کشش د هغې مده الیم[۵۱۱] مه شه

که شوې مست خراباتي "محمد رفیقه"
سر اېښتونکے د مستۍ له کلیم مه شه

(۸۳)

« ۱۰۲۳ »　　　　« ۱۴ »

زهٔ ګدا خرقه بدوش یم ستا د در ساقي رقیعه (۵۱۲)
تهٔ سلطان زه دې بنده یم ستا فرمان ته یم مطیعه (۵۱۳)
پهٔ ظاهر باطن ژوندون دے ستا پهٔ پاک نامه باندې
پهٔ احوال مې ښه خبر یې یا علیمه (۵۱۴) یا سمیعه (۵۱۵)
لهٔ خدمت یم تښتېدلے یم بخښش لره راغلے
شرمسار او محتوړن یم زهٔ لهٔ خپل فعله شنیعه (۵۱۶)
بې دا ستا لهٔ عزین دره بل درګاه د پناه نشته
که دا ستا نظر پرې نهٔ دي دنیا ورانه ده جمیعه
ستا دعشق عظیم منزل کښې ستا د فضل مرکب غواړم
شل دګوډ پهٔ دست ونپایم همرهان مې شول سریعه
کوه وکاه پهٔ بخښش یو دے تۀ خالق د کائناتو
د کریم عظیم کرم دے لهٔ دې هسې شان رفیعه

د حیوان پتنګ ګداز ته ګوره نظر «محمد رفیقه»
تهٔ هاله ژوے د انسان یې چې شې زارتر خپل شفیعه

(۸۴)

« ۱۵ »

ستا د هجر په اورغرق یم آن تر ساقه

چې محروم دې له دیداره کوم ساعت یم

د عشق اور دې مې کشی [۵۱۷] د زړهٔ سره کړي

مقرر زما په تن دې سد طاعونه

بې له ما دې شفقت په هر چا زیات دے

د اوږدو زلفو اژدریمه [۵۲۰] خوږ لے

په مژګانو ناوکو مې زړهٔ اداء کړه

چې ویشتل کړې په تفنګ د خونی سترګو

په عرصه د کار زار تهکنز مهٔ شه

په هر لورچې ځمه ستا دعشق صداده

هرچې ستا لهٔ مسته عشقه منکران دي

بې اخلاصه د اخلاص دلارې خلاص دے

هرچې ستا د محبت په بساط کښیناست

« ۱۰۳۸ »

په ژړا مې سترګې سرې ستا لهٔ فراقه

ښکلومه د در سپي لهٔ اشتیاقه

تل د اور لمبه مې خېژي لهٔ تاراقه

چې یم پاتې دایمي ستا لهٔ املاقه [۵۱۸]

شفقت وکړه یا مخزن الاشفاقه [۵۱۹]

جړ یې غواړم ستا د شونډو لهٔ تریاقه

چې شم خلاص د زمانې لهٔ طمطراقه [۵۲۱]

صبر مې مهٔ کړه لهٔ ګوزاره د چقماقه [۵۲۲]

که سر پرېږدې لهٔ آسونو د عراقه

ستا نوبت دے په اوه داېره آفاقه

تل دکفر نامه شوه په دوئي اطلاقه

چې عمل یې معطل دے لهٔ نفاقه

کړي به ناوې د دنیا په درې طلاقه

اتفاق دے په لویي د عشق "رفیقه"

نهٔ دي دغه مراتب بې اتفاقه

# "ی"

## (۸۵)

«۱»　　　　«۱۰۳۸»

اې مرغ دل ته ځاړه[۵۲۴] مهٔ دا او بنکې و بنکل منع دي
پنجرې د عشق قیدي لره دانه ورکول منع دي

عاشق که د شاهد په تیغ مجروح شو پاکېږي نښته هیڅ
تل تل د عشق زخمي لره مرهم لګول[۵۲۵] منع دي

هرګز که دېوانه پتنګ بې سوو چرې راضي نه شو
هر شمعې لهٔ پر انجمن دا تېغ ایستل منع دي

وخت د وصالت صبحدم عاشق لهٔ شاهد راز مومي
باد سباله بې سبا پر باغ راتلل منع دي

اژ در ضد به یو تهٔ بد پېمال کړي ګلزار همه
بېباک څکه د غم پهٔ ګل پر ېښوول د کاګل منع دي

پرڅنګ[۵۲۶] کښې ایستاده د ګل یو خار ګڼه مهمان د یار
غوڅ غوڅ که پردا خار شي ګل نارې د بلبل منع دي

حاجي شي چې پر نښت د یار څوک سنګ اسود صحه کړي
ورنه د هر عاشق پهٔ دین بوسه اخیستل[۵۲۷] منع دي

مطلوب لره ورځې هغه ور ورې شکرانه د ځان
بې پېشکش د ځان د روح مطلوب له ورتلل منع دي

زلفېنې د ګلرخ پهٔ مخ حلقې چې شي غورځنګ کوي
اطلس کاپچل د ګلاب پچل د بل ګل منع دي

ارکان دولت خوار شو کل اې غمزده "محمد رفیق"
یو خوارله د بل خوار صفت یارانو ستایل منع دي

---

(۸٦)

<< ۲ >> << ۱۰۵۴ >>

سپین جبین عذار و خال دې ماه ومهر، مشتري دي
خط، کاکل، زلفې درې واړه مار و مور ومنګري دي
دواړه سترګې کج باڼه دې جوړه شمعې پتنګان دي
یا همرنګ دوه غزالان دي دایې عشق نخچیري دي
ستا غمزې اوکږې وروځې دي قوسین ناوک اندازه
پهٔ عاشق پهٔ زړه پهٔ ځان یې ګوره شخ پهٔ لاچاري دي
یاسمین، سمن ګلاب شو منفعل خجل شرمېږي
ستا جمال زېب وزینت ته خاک وخس خاکستري دي
ستا غاښونه شونډې دواړه مرواري جوړه مرجان دي
پهٔ مزه، خوند ولذت کښې قند، نبات شکرتري دي

یا صرصر چرخ و آسیادی یا ببدل، شیدا "رفیق" دے
نه دېخته، خسته برباد شو عشق یې مشک ازفري دي

---

(۸۷)

(( ۳ ))　　　　(( ۱۰۶۰ ))

نه فلک دې زبرپا شو ختم دې په نوم سرداري
نهٔ دهٔ نشته نهٔ به وکړي ستا په شان څوک شهسواري
فخر ازلي کښې لا روښ شهنشاه تهٔ وې تهٔ
عرش و فرش شو ګوے د چوګان ستا که لو بوله پکاري
زر مسیح الله دې بنده حلقه بګوش د در
وابخلي شاهي د دوران ستا چې د سپو رشته داري
ورک یې مخالف شو چې د زړهٔ په سترګو روند شولو
خود بخود خالق تعالیٰ وایي د احمد مختاري
زړهٔ مې نشانه شو ستا د غشو د کمان ابرو
غواړي د مرهم په ځاے کښې ستا په تیغ سل زخم کاري

مړې ستا په لار کښې مخ په خاورو "محمد رفیق"
(۵۲۸)
تاج یې دے په سر باندې ګورد ستا د مبارک پېزاري

(۸۸)

«۱۰۶۲» «۴»

دېوانه ورته مهٔ وايه چې پهٔ عشق کښې څوک مجنون شي

چې پهٔ عشق لېونے شو دے پدر د افلاطون شي

چې لهٔ عشق يې ملا دوتا شي و شاهد وته يکتا شي

کړي دوره د مجرماته چې لا يار ته سرنګون شي

حسرت چې پهٔ دولت شي خو يې غم د آخرت شي

مبتدي دولت څهٔ نهٔ دے چې انجام دده محزون شي

که د مينې دامنګير شي لهٔ دولته به امير شي

امارت د عشق هغه دے چې بارکشه د بېلتون شي

که بېلتون مې شېرين ياره خانمان د زړهٔ خراب کړ
(۵۲۹)
کوم وطن دے چا ليدلے چې به پاتې تر پايون شي

خرابي مې ودانۍ ده ستا پهٔ مينه کښې دلبره

مرګ يې نهٔ وي شهادت وي چې پهٔ سرو سترګو مفتون شي

که شجر د عشق نهال کړي پهٔ دا دار" محمد رفيقه"
(۵۳۰)
ثمره بې هلته وخورې چې د نړۍ خان بېرون شي

(۸۹)

«۵» «۱۰۷۵»

څهٔ ژوندون د هغه کس چې بنده دے د بنده شي
پهٔ دا هسې بندګۍ به پهٔ آخره شرمنده شي
که پالنه د بد ذات کړي دښمني کوي لهٔ ځانه
پهٔ دا عين تربيت کښې ستا د ځان به درنده شي
نهٔ به پاتې لرمان شي پهٔ دنيا لهٔ نېش وهلو
نهٔ لهٔ بدو دست بردار پهٔ دنيا بدکننده شي
لهٔ نا اهلو نېکي مهٔ کړه دا به تا لره بلا شي
چې مجنون سپے که رحمت کړي ستا د غوښو خورنده شي
که پهٔ مار دې شفقت وي جړکه و ساته د زهرو (۵۳۱)
که دې ځے ورکړه ګرېوان کښې پهٔ ځيګر دې ګزنده شي (۵۳۲)
که شکرې کړې د مېنې هسې پهٔ بد ذات تو يې
پهٔ لږ څېز به پهٔ تا باندې له اژدره رمنده شي
د جهان بساط به داړه همه پاک لهٔ پليتي شي
که قصاب د اجل راشي د بد ذاتو کشنده شي

لهٔ مَلْدَي څخه که ورک شو خام سما: محمد رفيقه؟
امېد شته چې مرده دل دې دوباره چرې زنده شي

---

(۹۰)

«د ۶ »

ستا لهٔ مخ برابري د سمن نشي
گل بدن لري نازک خو برابره
عنبري خال دې ښکاره کړه زهٔ ضامن یم
یو دا ستا د شونډو گل دوبار غنچه شي
چې سرخي پرې ستا د مینې د خون نهٔ وي
عنا دل که ناخبر د گل لهٔ بسړ[۵۳۵] وي
د حسین[۵۳۶] نامه به نهٔ کړي پهٔ ځان پورې
د دو پېښې به دې عجبه وي دلبره
د شیرینې وصالت به حاصل نهٔ کړي
و بلبل ته آرزو د گل ده سخته
عاشق نهٔ دے چې د عشق موتها اوربشي
خال د زنې به دې تور ماه و پروین کا
د عاشق زخم جگر نهٔ رفو کېږي
هغه زړهٔ به ناخبر لهٔ خدائے رسول وي
چې یې صبر پهٔ جفا د یار ونهٔ کړ
دغه ستا د عشق جنون نهٔ دے نور څهٔ دے
عاقبت به یې یو ورځ پهٔ سرگوزار کا
لهٔ دې هسې سگ پلیده حذر بویه

«د ۱۰۹۵ »

د صابون[۵۳۳] کیکوړے قرص[۵۳۴] د چن نشي
نازکي یې ستا لهٔ گل د بدن نشي
شرمنده که تری نافې د ختن نشي
هر چې گل شو پسې غونچه دهن نشي
پهٔ تش آب دې سفیده ماله کفن نشي
پهٔ روضه کښې د گلزار دې دفن نشي
څو پهٔ دار ستا د کاکل لهٔ شکن نشي
چې سلطان پهٔ دا زمین و زمن[۵۳۷] نشي
که فرهاد غوندې پهٔ عشق کښې کوهکن نشي
څو یې مات پهٔ زړهٔ کښې خار د چمن نشي
پرې شیرینې لهٔ سلوی ولهٔ من نشي
پهٔ غبغب کښې که دې سیب ذقن[۵۳۸] نشي
څو چې ستا د بڼو تیر یې سوزن[۵۳۹] نشي
چې درون د محبت د روزن نشي
نجسته به یې دا بیت الحزن نشي
چې ستا زلفې یې گردن کښې رسن نشي
څو یې رام فرس د نفس توسن[۵۴۰] نشي
غلطیده دې د عصمت پهٔ دامن نشي

پهٔ ظاهر باندې شیرین پهٔ باطن ترخه دي — ساده زړهٔ دې دبوده د دښمن نشي

چې مې تن دے پکښې خوار "محمد رفیقه"
خهٔ پردا مې پهٔ دا هسې وطن نشي

---

(۹۱)

<< ۸ >> — << ۱۱۱۵ >>

پهٔ ناا هل دې اخته روح دغم دي — چې مې غم پهٔ داخسته خاطر کښې کم دي

د ساقي لهٔ صنوشي[541] مې ځان فدا شه — خصوصاً پهٔ هغه وخت چې صبحدم دي

چې په اور د محبت کښې یې زړهٔ وریت شو — بې تاثیره به پرې اور د جهنم دي

که نصیب مې یې کوڅالے شو د سپیو[542] — تږې دي زار هزار جمشید و جام جم دي

چې یې خاوره تل زما د سر افسر ده — هغه کوے دې تل زما د زړهٔ حرم دي

باریکي د میني دل مې پر ذړا کې — دغونچې غوندې مې سترګې پر ودرم دي[543]

د عاشقو د امید در دي ترلے — چې سرې شونډې دشاهد وخُبلهضم دي[544]

عاشقان که ومعشوقو ته سجده کا — برهمن پهٔ سجده پروت دخپل صنم دي

شم فدا لهٔ هسې لاسه هسې تېغه — چې یې زخم تل زما پهٔ ځان ملهم دي

د حاتم سخا کرم مې پکار نهٔ دي — صد کرم دے که دیار د لور ستم دي

مناسب دے چې کرم پهٔ ما درویش کړې — د سلطان پهٔ فقیرانو تل کرم دي

هم پهٔ دا یې خوشبویي ځي لهٔ ګفتاره — چې راوته لهٔ دهان د غنچه فم دي

زهٔ یې کله دولتیاب لهٔ بنهٔ دیدار شم — چې محفل یې خاص پهٔ باغ کښې دارم دي

ماتمونه پهٔ کفادو مسلط شو — پهٔ عاشقو ستا هجران کله ماتم دي

هر چې ستا پهٔ سلسله د زلفو بند شو — آزاده به د کونینو پهٔ عالم دي

خو یو ځل مې د خپل سپي په نوم وبوله — بیا دې ځان زما له دې جهان پنهم وي (۵۲۵)

مې د هجر له بې وصله ژوندون نشته — که پرې چُف لا د مسیح د شونډو دم وي (۵۲۶)

زړه ځکه د عاشق ګل د نو بهار دے — په خندا پرې د فراق د اوښکو نم وي

هم په دا یې د عاشق رتبه شوه زیاته — چې له بسطه لا په قبض کښې محکم وي

پس له مرګه نه کړي سود "محمد رفیقه"
که په ژوند دې هفت اقلیم زیر قلم وي

---

## (۹۲)

«۹»　　«د ۱۱۲۵»

بلبل زړه چې مې مدام وي ستا چمن پسې رهي
غوټړه زنه دې له سیب ده له بهي په فربهي
له تاثیره ستا د سترګو شوخ نرګس کړې سترګې کوږې
منفعل ستا له قامت ده سرو ناز سرو سهي
له سرو ګلو دې جمال دے بلند تر په مراتبو
خو د عاشق له عندلیبه کړي غالبه جانکاهي (۵۲۷)
بلبلان له خوف د هجره و سور ګل ته پناهي کا
چې خار هم ورق د ګل کړ و خپل ځان ته پناهي
صد افسوس چې ځان و روح یې زه له سپیو فدا نه کړم
چې شفیع زما مسکین شو پر مدد د الٰهي

عاشقان که خود رایي کا په کونینو آزاده دي
نهٔ شاهد له ځي په امر نهٔ ځي بېرته په ناهي

خود رایي د عاشقانو په منزل د عشق روا ده
هم په دغه خود رایي کېنې یې ورکړله مهي

(۵۴۸)
د مهي په لاړو شاپو اهریمن ابدي دد شو
شاهي بیا مونده عشاقو په دولت کېنې دکهي

ضابطه یې تخت دپاسه شهنشاه ته خال په خوله کا
(۵۴۹)
سلامت یې یونس بیا موند په شکم کېنې د مهي

د درویش اورنګ یې خاک کړ شو بېباک "محمد رفیق"
(۵۵۰)
شاهان پورته په افسوس کړي لهٔ اورنګه دشهي

---

(۹۳)

«د ۱۰» «د ۱۱۳»

اے شاه خوبانِ چمن، بلبل په ځان شېدا لري
کاکل دې کړ سنبل خجل سپین مخ لهٔ ګل زیبا لري

(۵۵۱)
سوزش دې کړي جلوه د رخ پرتابې شینګ خال شو وریت
یو ورځ به شي آتش همه سالو چې پرې یکتا لري

سېراب به کړي ګل تشنه لب ساقي په یو قطره د مے
عشاق دعاګویان دي ستا بخشش پرې عام صهبا لري

ول ول دې د ذلفېنو دام راخور پهٔ مشکين خط وستا
ناګاه پرې بند شو مرغ دل دام وزمين همتا لرې
۵۵۲
شعله د حسن اخدېچې ستا ناګاه پهٔ لاله زار کښې شوه
۵۵۳
دامن د اور پر باغ شو خور سوخته ګل لالا لرې

اې رحم حق دايم کمک فوج الملک وو ستا پهٔ لور
شاه عرب والا نسب ببرق پهٔ عرش بالا لرې
دا ستالهٔ کامد حسن وتېغ الماس دٔخور شومنفعل
۵۵۴
بر دست يک مرکزدې سېف پر بل دُر رعنا لرې

دا ستالهٔ مصباح الهدی نابود شوه کفر وکافرې
عالم شو نوراني پهٔ تا رشک القمر سيما لرې
انکار دې کافر نهٔ کړي سود پرتا نبوت حق کړو تم
فرقان دې ظاهر معجزه پر ايدیٔ البيضا لرې

خوبان ددې دوران همه بنايست له خوف نقصان کښې
۵۵۵
يوستا نشي نقصان پذير دلبر حسن سلما لرې
ستا د براق برق وش شاطر ويم جبريل امين
۵۵۶
خادم يې دزين وستام موسٰی دويم عيسٰی لرې

شاهان يې خدمتګار دسپو پيدا شو اے "محمد رفيق"
نن پېه شه د سلطان ددر اميد که د فردا لرې

(٩٤)

<< ۱۱ >> << ۱۱۵٦ >>

ستا د شونډو د لذت نښته په کوثر کښې ... نه د مخ حسن دې وینم په قمر کښې [٥٥٧]

په جبین که دې تتق د سالو نه وي ... د خجلت آثار به وښایي په نور کښې [٥٥٨]

که نسیم دې له مشکي کاکل آزاد کړي ... په چمن کښې به سنبل زېړ و زبر کښې

تر قیامت دې شرمنده سرو سهي شوه [٥٥٩] ... هسې زېب دے ستا د حسن په شجر کښې

د مهجور استغاثه به مدام نه وي [٥٦٠] ... که معموره یې د وصل په ثمر کښې

د سرو لبو په محک دې قسم خورمه ... چې کوټه به اکبري چاندي سره زر کښې [٥٦١]

د فردوس حوران به واړه شي بې ځانه ... که خواره پرې د زینت د ناز شهپر کښې [٥٦٢]

چې دې اوږد سترګو جور شي جهان سوته ... د بڼو په پټنګانو ے مستتر کښې [٥٦٣] [٥٦٤]

هر چې ستا د فراق تاب یې لید لے ... و به نه سوځي په تاب لا د سقر کښې

حسن ستا دے رحمة للعلمین ... چې به نه وي په دویم بني بشر کښې

تاریکي شوه له جهان واړه معدومه ... چې ښکاره شوې د قریشو په دفتر کښې

که دا ستا د جهان نور په جهان نه وي ... تاریکي ده د خورشید په کر و فر کښې

چې په لیلة المعراج کښې دا ښکاره شوې ... نور سپوږمۍ درېږي تل وي په سفر کښې

ته سلطان یې په مسند د ملک د حسن ... شهنشاه یې د خوبانو په لښکر کښې

له رفتاره دې خرام د زرکو هېر شو ... له ګفتاره شرمنده بلبل اکبر کښې [٥٦٦]

له ساده مخه سردار یې د ګلرخو ... احتیاج د جمال نښته په زېور کښې

ستا د سپو تر قدم زار شمه دلبره ... مال و ځان مې دې تاراج وي ستا په در کښې

چې مې تل ستا د نسیم لاره ساتله ... بینایي مې شوله تېره په نظر کښې

که د سپیو خدمتګار "محمد رفیق" کړې [٥٦٧]
په دا کار به یې سلطان سکندر کښې

د عقبې توښه دې نښته سر تهٔ سر ګناه آلوده یې
نهٔ پوهېږم پهٔ تا نفسه چې شداد یې که نمرود یې
هر صالح له آخرت کښې سکونت دارالقرار[۵۶۸] دے
که پهٔ تا یې فضل نهٔ وي د دوزخ پهٔ حد محدود یې
زندګي دې پهٔ څو وخته لا پهٔ مثل د حباب دهٔ
زړهٔ نور د[۵۶۹] نمازیګر یې چې پهٔ تېغ د غرهٔ نمود یې
بې استاده بهٔ څهٔ وکړې پهٔ کمال نادانۍ کښې
عنکبوت غوندې لهٔ ځانه بافنده د تار و پود یې
شکایت کوې لهٔ خدایه پهٔ داعین مراتب کښې
دایمي پهٔ ماتم ناست یې د فلک غوندې کبود یې
پهٔ دا هسې تاریکي کښې موندهٔ نهٔ شي لاره سمه
اندرون[۵۷۰] دې ډک لهٔ خیرې پهٔ ظاهره زر اندود یې
ستا به تېر د عقیدت وي همېشه پهٔ نخښه نېغ
که کمان غوندې خم پښته پهٔ طاعت د خپل معبود یې
د ذرهٔ راز به دې هسې نهٔ برابر لهٔ داسے العین شي
پهٔ قصه که خبردار نهٔ د عاد[۵۷۱] او د ثمود[۵۷۲] یې
زهٔ به ګوره ستا پهٔ اسم ضرب مهر سکندري کړم
که خاص پېر لهٔ خاصه نښته د احمد او د محمود یې
شهنشاه که د دوران شې سلاطین دې چاکري کا
دا دې صیح سلطنت نهٔ دے چې لهٔ دې درهٔ مردود یې

معشوقه پهٔ بېداري کښې شي موندے "محمد رفیقه"
د غفلت خوب دې حرام کړه که طالب د خپل بهبود یې

## (۹۶)

«۱۳» «۱۱۸۴»

[۵۴۳] په جبين په وروځو بدرؤ هلال ته يې / هم آفتاب مې د دولت و اقبال ته يې

زۀ يم عين سوخته جگر د عس داره / که په سرو شونډو چشمه د زلال ته يې

سم قامت مې ستا له هجره په منځ خم شو / په گلشن د زندگۍ مې نهال ته يې

نور به څۀ درمه منت د ساده رويو / په دوران کښې چې سرخط د جمال ته يې

هر کمال دې د عالي نسب چاکر شو / د شرف په سرير نور د کمال ته يې

په عزيز درگاه عزيز شوې له معزه / عرش و فرش لره عز [۵۴۴] و نوال ته يې

زياده له تا حبيب و محبوب نشته / چې شاهد د لم يزل لايزال ته يې

نه پوهېږم په خپل حسن مستغني يې / که له ما کمينه سپي نه ملال ته يې

خون د زړه مې دې هم ستا د تن په جام کښې / زار که هسې خون د جام ته لېوال ته يې

خيالات مې له مغزه شو داړه محوه / چې په دل کښې مې مرآت د خيال ته يې

ما به ماته ستا په در کوزه د تن کړه / خور رسوا به په [۵۴۵] دا هسې سفال ته يې

حيف په هغو چې دا ستا قدمبوس نه شو / بنکاره شوې پرې خورشيد د جلال ته يې

په اعناقو [۵۴۶] مو اغلال دي ستا د زلفو / پناهي مو د مجبين [۵۴۷] له اغلال ته يې

چې حورانې په سياهي د بلال نبلي / زيب آدايه د زينت د بلال ته يې

چې "رفيق" په زندگۍ په سفر نه دې
پېش و پس د دۀ پښتې د اعمال ته يې

---

# پارسي او اردو کلام

---

## غزل

## به بحر کتاب زلیخا

«۱» «۶»

مُحَسّ وَجْهِهٖ شَمسًا يُجَلّىٰ نورِهٖ و مَلَكٌ اَکْرَمُ الْقُدْسِیْ عَدَمُ عَنْ ذَاتِہِ الْبَشَرا

فَـتَیْ عَنْ فُرْقَةٍ قَلْبًا نَهَارُ اللَّیلِ فِی طَلَبْ دَمُوْعُ عَیْنِہٖ غُلْبًا لَمَوْجِ الْفَوْقِ اَبْحَارا

✱✱✱

به پیش یار مینالم نمیبیند به بدحالم عجب آمد درین عالم کشنده عاشق خودرا

منت افتاده ام بر در به حال زار ما بنگر دل و جان داده ام دلبر به سودایت بحر مارا

✱✱✱

کلیجہ پھوٹ گیا صنم مہجوری سے پیا[۱] دم بہ دم تو ایک دفعہ نظر کرسم تو ہیں دین شاہ میں بیچارا

✱✱✱

تهٔ عندلیب مین پر گل "رفیقا" یادوه پیر خپـل

جدا دي نهٔ کا خداے بلبل هر گز د گل د رخسارا

---

« ۲ »　　« ۱۶ »

گر به عشقش مبتلا یی قل هو الله احد　　بنده خوف و رجایی دان که الله و صمد

لم یلد پاکی ذاتش دان تو لم یولد چنین　　لم یکن اظهر نمایی کن له کفواً احد (۵۷۸)

گر چه منصورت کشد بر دار از حق گفتنت　　کن ازین گفتن فدایی تا نگردی شد ورد (۵۷۹)

در ازل چون کرد پرستش از تو مخدوم است　　خادم قالو بلایی دار محکم در کبد (۵۸۰)

داشتی آشیانه یی چون بلبلی در باغ قدس　　آن که مثلش روشنایی لم اتیها فی البلد

حکم حق لا تقربی بد از درخت دشمنت　　آخر از آن دانه خالی گشت جانت منعقد (۵۸۱)

فکر کن در دار دنیا بلبل مسکین به جان　　تا که در دوزخ نیایی بند حبل من مسد (۵۸۲)

بنده یی ساغر زنی شو، خدمت میخانه کن　　تا که در جنت بیایی مست رضوان الابد

چون خطاب آمد مزمل سید (۵۸۳) لولاک را　　کن تو بر دلقی گدایی (۵۸۴) خرمی بیحد وعد (۵۸۵)

خاک پای اهل دل شو یا سگی «محمد رفیق»

دار درنیت صفایی فی درنده همچو (۵۸۶) دد

---

---

« ۳ »　　« ۲۴ »

نگارستان خوبی را هزاران دلبری باید　　بدین اورنگ (۵۸۷) سلطانی نه بی زور سروری باید

شده آئینه سازان بیش در بازار این دنیا　　نه هر آئینه سازی را سری اسکندری باید

سیه رویان قسمت را به جنت کی درون آرند　　که فردوس معلی را رخ حور و پری باید

پوش این ماه وسیاره به دود آه خود ای دل　　که پیش ماه رخسارش نه ماه و مشتری باید

سریر عشق را شاهد چو تو سلطان به کار آید　　که پیغمبر سلیمان راز داد انگشتری باید

اگر مشک است تاتاری که بوی خوش مشام آرد　　نه طیب است این که این معنی ز خاک عنبری باید

چو چین[۵۸۸] کاکلت هر سو به رویت حلقه زن بینم عجب کاین مونس مه رانه خوی اژ دری باید

چو خنگ[۵۸۹] دوستی دادی به جان غمزده[۵۹۰] دلبر

چو تو سلطان به این زهره به بخت انوری باید

---

«۳»

دوش[۵۹۱] از مسجد شدم درمیکده مهمان یار

صحبت رندانه بود و محفل شاهانه گشت

گه به خوردن گه به نوشیدن گهی بر تار گوش[۵۹۲]

از سر لطف و خوشی صد داستانها زد حریف

از لگد کوبی او[۵۹۳] مستان شد تماشای غریب

«۳۰»

بانگ نوشا نوش بود و قلقل مینا هزار

چون ز رخ برداشت ساقی پردهٔ گلنار نار

چنگ بود و رنگ بود نعمت پروردگار

صد غزل در یک غزل صد نکتهٔ بر نکته دار

بر کریه المنظری آن صورتی مثل الحمار[۵۹۴]

سود دنیا زن بر آتش غمزده «محمد رفیق»

کن به همجنسان فراغت جنس با جنسش[۵۹۵] گذار

---

« ۵ »      « ۴۱ »

از عشق ترکی سرکشی[596] خونم گریبان دربغل      کز غمزه اش دارم به دل بشکسته پیکان دربغل

آن مهوشی حوری مثل از طرهٔ[597] مشکین خود      داده به بستان اِرم صد دسته ریحان دربغل

آشفته در طرف چمن سنبل به تشویر[598] اوفتاد      چون دید آن شنگول[599] را کاکل پریشان دربغل

از پرتوی سیمای اوطاس[600] سپهر[601] نیلگو ن      باصد هزاران شمعها زد بدر تابان دربغل

خال سیاه برابرویش دیدم خداوند اعجب      کامد به دست زنگی محراب خوبان دربغل

برچشمهای خونیش پژمرده گی از خمرنی !      پوشد بدین افسونگری خون گدایان دربغل

وصف دهان آن صنم درج است سیمین هردولب      یاقوت حمرا شد به هم از گوهرش کان دربغل

ریزد به وقت گفتنش صد تودهٔ قند و نبات      از منطق شیرین زبان شکر فروشان دربغل

رفتار آن سروروان تشبیه ندارد بر بشر      از ناز و غنج[602] و عشوه[603] اش کبک خرامان دربغل

آمد به بزمم ناگهان آن سرور خوبان چه خوش      در زیر خط[604] دلبری سیب زنخدان دربغل

«محمد رفیق» از مفلسی وزبیکسی ناله چرا
دارد ز خاص نور حق خورشید رخشان دربغل

---

## غزل اردو

«۶» —— «۵۳»

گردن میری کا کل تیرا زنجیر ہے زنجیر ہے — جانتا ہوں میری عمر بھر تشویر ہے تشویر ہے

ناصح اگر خالق کیا عزت طواف کعبہ میں — عاشق کو کوچۂ یار[۱۰۵] میں توقیر ہے[۱۰۶] توقیر ہے

تیری لطافت حسن سے شرمندہ ماہ و مشتری — از ابتدا ایجاد سے تشہیر ہے تشہیر ہے

یہ بیدل و شیدا نہیں ڈرتا ملامت سے کبھی — یہ خاک آب عشق سے تخمیر ہے[۱۰۷] تخمیر ہے

تیری کمند زلف میں محبوس ہے سارا جہان — حقاکہ ہفت اقلیم پر تذکیر ہے تذکیر ہے

اے صاحب عزولوا ہفت طبق ارض و سما — تیری جبین کی نور سے تنویر ہے[۱۰۸] تنویر ہے

تری مژہ کی چوٹ سے صد دل تڑپتی خون میں — گرچہ بظاہر مژہ بل تیر ہے بل تیر ہے

چہل سال سے مہجور ہوں دیکھا نہیں صبح وفا — ای دوستوں سب میری سے تقصیر ہے تقصیر ہے

دلبر کی سونی ماتھی پر خال سیاہ دیکھو عجیب — زنگی پلنگر کو ختن تسخیر ہے تسخیر ہے

ہو آفرین بیحد و عد اس صانع تصویر کو — ویسے مصور کا کہ ہر تصویر ہے تصویر ہے

ہے رحمت للعلمین گلرخ تیرا اے گلبدن — بل رحم کی آیات سے تفسیر ہے تفسیر ہے

گر بُت کیا ہم پر جفا ای غمزدہ "محمد رفیق"
بت سے گلہ ہرگز نہیں تقدیر ہے تقدیر ہے

# متفرقات

## مخمس

«۱» «۳۵»

پهٔ توسن د فلک سور قمر رکاب عالیجاه معلی عالي القاب
منور تر آفتابه تر مهتابه ستا د نوره جهان واړه شهٔ کامیاب
د خپل حسن ماه و مهر مشتري کا

څهٔ موندلي دو یوسف ستالهٔ جماله پهٔ دوران کښې شو ظهور بدرمثاله
نهٔ یوازې زلیخا شوه پرې حلاله واړه مصر یې لهٔ عشق شو پیماله
تهٔ لهٔ نوره شرمسار حورو پری کا

چې دې حورې د بنایست دي ثنا خوانې فرشتې دې کړې نعتونه خوش الحانې
پهٔ فردوس دې حمد وایي بلبلانې پهٔ تا فخر کا د عرش حاملانې[209]
شو کافر چې به لهٔ تا نه منکري کا

ستا جمال خاصه لهٔ نوره د خالق دے هم فرقان ستا پهٔ علو باندې ناطق دے
نالایق که دې دغه بنده آبق[210] دے ستا عزت د عزت دارونه فایق[211] دے
بیا د تېښتې معذرت بې فرارې کا

معزز شوې د خالق پهٔ لوے خطاب تهٔ پهٔ بشیر نذیر یې یادکړې پهٔ کتاب تهٔ
را ښکاره کړه د هلال و روځو محراب تهٔ د عاشق د سترګو وکوره سېلاب تهٔ
دلجویې کا هر شاهد چې دلبري کا

پهٔ ظاهر کښې که لهٔ نسل د آدم یې تهٔ تر واړو آدمانو مکرم یې
هم کریم السجایا جمیل شیم یې پهٔ حشر باندې شفیع د هر امم یې

گدایان ستا د دربار سکندري کا

چې خوبان ئي لهٔ صيبته پهٔ لرزش کښي    نور مکان وکا پهٔ قد دې خوارش[٦١٢] کښي

خلايق سوځي پهٔ تاب اوپهٔ تپش کښي    ئي ببېرغ د شفاعت دې پهٔ جنبش کښي

د خپل سپي پهٔ نامه خلاص مې لهٔ بادي کا

پهٔ صراط باندې چې داشمه تېرېږم    زهٔ عاصي د رب لهٔ قهره وېر وېرېږم

پهٔ لرزه د شقايق غوندې غوړ ېږم    خامه ستا پهٔ کمال حسن هوسېږم

چې سلطان به ئې زموږه دصبري کا

چې لهٔ دې جهانه ځمه پهٔ فراق شم    مبتلا د ځنکدن پهٔ سخت ذوراق[٦١٣] شم

لهٔ ابليس دې دستګارستايهٔ اشفاق شم    لکه تير دې د صدف پهٔ ويشته طاق شم

عنايت راته خيرات د سرداري کا

چې سر کښېږدم دلحد پهٔ تخته باندې    د جمال شمعې روشن کاراته درانده دې

که اګرچې يم د ګور د خاورو لاندې    ځان و روح به مې عشرت ستا پهٔ شوق کاندي

پهٔ بوستان د مدينې مې تله جاري کا

ستا زينت ته پهٔ حيرت شمس الضحیٰ دے    نعت[٦١۴] د زلفو دې والليل اذا يغشیٰ دے

چې مولد دې پهٔ يثرب پهٔ پاک بطحیٰ دے    قلم مات ستا د صفت لهٔ انتهیٰ دے

نهٔ بې خلاص پهٔ ستايش بري بحري کا

چې ديدار پسې دې ذاري مدام شمعې    پتنګ ځي د صفو اوبنکو خپنو[٦١٥] پهٔ طمعې

شو پرې پورې نوم د عشق پهٔ هرې جمعې    پهٔ هر ګوش کښې دي دده د شورش شمعې

خو دا وصاف دده بلبل[٦١٦] سحري کا

چې اوصاف دې پهٔ چمن کښې عنادل کا    ترې تعليم پهٔ مبحدم عاشق ببدل کا

خرابات وته بکاره حسن کامل کا    غل وغش لهٔ خمر خوارونه زايل[٦١٧] کا

چې پهٔ نوش د هر ساغر سخنوري کا

که پهٔ نعت دې یوګدا غزل پردازشو　　خوشطرازه پهٔ سل رنګه زیب وسازشو

محاسب کله دا ستا د عزو ناز شو　　خو پهٔ لوے عالي نعمت باندې ممتازشو

د پښتون پهٔ سخندانو افسري کا

تاج د تخت د سلطنت تالره سنا یي　　پهٔ جلوه دې نوراني عرش وسیما یي

پادشاهي کا هرچې ستا د در ګدا یي　　پهٔ انګشت د سروري انګشت نما یي

بسلاطین دزمانې یې فقیري کا

چې الف او بې یې ستالهٔ عشقه یاد شي　　د جهان د علماؤو به استاد شي

صد افسوس مې پهٔ شیرینې پهٔ فرهاد شي　　چې یې ځان پهٔ تاواني کارکښې برباد شي

پهٔ مذهب د عاشقانو کافري کا

که پرتو دې د انوارو راخرګند شي　　ورک او سپک به ددې شمس و قمر خوند شي

مخلوقات به دې دزلفو پهٔ زنځیر بند شي　　د افلاکو پهٔ ګردن کښې به کمند شي

(۶۳۰)
لهٔ کمال هسې لوې بې پر بري کا

پهٔ خلقت پهٔ شرافت در یتیم یې　　پهٔ تشریف د شرف ذات هسې حلیم یې

هم قسیم یې هم جسیم یې هم نسیم یې　　پهٔ پنجه د نبوت باندې وسیم یې

دا ګدا "محمد رفیق" سګ دری کا

---

## مخمس

«۲»　　　　«۷۰»

(۶۳۱)
که پرتو مې پر فلک د عمر نود کړ　　یاد ګردش مې پهٔ سما د بخت قمر کړ

برکت مې ځان و روح له خالق ورکړ　　پهٔ خبزش کښې مې زیاته ډونډ شجر کړ

پهٔ ظهور به ستا د نعت در مکنون کړم

څه ګدا به ستا نعت ته اقـدام کا　　چې صفت دې د خالق مجيد کلام کا

هر چې نوش يوه رشحه دا ستا د جام کا　　ستاره بې[۶۲۲] د کونينو بدر تام کا[۶۲۳]

دا قسم په خاصه اسم د بېچون کړم

ستا صفت قاب قوسين او ادنٰى دے　　هم راغلے په يٰسين او په طٰه دے

درنه پاتې جبرائيل په منتهٰى دے　　هر نبي له دې عزته ماورا دے

سر به لاندې[۶۲۴] ستاله چتر همايون کړم

د ګناه پېټې مې دروند منزل مې ګران دے　　شل وګوم په دست وپا تن مې حيران دے

په دا دشت د بېکسۍ پاتې مې ځان دے　　خوار بنده دې د نسيم ته نګران دے

په دې عجز سره توے د ځيګر خون کړم

ته هادي يې د مضلو ګمراهانو　　هم ته يې پشت و پناه د غريبانو

په نسيم مې کړه سرمست د زلفانو　　پتنګ وسېځه په شمعو د چشمانو

چې خالق رب العزت باندې مفتون کړم

چې ګوهر دې په صدف وو د شرف کښې　　هفت اقليمه وو تياره په هر طرف کښې

څه عجيبه بزرګي وه په صدف کښې　　چې ترې تا غوندې انوار شو په کشف کښې

څه بې زه په دا قصير زبان مضمون کړم

له ديداره دې روشن شوه کائناته　　اے احمد عالي نسب والا صفاته

شه ارواح مې ستا د سپو د درخېراته　　ستا کوڅه کښې مې پياله شه د تن ماته

زه مدام په دا اميد سره ژوندون کړم

په دا خاک که مې ذره د تن نمک شي　　دست بسته به مې بندګي وته فلک شي

هر چې ستا د پښو تېرېږي په زړه لک شي　　هغه دل به له حيات ابدي ډک شي

زه بلبل يې مصرعات په ګوناګون کړم

عبث زما دے که بلبل ستا د صفت شوم　　　پهٔ پرواز دي پهٔ بوستان کښې د زينت شوم

بيالهٔ دغه گفتگو پهٔ خجالت شوم　　　چې زهٔ څهٔ يم چې لايق د دې مکنت شوم (۶۳۷)

مگر فضل د خالق چې د مضمون کرم

که د امير" محمد رفيق " دوبار زنده کړي　　　هم بنده يې د بنده بنده بنده کړي

يا يو سگ يې سگ د سگ پهٔ نام خواندګي　　　اسبد شته چې يې سلطان دور زنده کړي

نيم بسمل به پر صلوٰة د يو ملعون کړم (۶۳۸)

<< ۳ >>      << ۸۲ >>

صبح صادق د رخسار    که راښکاره کړي نګار

شپه به د هجر په ما    بیا دوباره کړي سهار

***

نوراني تا کړو فردوس    با ته ناوک وروځي قوس

ګوزار په دل کړه زما    زهٔ منت باد د ګوزار

***

بدر مثال دي جبین    لا بل د بدر آسمین

(۶۲۹)

خال د ابرو کړه نما    فجل کړه مشک تاتار

***

ګوزار کړه شاته زلفان    ښکاره کړه بدر تابان

روښن کړه عرض و سما    عاصیان خلاص کاله نار

***

نن کړه کاکل سایه بان    په اورکښي سوځي خوبان

ته یې د بخت هما    خاصه رحمت د غفار

***

(۶۳۰)

د مخ له خط دي حسن    جوړ د فردوس دیاحین

« محمد رفیق » معما    په دا بیاض کړه اظهار

«۳»　　«۱۰۳»

شاه سیما قمري　　زلفې لرې عنبري
زنخ دې قند و نبات　　دواړه لبان شکري

* * *

مخ دې آفتاب دے د نور　　جهان پهٔ تاشو معمور
داکړه د حسن خیرات　　ذهٔ ستا دمه مشتري

* * *

کاکل دې ابر سیاه (۶۳۱)　　رخسار دې رشک د ماه
ما ترې موندلے حیات　　هم ترې چشمې (۶۳۲) کوثري

* * *

ستا پهٔ دیدار پسې تل　　دي ې پهٔ هجر کښې سول
پهٔ فراق کښې دې زیات　　ژاړي (۶۳۳) بلبل سحري

* * *

تهٔ یې صاحب د جمال　　پهٔ تا یې تم کړو کمال
پهٔ تا شي رد کل آفات　　هم شي زایل بتري

* * *

ستا چاکران انبیاء　　ناست پهٔ مسند یې والا
عالي دې ذات و صفات　　ددکړه خالق سروري

* * *

تهٔ یې مالک د آفاق　　زیات د هرچانه اشفاق
پهٔ تا ژوندے شي ممات　　لهٔ صد مسیح اثري

* * *

داکړه خورشید د لقا　　نهٔ کوي عمر بقا
کل د آدم ذریات (۶۳۴)　　فقیران ستا د دري

ذړ رستمان دي د در　　ګويا سګان دي احقر

فوج د دښمن دې کړو مات　　شاه لري چنګ د ذمري

* * *

دے عرش و فرش د جهان　　په لاس دې ګوے و چوګان

تاته آسان مهمات (۶۳۵)　　ته يې حبيب اکبري

* * *

که د پښتو په شهراز　　محمد رفيق کړې ممتاز

د استاد سپو درجات　　غواړي رفيق پېښوري

«۵»

دلبرلب یې شکر دل و دلدار زما دے
لا گل یې د ځ گل نني بنهار زما دے

* * *

گلرخ چې تار په تارکړه مسلسل دواړه زلفانن
له ستړگو نه بیا درک نور وانوار زما دے

* * *

نن لاړم د یار لورته زه مسکین هجر دهځ
پرخشم پر غضب ولې بیا یار زما دے

* * *

هر دم زه د مبدم شمه له داسې غمه وچ
هر پر ددې مگس په نظر خار زما دے

* * *

وریت زړه سوي سینه کړم یې سیراب په وصالت
کوه کن غوندې خپل قتل ته اختیار زما دے

* * *

آتاد د بنه دیداریې کړه بنکاره راته په خوب
جانان په ملک د حسن کښې سردار زما دے

* * *

ګرېوان څنه مې نور د مینې وکړلو تشریق
منصور غوندې بیاسر په سر دار زما دے

«۱۳۲»

نن بیا په دفتن ځي
پر ملک دختن ځي

بیا جوړ شو سایه بانن
دعنا له زمن ځي

داغلم په پس دځلځ
پیچیده سخن ځي

نا ستړ کړي په یار پچ
پر گل د سمن ځي

بیا داغ فراقت
ے غنچه دهن ځي

دا ته دے لیو نتوب
ڈاړم چې مین ځي

بې صبره زه دفیق
خون مې په لمن ځي

---

(( ٦ )) — (( ۱۳۳ ))

د چمن مشام یې کړ کړه مشک آلوده — نسیم دردرهٔ ستا د زلفو څو اوصاف

ستا د حسن لهٔ مخزن یې خلعت بیا موند — شــولهٔ نورو منور واړه اطراف

* * *

پهٔ دربار دې خوبرویان واړه ګدا کا — دوئ دخپر دامن نیولے دے دلبره

بې بصرې چرې څوک نهٔ دي لهٔ تا تللي — پهٔ خپل قدر هر سړے موي الطاف

* * *

پهٔ عزیز دربار دې هر سړے سجده کا — پهٔ ظاهر باطن د کل جهان مسجود یې

څهٔ قدرت د سرکشي ورلره نشته — که درویش دے، که ذلیل دے که اشراف

* * *

عزازیل چې ستالهٔ حکمه ګردن تاو کړ — ترابده لعنتي دغه مردود شــو

هم آدم دې کړ قبول لهٔ استغفاره — زرهٔ او ځان یې ستا پهٔ خاص مهر شو صاف

* * *

صبحدم که د سپین مخ شمع ښکاره کړې — ناګهانه پهٔ کافه د ښېد لانو

څوک به ځان پرې د پتنګ غوندې جلیا کړي — څوک یې کړي د بیت الله غوندې طواف

* * *

چې سګانې د درګاه سـلیماني کا(۳۴) — څوک دې نهٔ شي بېنوا لهٔ هسې دره

پهٔ خلیل شو مهربان " محمد رفیقه" — لهٔ آتشه د نمرود یې کړ معاف

## درستایش پیر دستګیر روشن ضمیر رحمة الله علیه

دد ۷ دد — دد ۱۶۶ دد

اې زما عالي مرشده عالیجاه — مراتب دې دي برتر له مهرو ماه

له اورنګ د معرفت جمشید ته یې — خبردار له حقیقته جاوید ته یې

په نسب عالي نژاد عالي تبار یې — چې ثمر د شجره سیدالابرار یې

اولیاء دې واړه لاندې تر قدم دي — په خپل دورکښې ستا په شاني خلق کم دي

مشتهر په عالي نوم غوث الاعظم یې — زما خاص په خسته زړه باندې ملهم یې

په هر وخت چې مخ په لوري د بغداد کړم — په هادي او په مرشد باندې فریاد کړم

ستا له لوري ماته رسي ډېره نفع — واړه غم مې شي له ځانه ځنې رفع

بیا چې وخت د سکرات (۶۳۸) د ځنکدن شي — په دا سخته تنده وریت مې ځان وتن شي

د خالق په روح حاضر (*) راته خپل ځان کړه — په مدد (۶۳۹) د خالق فیض مې نګهبان کړه

په ابلیس لعین ته نه تندر د آسمان شه — درکوونکې یې له کوېه (۶۴۰) له میدان شه

چې ایمان وګورستان ته سلیم یوسم — بې خطره دغه دُر یتیم یوسم

اې خاونده په خاطر د پاک حضرت ته — مرواریده مې د ایمان کړې سلامت ته

په محشر مې له کذابو په شمار مه کړه — ما جدا له خپل حبیب دلداره مه کړه

که ستا دوست داته د سپي په نوم نداکا — امید شته چې د غم شپه به مې سبا کا

دا کوته له دې سپي نه ته قبول کړه — خاصه بیړه مې د احمد خیرالرسول کړه

اې خاونده په حرمت دې د دوستانو — هم د واړو شهیدانو غازیانو

پهٔ خاطر د انبیادو اولیــا وو — پهٔ خاطر د علماوو صلحــا وو

پهٔ خاطر د امامانو هادیانــو — هم پهٔ سوز د عاشقانو عارفانــو

پهٔ خاطر د هغه پاک غوث الاعظم — په سکانو د حضرت کښې چې کړه ضــم

ما پهٔ دا دولت وځان وته قریب کړه — چې زهٔ وایم د ملکو پرې امین کړه

که بېکس یم د بېکسو کس هم تهٔ یې — بیا ساتونکے ددې خوار نفس هم تهٔ یې

پهٔ گناه یې د عمل نامه غــریق
خو راضي شه لهٔ دې خوار "محمد رفیــق"



---

# درنعت سرورکائنات علیه اکمل التحیات صلی الله علیه وسلم

# وتتمهٔ کتاب

<< ۸ >>      << ۲۰۱ >>

شهنشاه عالیجاه عالي نسبه — خان مې زار شه لهٔ بطحیٰ اولهٔ یثربه

معزز پهٔ تاج دتخت دلولاک تهٔ یې — حکمران هم پهٔ غبرا پهٔ افلاک تهٔ یې

لهٔ سبیه دې پیدا آدم ملک شو — بلند تر شو خاص غلام چې دفلک شو

تر قیامت پورې نوبت پهٔ آفاق ستا دے — بلکه دور د محشر پهٔ اطلاق ستا دے

ستالهٔ نوره یې پیدا کرسي وعرش کړهٔ — ستا دپاره یې بساط دجهان فرش کړهٔ

انبیاء که اولیاء که شمس قمر دي — ده معلومه ستالهٔ نوره منور دي

چې بهره یې ستالهٔ نور دسرورنشته — ده معلومه د هغو سترګو نور نشته

جنتونه ستا د در پهٔ تمنا دي — ستاصفت کاکه بلبلې که مینا دي

پهٔ ګلشن د لامکان سرود شادابه — کائنات دې لهٔ دولته شو کامیابه

چې تهٔ نهٔ وې پهٔ جهان کښې تاریکي وه — دخالق پهٔ احدیت مشترکي وه

ستالهٔ نوره جهان ډک شو پهٔ انوارو — تورې پرېوتې لهٔ لاسو د کفارو

چې عاجز درته دکفر غضنفر شو — پهٔ علم دهدایت دې بلند نور شو

عرش و فرش بلندي بیاموندهٔ لهٔ تانه — منکران دې پهٔ دوزخ دي تر پایانه

راځرګند چې دې صمصام کړلهٔ نیامه (۶۴۲) — سردې یوړلهٔ رستمه هم لهٔ سامه (۶۴۳)

فلک زېر شو ستا د تېغ لهٔ شجاعته — در پهٔ لاس دې کړهٔ دُرر لهٔ بنهٔ ملته

شبچراغ د احدیت هسې روښن شو — لهٔ زر نوره دخورشید ه مبین شو

که ناسوت که ملکوت که جبروت دے　　که دیهیم و تخت په برج دلاهوت دے

همه واړه یې خلقت کړه ستا له نوره　　خلقه شوه په دا هسې رنګ معموره

شهنشاهه ته هادي المضلین یې　　اې سلطانه رحمة للعلمین یې

دي په تا دي صلواتونه سلامونه　　د خلقت له ابتدا نه ترپایونه

خصوصاً چې دي څلور سپهداران دي (۴۴۴)　　په عرصه کښې د ملت شهسواران دي

پس له تانه په میدان جنګړن د دوئ دے　　دکفارو په جنود (۴۴۵) خونړن د دوئ دے

په څلورو سردارانو څلور کونجه　　د آفاق شو دستګار له درد ورنجه

په څلور تېغه څلور دکنه آبادشو　　رسېدونکې په مطلب د خپل مراد شو

بې له تانه جهان واړه کالعدم وه　　و هر لورته په کیهان باندې تورتم وه

چې ظهور دې په دنیا کښې پیدایش شو　　نوراني دا ستاله نور آفرینش شو

په دا نور خلیفه ګان څلور سروره　　تاقایم کړه شوې دوان خیر البشره

آفرین دې دوئ په قدر په همت شه　　آفرین یې بیا په تېغ د شجاعت شه

هر احد چې له دې نور شو ګردن کښه　　ده دا توره په ګردن د هغه خښه

دغه لاریې کړه صفا له غل (و) غشه　　دے جلا شو د کفران له آمېز شه

صد رحمت هزار رحمت مدام رحمت شه　　هم له تا د دوئ په ځان په هر ساعت شه

چې دا هسې جدو جهد یې شریف وکړ　　داکوشش یې خاص په لطف لطیف وکړ

دایره یې د جهان کړه آبادان　　یا حبیبه یا محبوبه د سبحان

"محمد رفیق" که پسے ستا د دربار شي
کلک امېد دے چې په دوه کونه سردار شي

له آغازه د ایجاد آن ته انجام　　اې احمده شه په تا صلوٰة سلام

## شکایت فلک کج رفتار و ازمنهٔ ناهنجار [٦٣٦]

« ۹ » ——— « ۲۴۰ »

د فلک د لاسه دل مې وک پهٔ شور دے
هسې غم يې تل زما پهٔ خاطر زور دے

چې پهٔ شپه کښې پوست وباسي لهٔ پلنګه
هره ورځ نهٔ وي خالي دهٔ لهٔ جنګه

نامعلوم يې د ښادي د غم آغاز دے
پهٔ سد رنګه پهٔ هر رنګ شعبده باز دے [٦٣٧]

د فلک لهٔ دسته مخ مې خون آلود دے
پهٔ وهلو مې تندے سبز وکبود دے

چې مې عمر وچهل وته نزديک شو
پهٔ يکباره غم لهٔ ما سره شريک شو

چې مې عمر مې کله تېر شو پهٔ غفلت کښې
يو دم نهٔ شو مه دمساز پهٔ عبادت کښې

راشه جوړه يوه نکته کړه ښه صريح
چې پهٔ لوستو [٦٣٨] نمکداره وي مليح [٦٣٩]

ګوندې دا دې رهنمايه پهٔ حشر وي
خاص دې نعت د نبي خير البشر وي

پهٔ قيامت کښې پهٔ شماره يې د مداح شي [٦٥٠]
کلک اميد دے چې لايق به د فلاح شي

راته وکاندي ندا سپيه مداحه
لهٔ دې مدحې مبارک دې شه فلاحه

پهٔ دا وخت کښې مشتري د مدحې ستايم
زما سپيه زهٔ لهٔ تا څخه رضا يم

ما ته نشته بد لهٔ دې دولته غوره
سر بلند يم لهٔ دارالهٔ سکندره

دا سګي عين زما سليماني ده
د څښتن پهٔ خپل غلام مهرباني ده

که متاع د عبادت مې کالعدم دے
پهٔ دا نوم يې زړهٔ سلطان د کل عجم دے

پهٔ دا نعت مې خالقه زړهٔ زنده کړې
ما د هسې نازنين د در بنده کړې

کشاده مې پهٔ زړهٔ درد خپل رحمت کړه
پهٔ دا مدح د کمين سپي برکت کړه

دل مې وک کړه د سرور د نعت لهٔ نوره
چې پرې خلاص شم لهٔ دې شب د يجوره

خاک زما ور سره و مدينې ته
د سلطان وهغې ښکلې استانې ته

دې زما خاک ضعيف لهٔ طاقت ورکړې
قرباني يې پهٔ کوڅه کښې د دلبر کړې

چې فدا نهٔ شي لهٔ یاره کله سر دے
چې قربان شي لهٔ دلداره هله سر دے

هغه سرچې بې لهٔ یاره لاړ عبث شو
که پهٔ عشق کښې د نګارخ څې یو پهٔ لس شو

لهٔ دوستانو سره ما فدا دده کړه
بیالهٔ دوئې مې دایې ګدا دده کړه

هر سفرچې مې دیارته دے اختر دے
هر سفرچې بې لهٔ یاره دے سقر دے

پهٔ بطحٰی او پهٔ یثرب کښې خاورې زهٔ شومه
نور مې نوم پهٔ دا جهان کښې پاتې نهٔ شوے

پهٔ ژوندون کښې مې پهٔ لاس څه د غلبیل وے
د دربار یې تمام عمر شاهې خېل وے

یا پهٔ لاس کښې مې جاروب پهٔ خوشحالې وے
نوم پهٔ ما یې د چورې د مسلې وے (٦٥١) (٦٥٢)

چې مې کل واړه دده لهٔ نعته وک کړ
پهٔ نامه مې دا دیوان شمس الفلک کړ

ابتدا او تتمه چې د کتاب دہ
کل لهٔ نعته د سرور عالي جناب دہ

واړه حمد د احد نعت د احمد دے
چې مداح یې د خالق کلام امجد دے

چې سنې ته د هجرت مې تپش راغ
کل حساب یې پهٔ درې حرفو بغش راغ

یعنې تېر دوه هسې دیارلس سوه کاله
دوه د پاسه د هجرت د ذوالکمانه

د جمادي الاول وه دولسمه
دوشنبه وه نمازیګر ورځ معظمه

که اګرچې مې ګفتار واړه ناچیز دے
چې همه نعت دده دے ډېر عزیز دے

چې دده پهٔ نوم شو تم امید مې کلک شي
چې لوستونه یې لېوال انسان ملک شي

[٣٣] که اګرچې زهٔ لایق د تصنیف نهٔ یم
پهٔ تحقیق ددغه حرف حریف نهٔ یم

نهٔ مې علم شته په شان د عالمانو
خو خادم یم پهٔ هر آن د عالمانو

خاص ګدا د شهنشاه پهٔ استانه یم
پهٔ دا شمع د قرېشو پروانه یم

دا یې صلوٰة سلام له پاک احد شه
لهٔ بنسهٔ خدایه خاص پهٔ اسم د احمد شه

چې یې نوم پهٔ ژبان اخلي پهٔ تحقیق دے
بې ادب یې سپے د در "محمد رفیق" دے

---

تمت تمام شد، بتاریخ ١٧ ماه جنوري ١٩١٩ء به وقت چاشت

حرره العاصي فقیر حقیر القاري محمد عبدالمنتقم

اکبر پوروي ثم پشاوري

ددې دفتر ټول بیتونه : ١٤٧٥

# د دریم دفتر لمن لیکونه

# (حاشیې):

---

(۱) امناء: د امین جمع، امین: امانت دار، د اعتماد وړ (عمید)

(۲) صدقنا: رښتیا وایو

(۳) قرآن عظیم: ۱۰۸ سورت ۱۰ آیت

(۴) قرآن عظیم، الاحزاب سورة (۳۳)، ۲۷ آیت

(۵) قرآن عظیم، ۳ سورة ۹۲ آیت

(۶) (۷) ربنا ظلمنا انفسنا: اے خدایه موږ ظلم کړے دے پهٔ خپلو نفسونو باندې.

قران عظیم، الاعراف (۷ سورة) ۲۳ آیت

(۸) اصل: مهٔ زه

(۹) مهاجن: لوے صراف، سوداګر (اردو - پښتو لغت)

(۱۰) بیار: بېپار، دپار: پهٔ دوکاندارۍ کښې چې اخیستونکي او خرڅوونکي د راکړې ورکړې رابطه سره ساتي، یعنې مشترۍ او خرڅوونکي ثابت وي (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۱۱) نزار: ضعیف، ناتوانه، خوار، رنځور (عمید)

(۱۲) زیر: تت نرے آواز، پهٔ سازکښې د لاندې درجې سُر، پهٔ تار والا سازونو کښې لنډه تار - (پښتو ژبه)

(۱۳) دو رو: ودو درو -

(۱۴) مخبون: لنډه شوې، پېوند شوې جامه (عمید)

(۱۵) الغیاث: فریاد، افسوس (د خوشحال فرهنګ)

(۱۶) اصل: لرڅان -

(۱۷) اصل : لالا ، لاله : ډېډ ې

(۱۸) شبخون : ناتار ، تاړاک ، د شپې له خوا پر دښمن نا څاپي حمله (پښتو - پښتو تشريحي قاموس)

(۱۹) ګون : رنګ ، قسم ، لکه طرز

(۲۰) شبګون : تياره ، تور

(۲۱) اصل : غرسه -

(۲۲) اصل : مېګتون

(۲۳) ايرج : د فريدون زوی د سلم او تور ورور ، چې له خپلو ورونوله لاسه ووژل شو.

(۲۴) فرېدون : د پيشدادیانو شپږم پاچا ، چې تر ضحاک وروسته پاچا شو او ضحاک يې د دماوند په غره کښې بند کړ.

(۲۵) درمکنون : پټه مرغلره .

(۲۶) هامون : دښته ، اواره ځمکه -

(۲۷) اوه اقليمه : چې په پارسي کښې يې هفت اقليم بولي ، د ځمکې پر ټول د دنيا ټولو هېوادونو ته په کنايه کښې هفت اقليم وايي.

(۲۸) اصل : چې له زلفو د کمند

(۲۹) راج : باچهي ، حکومت (پښتو ژبه)

(۳۰) دراج : زرکې ته شبيه يو مارغه دی چې ډېره خوږه غوښه لري (عميد)

(۳۱) سراج : څراغ ، ډېوه (پښتو- پښتو تشريحي قاموس)

(۳۲) حجاج : حجاج بن يوسف الثقفي (۶۶۱ - ۷۱۳ء) د بني اميه کورنۍ جرنيل و - خليفه عبدالمالک بن مروان دی د فوج سالار مقرر کړ ، ډېر ظالم سړی و - آخر عمر په عراق کښې تېر کړ و - يو لک انسانان يې هلته ووژل ، کله چې د واسط په مقام کښې مړ شو ، نو د ده په جېل کښې پنځوس زره نارينه او دېرش زره ښځې بنديان وو.

(شخصيات کا انسايکلو پيډيا ، ۲۳۵ مخ )

(۳۳) اهريمن : شيطان ، بدلار بشود ، د شر فساد ، تاريکي او پليدي مظهر (عميد)

(۳۴) سریر: تخت، دباچهي تخت (پښتو ژبه)

(۳۵) راکع: ټيټېدونکی (د تعظيم او تواضع له مخې). (فرهنگ لغات قرآن)

(۳۶) ساجد: سجده کوونکی (فرهنگ لغات قرآن)

(۳۷) غراب: کارغه، کوړاغ (عميد)

(۳۸) جيفه: لاش، مردار جسد (عميد)

(۳۹) عنادل: د عندليب جمع، عندليب: بلبل

(۴۰) رضوان: جنت (پښتو ژبه)

(۴۱) هاروت، ماروت: د دوو پرښتو يا دوو باچهانو نومونه دي چې خلکو ته به يې جادو نده کوله. او د لوی خدای په امر د بابل په يوه څاه کښې سرچپه ځوړند شول. پروفيسور مارگوليوت وايي چې د هاروت او ماروت الفاظ اصلاً د آرامي ژبې دي. او معنیٰ يې شرارت او سرکشي ده. (فرهنگ لغات قرآن)

(۴۲) زهره: د ماښام ستوری، سپلمه ستوری، وينس، وينوس، ناهيد، هغه ستوری چې ماښام راخېژي، د نهو ستورو له جملې څخه يو ستوری دی چې له ټولو نورو سيارو څخه زمکې ته نژدې او زيات روښانه دی. (پښتو - پښتو تشريحي قاموس)

(۴۳) مستغفر: بخښنه غوښتونکی.

(۴۴) مستکبر: کبرجن، خودخواه (عميد)

(۴۵) سموم: ډېر تود باد، ډېره گرمه صحرايي هوا (پښتو ژبه)

(۴۶) غِل: حسد، بغض، انتقام (ظفر)

(۴۷) کرچ: يو خاص ډول توره ده.

(۴۸) خرچ: د تورې وهلو آواز (پښتو ژبه)

(۴۹) پلچ: داړه (پښتو - پښتو تشريحي قاموس)

(۵۰) اصل: داغه.

(۵۱) تيمار: د بيمار خدمت (پښتو ژبه)

(۵۲) نګون: ځپه ، ټيټ شوے (عميد)

(۵۳) نګونسار: سرټيټ ، سرځپه

(۵۴) اصل: ګلزار

(۵۵) رشک: ديد په شتمن والي بخښېدل ، خوبد نيتي پکښې نه دي (پښتو ژبه)

(۵۶) فلاح: خلاصون ، آزادي (پښتو - پښتو تشريحي قاموس)

(۵۷) رماح: نېزې ، د رمح جمع ، رمح: نېزه (عميد)

(۵۸) مصباح: څراغ ، قنديل (فرهنګ لغات قرآن)

(۵۹) دېجور: تياره ، د شپې تياره (عميد)

(۶۰) راح: خوښي ، نشاط.

(۶۱) شهاب ثاقب: يوکوچنے سماوي جسم دے چې د زمکې له مجاور محيط څخه او يا هم له ستورو څخه جلا کېږي. او زمکې ته داخلېږي. د شديد حرارت او اصطکاک له امله په سپين رنګ اوړي او ډېر تت نور ترې ښکاري او د حرارت له امله تبخيرېږي خو کله ځينې دغه اجسام زمکې ته هم رسي. هغوته آسماني کاڼي هم وايي.

(۶۲) عذار: رخسار (عميد) رخسار: اننګي (پښتو ژبه)

(۶۳) ابرو: وروځه ، وروځې (ظفر)

(۶۴) اصل: کنځي ، مادا کلمه په دې بڼه زما تر استفادې لاندې قاموسونو کښې ونه موندله. البته د کيسې کلمه د کړکې (غ قلم) په معنیٰ په ځينو قاموسونو کښې شته چې دلته معنیٰ نه ورکوي. زما په فکر به دا کلمه ګجي وي چې د کږ والي معنیٰ لري او په دې ځاے کښې معنیٰ هم ښندې کړې ورو ځې د پډ کېږي.

(۶۵) دُرې: دريې

(۶۶) سحاب: اوربځ (پښتو ژبه)

(۶۷) حباب: د اوبو په سر بړبوکے. (پښتو ژبه)

(۶۸) پيکان: تير ، سرنېزه ، هغه اوسپنه چې سريې تېره وي (عميد)

۶۸ شاعرلهٔ خپلې لهجې سره سم ښځ ، لهٔ خوښې لره د خوخ پهٔ بڼه قافیه کړے دے او دې ته نه دې متوجه چې شعر ته بې پهٔ فني لحاظ زیان اړولے او قافیه یې عېبجنه کړې ده۔

(۶۹) ښځ ؛ ښځه ، انځري ښځرې ځانګې ، د ونو واړهٔ ښاخونه (پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس)

(۷۰) نځ ؛ د یوموبې نه ورېښل شوے نرے تار (عمید)

(۷۱) مطبخ ؛ باورچي خانه ، آشپز خانه (عمید)

(۷۲) شمخ ؛ شماخه ، شمخه ؛ یوه ګیاه ده چې پهٔ شولو ، جوارو ، ګنیو او هغو ځایونو کښې ډېره پیدا کېږي چې ډېرې اوبه لري۔

(۷۳) برځ ؛ برکښ ؛ پهٔ دې ځاے کښې هم شاعر د خپلې لهجې تراغېز لاندې د لومړي بیت پهٔ څېر د قافیوې عېب خیال نهٔ دے ساتلے۔ برکښ ، برکښه ؛ لهٔ تېکې څخه را ایستلې توره۔

(۷۴) اصل ؛ جوارې ، چوارې ؛ مُسلي ، بهنګي ، سخا ناپاک ، ګنده ، تور ځځ (پښتو ډبه)

(۷۵) پهتې مار ؛ هغه څوک چې تهتي (دلويو بولو ځاے = کناراب) پاکوي ؛ بهنګي۔

(۷۶) خمبه ؛ دغلې غټ کندو (پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس)

(۷۷) اصل ؛ پلاؤ ، دې خوراک ته پارسي ژبې پلو وايي او دغسې يې ليکي۔

(۷۸) پراچه ؛ سوداګر ، تاجر ، تجارت پېشه ، هغه شخص چې پلار و نیکو نو يې هندو مذهب پرېښے او اسلام يې قبول کړے دي ، بزاز ، بې لحاظه (پښتو ـ اردو لغت)

(۷۹) اصل ؛ پېشه ور۔

(۸۰) بلاد ؛ د بلد جمع ، بلد ؛ ښار۔

(۸۱) قرشي ؛ قرېشي ، قرېشو ته منسوب۔

(۸۲) زنګي ؛ زنګبار ته منسوب ، تور پوستے ، حبشي (پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس)

(۸۳) دربان ؛ دروازه وان ، څوکیدار ، دروازې توب (پښتو ډبه)

(۸۵) درستخوان ؛ دستر خوان ، دسترخان (پښتو ـ پښتو تشریحي قاموس)

(۸۶) شادان ؛ خوشحاله ، د خوښۍ پهٔ حال کښې ، پهٔ زړهٔ کښې خوشحاله (عمید)

(۸۷) سپاهان ؛ د سپاه جمع ، سپاه ؛ لښکر (پښتو ډبه)

(۸۸) اشاره ده ، د اسلام نازولي پيغمبر حضرت محمد (ص) ته .

(۸۹) غوپمنی : ګڼ غوايان په يوه شي ګرځونه او د هغه شي کلکونه (پښتو - پښتو تشريحي قاموس)

(۹۰) (۹۱) اصل دواړه ځايه پليت ، چې په پښتوکښې نصداسې ويل کيږي ، خو دوې کلمې اصلي لېکن شکل يې پليد دے (عميد)

(۹۲) مرکنړ : د غاړې آخري حصه (ظفر)

(۹۳) اصل : شړو .

(۹۴) منړ : قدم ، اثر ، تادو (پښتو قاموس)

(۹۵) لونړ : مجرد ، غير متاهل (پښتو قاموس)

(۹۶) ملنډه : استهزا ، مسخرې (ظفر)

(۹۷) هشت بهشت : اته جنته .

(۹۸) اصل : چه

(۹۹) فلاست : مفلسي ، ناداري ، تنګ لاسي .

(۱۰۰) قلقل : له صراحي نه د شرابو يا اوبو د توېولو اواز (ظفر)

(۱۰۱) سماعت : د اورېدو قوت ، شنوايي ، اورېدل ، اورېدنه (پښتو ژبه)

(۱۰۲) مشتهر : مشهور او معروف (عميد)

(۱۰۳) خاقان : باچا ، د چين او ترکستان د باچهانو عمومي لقب (پښتو ژبه)

(۱۰۴) قيصر : کيسر ، امپراتور ، د روم د امپراتورانو د واکمنانو لقب ، د اسټريا (اطريش) د واکمنانو لقب . (پښتو - پښتو تشريحي قاموس)

(۱۰۵) معنبر : عنبرين ، هغه څه چې عنبر ورپورې شوی وي (عميد)

(۱۰۶) اصل : پاے تخت .

(۱۰۷) انعامي : انعام يې .

(۱۰۸) اصل : سنګ ، څنګ ، څنګه

(۱۰۹) دوار : ډېر ګرځېدونکے ، هرهغه څيز چې په خپل شاوخوا څرخي اوګرځي (عميد)

(۱۱۰) ذوالفقار: دحضرت علي کرم الله وجهه توره - (پښتو ژبه)

(۱۱۱) مَنْ اَنْتَ : ته څوک یې .

(۱۱۲) نخچیر: نخچیر: ښکار (عمید)

(۱۱۳) فتاح : مرسته ورکوونکی.

(۱۱۴) عبیر: خوشبویه دارو - یا د خوشبویه داروګانو مخلوط (عمید)

(۱۱۵) یوم : ورځ .

(۱۱۶) عسیر : ګران ، سخت ، شکل

(۱۱۷) لغړ: لوڅ ، بې حیا (ظفر)

(۱۱۸) دلړې : لوړې ، د شاعرلۀ ګړدود (لهجې) سره سم همداسې پرېښوول شو.

(۱۱۹) بړ : دبړونه ګور سیوري لري او پۀ اردو یې معنی د لغت پۀ کتبوکښې (برګد کا درخت) راغلې ده.

(۱۲۰) پسوڼ : څو ځاے کښې ناست ، ځادو ، کمین کښېناست (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۱۲۱) چړ : دروېزه ، د طالبانو چوړکه (پښتو ژبه)

(۱۲۲) مضروب: وهل شوے (عمید)

(۱۲۳) لوړ : کوتک (پښتو - اردو لغت)

(۱۲۴) اړ : اغېز ، بند ، قبض (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۱۲۵) ډب : هغه ژورځاے چې او به پکښې چنوکېږي (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۱۲۶) آثار : نخښې

(۱۲۷) نکهت : خوشبوے.

(۱۲۸) انفعال : د یو شي اثرمنل ، دکار کېدل (عمید)

(۱۲۹) خِرام : ناز و نخرې (پښتو ژبه)

(۱۳۰) خیابان: دګلو کیارۍ - د باغ پۀ منځ کښې لار (پښتو ژبه)

(۱۳۱) شکرباد: شکر دېر ، ډېر خوږ (عمید)

(۳۲) دراهم: د درهم جمع - درهم: دغه کلمه د یوناني ژبې له درخم نه ماخوذه ده - د یوې ټنکې ارزښت یې درلود، د درهم سکه یې له سپینو زرو څخه جوړوله، وزن او بیې یې په بېلو بېلو وختونو کښې فرق کړے دے، وزن یې له ۱۲ قیراطو سره معادل و -

(پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۳) آشفته: پرېشان حال، سرګردان (عمید)

(۳۴) سخ: بخت، طالع، خوښي، نېکمرغي، خوشحالتیا (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۵) آز: حرص، طمع (عمید)

(۳۶) اصل: دعا شو -

(۳۷) احتراز: ډډه کول، ځان ژغورل، ځان ساتل، پرهېز کول (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۸) شناز: خیک، ژے، مشک (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۹) تګ وتاز: تګ، تلل، رفتار تلنه (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۴۰) شیراز: د پارس له ښارونو څخه یو ښار دے، چې د یو روایت له مخې د حجاج بن یوسف ثقفي د وراره او زوم د سنده فاتح محمد بن قاسم (۹۶ هـ ق مړ) ودان کړے و - دا ښار د سعدي (۶۹۱ هـ ق یا ۶۹۴ هـ ق مړ) لسان الغیب محمد شمس الدین حافظ (۷۹۱ هـ ق مړ) جمال الدین محمد عرفي (۹۹۹ هـ ق مړ) په نسبت خاص او ري شهرت لري (د نړغوني یاد ۲۰، ۲۱ مخونه)

(۴۱) محترز: احتراز کوونکے، پرهېز کوونکے.

(۴۲) قز: د کژ: کج معرب شکل دے - او خامو ورېښمو ته هم ویل کېږي.

(۴۳) خز: ورېښمین ټوکر -

(۴۴) مې: مې یې

(۴۵) رز: انګور، د انګورو وني، تاک.

(۴۶) دا کلمه د شعر له قافیوي جوړښت سره سمه نیز تلفظ کېږي، د نیز معنی ده هم چې دلته معنی نه ورکوي- دا کلمه نیزه ده چې معنی یې ده سېلاب (زړه پاڼګه)

(۴۷) اصل : هوګې

(۴۸) ګشنیز : دنیا (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۴۹) بیږ : وز ، سېرلے (پښتو، پښتو تشریحي قاموس)

(۵۰) ژاژ : بېهوده خبرې (پښتو ژبه)

(۵۱) اصل : څکه

(۵۲) درنج : دړنه یې

(۵۳) حشمت : دبدبه ، لويي ، شان (پښتو ژبه)

(۵۴) جلاجل : ګونګرو ، هغه زنګونه چې د څرمنې په پټۍ باندې پېرلي شوي وي. (پښتو ژبه)

(۵۵) اصل : لږ ي.

(۵۶) پرنیان : ورېښم ، ورېښمین ګلدار ټوکر (عمید)

(۵۷) پلاس : ګلم ، ټغر هغه فرش له وړیو څخه جوړېږي (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۵۸) لهٔ جنس دپیري اود جنس خلقو نه (قرآن مترجم) د والناس سورة ۱۱۴، ۶ آیت -

(۵۹) ورغلان : په شور راوستل ، تحریکول.

(۶۰) اشکبوس : دیوه تورانی مبارز نوم دے چې د افراسیاب له سردارانو څخه و- اود رستم له لاسه ووژل شو.

(۶۱) کاموس : د توران لهٔ داستاني پهلوانانو څخه و - افراسیاب دے د رستم جنګ ته ولېږه او رستم ووژه.

(۶۲) آبنوس : تورقیمتي لرګے دے چې په طبابت کښې هم د استعمال مورد لري (افغان قاموس)

(۶۳) سولہ : دار ، غرغره (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۶۴) فلوس : توري پیسې ، د عراق مروجه فلزي سکه (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۶۵) کوس : لوے طبل ، نغاره (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۶۶) ناقوس : لوے زنګ چې په کلیساوو کښې ځوړند وي.

(۶۷) فروس : د فرس جمع : آسونه.

(۱۶۸) فانوس: لهٔ فلزٔ ښیښې یا کاغذ څخه جوړ شوے څراغدانچې شمع پکښې بلېږي.

(۱۶۹) اصل: چړا.

(۱۷۰) ققنس: اورمارغه - یو افسانوي مارغه دے، ډېر ښکلے او دښهٔ آواز څښتن. پهٔ سلګونو کاله ژوندکوي. د عمر پهٔ پائے کښې لرګي راټولوی او باندې کښېني خپلو وزرونه وهي لرګي اور اخلي د خپل ځان پکښې سوځوي لهٔ ایرو څخه یې یوه هګۍ (ها) پیداکېږي اوپس لهٔ څهٔ مودې له هګۍ نه بل ققنس راوځي (دخانګل خلیل دشعرونو لغتنامه)

(۱۷۱) کرګس: ګجیر (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۱۷۲) اصل: آخرس، اخرس: ګونګ (عمید)

(۱۷۳) عس: پاسبان، ساتونکے، ګزمه (عمید)

(۱۷۴) خراش: هغه اثرچې دیوه تېرهٔ څیز او یا لهٔ نوک نه راپیداکېږي (عمید)، اصل: پهٔ خاطرمې خوږ ستا د بڼو خراش.

(۱۷۵) رهاش: رهایش، استوګنه

(۱۷۶) خفاش: د موږک پهٔ څېر تور رنګ حیوان دے الوتلے شي، ضعیفې سترګې او تېرهٔ غاښونه لري، غوږونه یې ډېر برجسته دي. پهٔ تیارهٔ کښې ژوندکوي - اود ماښام پهٔ وخت کښې الوځي.

(۱۷۷) اصل: بهاده، که دغسې تلفظ شي پهٔ مصره کښې سکته رامنځ ته کېږي.

(۱۷۸) شاش: متیازې.

(۱۷۹) اوباش: بې لارې، بد چلن، آواره (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۱۸۰) معاش: د ژوند وسیله (عمید)

(۱۸۱) اصل: که دمردي.

(۱۸۲) دواش: پنجه، یو ډول نبات دے چې ونهٔ یې پهٔ پاخه او اومه ډول خوړل کېږي اوخوند یې تریو دے.

(۱۸۳) دمیده: زرغونه، شنهٔ (عمید)

(۱۸۴) منش: خوے، سرشت، طبیعت او دهمت پهٔ معنیٰ هم راغلے دے (عمید)

(۱۸۵) شپېره : وچکه ، لویه تبه ، سره تبه (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۱۸۶) تفش : ګرمي ، حرارت (عمید)

(۱۸۷) اکوان : د شاهنامې د داستانونو له مخې اکوان د یو دیو نوم و ، چې رستم ووژه.

(۱۸۸) تهمتن : قوي ، تنومند او د رستم لقب.

(۱۸۹) یال وفش : دیال معنی ده د اس د غاړې وېښتهٔ خود بازو (مټ) په معنی هم راغلې دے ، دوهمه معنی یې دلته لګېږي او د فش یوه معنی ځنې (زېږې) جاې دي - دغه کلمه د انسان یا حیوان د غاړې ، د غاړې د ښېخ په معنی هم راغلې ده.

(۱۹۰) حشیش : د شاه دانې ګیاه چې چرس ځنې جوړ وي.

(۱۹۱) انبان : بخر ، اصل : ابنان

(۱۹۲) مکرم : عزیز ، لوے.

(۱۹۳) حریش : ګرګدن (عمید)

(۱۹۴) دا کلمه کشمش لیکل کېږي ، تر (م) ورسته (ی) نهٔ لري ،

(۱۹۵) فاقه : فقر ، تنګلاسي ، حاجت ، ناداري (عمید)

(۱۹۶) اصل : دیهم : دیهیم : تاج ، افسر

(۱۹۷) خسروی : باچهي ، شاهانه (عمید)

(۱۹۸) کېش : دین ، مذهب ، عقیده ، آئین ، لار (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۱۹۹) اصل : درکړه.

(۲۰۰) اصل : جاجت

(۲۰۱) چم : محله ، کوڅه ، هغه لارې د څو کورونو د دېوالونو ترمنځ وي.

(پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۰۲) دارالنعم : نعمت سرا ، د نعمتونو ځاے او دارالنعیم : د ناز و نعمت ځاے (بهشت)

☆ اصل : رقم

(۲۰۳) سمبورے : سورے ، کشادګي (پښتو ژبه) اما په بیت کښې نهٔ لګي.

(۲۰۴) درویش : درویش د فقیر په معنی دے په اسلام کښې دغه لفظ په یوه دیني طریقه دلالت کوي - درویش د رهبان حېثیت لري او په دله یېزه توګه د یو شېخ ترمشرۍ

لاندې دي. دوئ په فقر، پاکه او تواضع کښې ژوندکوي. درويشان څو ډلې دي، لکه: مولويه، رفاعيه، قلندريه، جبريه او نور....

۲۰۵) رقاص: رقص کوونکی، ګډېدونکی.

۲۰۶) قصاص: جزا، د ضارب يا قاتل مجازات. له هغه عمل سره سم چې هغه کړے وي.

۲۰۷) نور: نمس: لمس

۲۰۸) غواص: آب باز، هغه څوک چې د مرغلرو او مرجان د لاس ته راوړو لپاره داوبو تل ته ورځي.

۲۰۹) رصاص: قلعي، سرپ.

۲۱۰) مرخص: آزاد شوے، رخصت ورکړل شوے.

۲۱۱) منغص: مکدر، ناګواره.

۲۱۲) مخلص: د نجات ځاے، د خلاصون ځاے، د تېښتې لار.

۲۱۳) مختص: خاص شوے.

۲۱۴) کلمن: د عربي الفبا له آوازونو څخه د جوړ شوو اتو مصنوعي کلمو، څلورمه کلمه چې ابجدي ارزښت يې ک۲۰، ل ۳۰، م ۴۰، ن ۵۰ دے.

۲۱۵) سعفص: د اتو مصنوعي کلمو پنځمه کلمه چې د س ابجدي ارزښت ۶۰، ع ۷۰، ف ۸۰، او ص ۹۰ دے.

۲۱۶) مرقص: په ګډا.

۲۱۷) ايرج: د شاهنامې په داستانونو کښې د فرېدون زوے ايرج نومېده چې د خپلو ورونو سلم او تور له خوا ووژل شو.

۲۱۸) قصص: د قصې جمع، قصې.

۲۱۹) نصوح: ناصح، پند ورکوونکی، بې ريا او صادق دوست، توبة النصوح: قطعي توبه او حقيقي توبه چې بيا ماته نه شي.

۲۲۰) نص: معتبر کلام، صريح او څرګند کلام.

(۲۲۱) اصل : سحار

(۲۲۲) بهره : حصه ، نصیب ، قسمت

(۲۲۳) رجاء : امید داري .

(۲۲۴) جرعه : هغه اوبه یا بل مایع څیزچي پهٔ یو ځل او یوه دمه څښل کېږي.

(۲۲۵) باده : دڅښلو هر هغه څیزچي نشه ولري .

(۲۲۶) تیمار : پرستاري ، نوازش ، دبیمار مراقبت او هم د ذرهٔ سوي او غمخوري پهٔ معنیٰ راغلی دے .

(۲۲۷) ورطه : گرداب .

(۲۲۸) فروض : دفرض جمع ، فرض : لازم او واجب امر ، هغه څهٔ چي خدائے (ج) پر انسان واجب کړي دي او هغه څهٔ چي انسان پر ځان لازم کړي دي .

(۲۲۹) قروض : دقرض جمع ، قرض : پور .

(۲۳۰) فرقان : هغه څهٔ چي حق لهٔ باطلو تشخیص کړي .

(۲۳۱) مقروض : پوروړے .

(۲۳۲) مبغوض : دښمن گڼل شوے - دخښم او کینې مورد واقع شوے

(۲۳۳) معروض : عرض کړے شوے .

(۲۳۴) غروض : دغرض جمع .

(۲۳۵) قبض : نیول .

(۲۳۶) بسط : پراخي ، وسعت .

(۲۳۷) مقبوض : قبض شوے ، څهٔ شے چي پهٔ لاس کښې نیول شوے وي (عمید)

(۲۳۸) اصل : شجع ، سجع : مقفي کلام ، قافیه لرونکے کلام .

(۲۳۹) انبساط : غوړول ، خوړول او هم د خوښي پهٔ معنیٰ .

(۲۴۰) اصل : جاړي .

(۲۴۱) سماط : پر زمکه د خوړولو هغه څیزچي خواړه پري ایښول کېږي او هم د صف او نظم

په معنی سم راغلی دی.

(۲۴۲) حمال: بار وړونکی، جوالي، پنډي.

(۲۴۳) اسقاط: غورځول.

(۲۴۴) مهر: لمر، ماه: سپوږمۍ

(۲۴۵) نمط: طریقه، دوش، دوبه.

(۲۴۶) شط: پلن، دسیند څنډه، ددریاب غاړه (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۴۷) بنکلي: کیسلي.

(۲۴۸) زولن: زون، دزووړک (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۴۹) تفریط: ضایع کول، دمال تلف کول. په یوه کارکښې کوتاهي کول (عمید)

(۲۵۰) مفرط: له حد او اندازې زیات تجاوزکوونکی، له حده زیات، ډېر.

(۲۵۱) مسلط: تسلط پیدا کړی.

(۲۵۲) سروس: نوکري، ملازمت، چاکري.

(۲۵۳) تمسک: حجت، سند، دستاویز (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۵۴) نقوط: نقطې، ډرې گردې نخښې.

(۲۵۵) مشروط: هرهغه څیزچې په شرط پورې اړ ولري.

* لقط: له ځمکې دبر (حاصل) اوچتول (فرهنگ بیان)

(۲۵۶) غلیظ: کاټه، خټه، ټینګه (مایع) زیږ، سخت، بد (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۵۷) اصل: سنګ.

(۲۵۸) پلیت: پلید: مردار، گنده، بد عمله، بدکرداره (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۵۹) تکریر: تکرار، یو کار دوه ځله کول (عمید)

(۲۶۰) انجماد: کنګل - هغه حالت ته وېل کېږي چې د تودوخې د درجې د کښته کېدو له امله دمایعاتو په جسم کښې پیدا کېږي او په نتیجه کښې مایعات منجمد یږي او کلکېږي.

(پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۶۱) مطلع : دانا ، آگاه ، باخبر

(۲۶۲) تفخر : فخر کول -

(۲۶۳) عزازیل : دشیطان نوم دے چې پهٔ ابتدأ کښې استاد وُ خو دروسته دکبر او نافرمانئ لهٔ امله ورټل شو.

(۲۶۴) لامع : روښانه ، ځلېدونکے -

(۲۶۵) طامع : طمع کوونکے ، سرایی ، هیلندوکے ، سولن (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۶۶) راکع : رکوع کوونکے (عمید)

(۲۶۷) سامع : اورېدونکے -

(۲۶۸) اصل : علیه ، علیا ، لوړ -

(۲۶۹) شعاع : وړانګه

(۲۷۰) انتفاع : ګټه ، سود ، فایده (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۷۱) استماع : اورېدنه ، نغوږدنه (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۷۲) بې : به یې

(۲۷۳) امتناع : منع کونه ، سېمونه ، ګرځونه -

(۲۷۴) ارتفاع : لوړوالے ، جګوالے

(۲۷۵) مبیع : پلورل شوے او پېرودل شوے (عمید)

(۲۷۶) سبقت : وړاندې کېدنه (پښتو ژبه)

(۲۷۷) قناع : راضی

(۲۷۸) اجماع : متفق کېدل ، اتفاق (عمید)

(۲۷۹) نزاع : جنګ کول ، جنګ ، کشمکش (عمید)

(۲۸۰) برایې : ښکا ، ښکانه شپه ، تېره شپه (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۸۱) عندلیب : چوڼه ، بلبل -

(۲۸۲) فراغ : وزګاري ، آسوده‌ګي (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۸۳) پر: بنه ، بڼکه

(۲۸۴) (۲۸۵) اصل: سانګه

(۲۸۶) سراغ: پته ، نښان (پښتو ژبه)

(۲۸۷) برملا: څرګند ، ښکاره.

(۲۸۸) تصدق: خیرات او صدقه ورکول.

(۲۸۹) الوف: د الف جمع ، په زرګونه.

(۲۹۰) ظروف: د ظرف جمع ، لوښي.

(۲۹۱) حلوف: سوګند ونه.

(۲۹۲) طروف: طرفونه ، لوري ، خواوې.

(۲۹۳) ژېرمه: توښه ، یما ، (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۹۴) عطف: راګېرځېدنه ، کوم څه ته مایل کېدنه ، ربط ، ارتباط ورکول.

(پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۹۵) معطوف: مایل شوے ، د توجه وړ ګرځېدلے ، هغه کلمه چې خپلې د معنی کلمې سره عطف شي (عمید)

(۲۹۶) خرابات: د عیش و نوش ځاے ، د نشې ځاے (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۲۹۷) منیف: لوړ ، لوے ، مرتفع (عمید)

(۲۹۸) نحیف: خوار ، ضعیف.

(۲۹۹) اصل: ضعیف: که په قصد ې بنه پر پښو ول شي ، د مسرې جوړښت ته زیان رسوي او ګنډه پکښې پیدا کېږي.

(۳۰۰) اصل: آیات ، آیت: نخښه ، مجازاً د لوے سړي او عجیب څیز په معنی (عمید)

(۳۰۱) اصل: شولي

(۳۰۲) شق: چاود ، چاک (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۰۳) علق: وینه (عمید)

(۳۰۴) تتق : لوے څادر ، خیمه ، خرګاه .

(۳۰۵) معلق : ځوړند .

(۳۰۶) اصل : حسن ، حسین بن منصور حلاج (۸۵۸ - ۹۲۲ع) پوره نوم یې ابوالغیث بن منصور حلاج و . د الطور په قصبه کښې پېدا و . د عمر ابتدايي دوره یې د عراق په واسط نومي ښار کښې تېره کړې ده . په بصره کښې یې له عمر و مکي څخه په تصوف کښې استفاده کړې ده . په ۲۶۴ ه ق کال بغداد ته تلل و او د جنید بغدادي د شاګردانو په حلقه کښې شامل شو . دے د همه اوست قایل و . اوتل به یې د اناالحق نارې وهلې . دوه ځله ګرفتار کړے شو . بالاخره په ۳۰۹ ه ق کال په دار وخېژولے شو (اردو انسایکلوپیډیا ۳۲۹ - ۳۳۰)

(۳۰۷) مستغرق : څوک چې په یو کار کښې سخت سرګرم وي ، ډوب تللے (عمید)

(۳۰۸) غریق : غرق شوے ډوب شوے .

(۳۰۹) شفیق : مهربان ، لورکوونکے .

(۳۱۰) ابریق : خټین لوښے چې د صراحي شکل او درسره لاسے ولري ، د اوبو یا شرابو لپاره استعمالیږي .

(۳۱۱) همایا همای : افسانوي مارغه دے . وایي چې که پر چا یې سیوره وشي سترسړے به یې په برخه شي .

(۳۱۲) بیت العتیق : بیت الله ، بیت الحرام (عمید)

(۳۱۳) دزد : غل .

(۳۱۴) تشریق : روښانول ، رڼایي اچول ، ښایسته کېدل (عمید)

(۳۱۵) لئیق : لایق ، لیاقت مند (نسیم اللغات)

(۳۱۶) لولاک : که ته نه وے (عمید)

(۳۱۷) افلاک : د فلک جمع ، آسمانونه .

(۳۱۸) خشاک : خاشاک ؛ خس ، خلي ، تیلي (پښتو ډیره)

(۳۱۹) طیب : ښه بوی او ورم (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۲۰) مغاک : ګودال .

(۳۲۱) دکیب : د دکاب بدل شکل دی چې په شعرونو کښې د ضرورت شعري دپاره استعمالیږي.

(۳۲۲) ادراک : فهم ، پوهه ، قابلیت .

(۳۲۳) طینت : خوی ، عادت ، خصلت (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۲۴) همم : همت (عمید)

(۳۲۵) بروج : د برج جمع .

(۳۲۶) کک : خیز ، ځغل ، ذره (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۲۷) اصل : خانه پروژ ، خانه پرور : په کورکښې ساتلی شوی پالل شوی .

(۳۲۸) چک : ټک ، حمله ، په غابنونوچیچنه (پښتو ژبه)

(۳۲۹) جراد : ملخ

(۳۳۰) سمک : ماهي ، کب

(۳۳۱) دوک : غم ، نول ، څپګان (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۳۲) شوک شوک : ځیرې ویرې ، ځیرې ځیرې

(۳۳۳) اصل : جاړم .

(۳۳۴) اصل : څوک .

(۳۳۵) سلوک : (۱) د الله تعالیٰ د قرب د حاصلولو لپاره د صوفیانو پر لاره چارو عمل کول.

(۲) رویه ، عمل ، په دې بیت کښې په دوهمه معنیٰ راغلی دی (پښتو ژبه)

(۳۳۶) توک : لاړې ، ناړې (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۳۷) لکوک : لکونه ، لاکهونه -

(۳۳۸) غوک : غورباغه ، له ذوحیاتینو حیوانانو څخه دی - په اوبوکښې هګۍ اچوي - په اوبو او وچه دواړوکښې ژوندکوي.

(۳۳۹) خوک : خوګ ، سرکوزی ، خنزیر (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۳۰ په اصل نسخه کښې کړدے ما (کړ) ځني جوړکړ.

(۳۳۱ همال: برابر، همتا، مثل، مانند (عمید)

(۳۳۲ اصل: حسن

(۳۳۳ ظلال: هغه څه چې د یو څیز پر ځ سیورے (سورے) پیدا کړي.

(۳۳۴ دارالسلام: جنت -

(۳۳۵ بے: به یې

(۳۳۶ اغلال: د غل جمع، غل: او سپنینه غاړه کۍ چې د بندیانو غاړې ته اچول کېده

(۳۳۷ زدوده: پاک شوے، پاکیزه.

(۳۳۸ انفعال: شرمندګي، شرمېدلي (دا کلمه نورې معناوې هم لري، خو دلته یې زما په عقیده دغه معنی سمون خوري.

(۳۳۹ منال: هغه جایداد چې ګټه او حاصل ترې تر لاسه شي، لکه، دکان، زمکه

(۳۵۰ محال: ناشونے

(۳۵۱ شد: ټینګ، محکم، کلک، سخت، استوار (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۵۲ معجل: په شتاب سره - هغه کار چې تلوار او شتاب پکښې شوے وي.

(۳۵۳ اشترا: پلورل، پیرودل (عمید)

(۳۵۴ اصل: دړه -

(۳۵۵ ګسل: پرې.

(۳۵۶ فتراک: تسمه یا نری څرمن ده - چې د اس د زین تر شا خوړنده وي.

(۳۵۷ معمول: یوه معنی یې رسم و عادت هم ده چې دلې لګېږي.

(۳۵۸ معزول: عزل شوے، له کاره لېرې کړے شوے، وزګار او ګوښه نشین.

(۳۵۹ سلیمانۍ: یوه مبارکه مرۍ یا ډبره چې متبرک حیثیت ولري (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۶۰ موصول: وصل شوے، پیوند شوے (عمید)

(۳۶۱ اصل: آیات -

۳۶۲) عدول: سرغړاوے، لهٔ ړدې ګرځېدنه.

۳۶۳) محصل: حاصلوونکے، لاس ته راوړونکے.

۳۶۴) شبدیز: شب رنګ، دشپې پهٔ ډول اوهم دخسرو پرویزد اس نوم، چې تور رنګے و.

۳۶۵) حزب العزازیل: دشیطان ډله.

۳۶۶) ځایې: ځاے یې

۳۶۷) پهٔ خطي نسخه کښې تردې بیت لاندې دغه بیت راغلے دے.

"پهٔ پرکار د عشق کښې ګوره ذره سنګ مني ده

نهٔ قیمت یې چا پیدا کړ پهٔ دا هفت اقلیم"

چې د قافیوي جوړښت لهٔ مخې لهٔ دې غزلې سره نهٔ لګېږي، دکومې بلې غزلې بیت دے غالباً د (م) دردیف د څلورمې غزلې.

۳۶۸) ایاز: د سلطان محمود غلام چې دخپل هوش او ذکاوت لهٔ امله پر سلطان ګران و.

۳۶۹) محمود: سلطان محمود (۳۸۷ - ۴۲۱هـ ق) دغزنې لهٔ سترو شاهانو څخه و. پلار یې سبکتګین نومېده.

۳۷۰) نور: نمر، لمر

۳۷۱) زمام: واګه، هغه پټئ چې د اس د قابو ساتلو لپاره لهٔ قبضې سره تړلې وي (پښتوژبه)

۳۷۲) خون آشام: وینې څښوونکے.

۳۷۳) میان: منځ.

۳۷۴) دریتیم: ستره مرغلره چې یوازې پهٔ صدف کښې وي.

۳۷۵) فم: خوله.

۳۷۶) جمیل: ښکلے، ښایسته

۳۷۷) شیم: دشیمه جمع، شیمه: خوے، خلق، طبیعت

۳۷۸) ظلم: دظلمت جمع، ظلمت: تیارې (تېرې)

۳۷۹) منش: خوے، سرشت اوهم د همت پهٔ معنیٰ.

(۳۸۰) توغ: بېرغ، دپے جنډه (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۸۱) ابکم: ګونګ (عمید)

(۳۸۲) اصم: هغه څوک چې غوږونه یې نهٔ اوري.

(۳۸۳) حفیره: قبر، کنده، ګاړه، کوهے (عمید)

(۳۸۴) هاویه: دوزخ (عمید)

(۳۸۵) مرقوم: خط دار، نوشته شوے، لیکل شوے

(۳۸۶) ګرګ درنده: څیرونکے لیوه.

(۳۸۷) اصل: پړېړم: دېږي ترڅنګه چې زاید دے او د شعر جوړښت ته زیان رسوي.

(۳۸۸) لایم: مذمت کوونکے، نکوهش کوونکے (فرهنګ لغات قرآن)

(۳۸۹) لوم: ملامتي.

(۳۹۰) جهول: نادان ناپوه.

(۳۹۱) ظلوم: سخت ستمګار (فرهنګ لغات قرآن)

(۳۹۲) مغموم: غمجن

(۳۹۳) سلک: لړ، مزے.

(۳۹۴) غول: ډله، لښکر، جمعیت (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۹۵) نزاع: کشمکش، جنګ، جګړه.

(۳۹۶) حمیم: دحمیم یوه معنیٰ چې پهٔ دې ځاے کښې لګي، تودې اوځوښ اوبه، زوې او جراحت (فرهنګ لغات قرآن)

(۳۹۷) عظیم دمیم: وراسته هډوکي.

(۳۹۸) لعن: نفرین، رټل

(۳۹۹) ګبر: زردشتي، دزردشت پېرو.

(۳۰۰) ترسا: عیسوي، دعیسیٰؑ پېروان.

(۳۰۱) ذمیم: زشت، ناپسند.

(۳۰۲) اهانت: سپکاوے، بې عزتي.

(۳۰۳) لئیم: بخیل، ناکس، پست، ټیټ

(۳۰۴) وسیم: ښایسته، ښکلے.

(۳۰۵) اصل: شو

(۳۰۶) گلو: غاړه، ستونے.

(۳۰۷) معرج: زینه، سیړهي

(۳۰۸) شنعت: قبح، زشتي

(۳۰۹) استغراق: غرقېدل، ډوبېدل.

(۳۱۰) نسي: نیسي

(۳۱۱) ختا: د شمالي چین پخوانے نوم، چې مښک یې ډېر مشهور دي.

(۳۱۲) ختن: د چین د سنکیانګ په ایالت کښې د یو ښار او یوې سیمې نوم دے چې مښکو یې بین المللي تجارت درلود.

(۳۱۳) نین: سترګه، نظر، کتنه، دړند ولقب (اردو - پښتو لغت)

(۳۱۴) من و سلوی: هغه خواړه چې بنې اسرائیلو ته له آسمانه راتلل.

(۳۱۵) انبت: زرغون شو، شین شو.

(۳۱۶) بیت الحزن: د غم او خپګان کور.

(۳۱۷) ربع مسکون: د زمکې ټولې هغه ټوټې چې بشر پکې ژوند کوي.

(۳۱۸) مسجود: چا ته چې سجده کېږي.

(۳۱۹) طین: خټه (فرهنګ لغات قرآن)

(۳۲۰) تارک: سر، د سر منځ (عمید)

(۳۲۱) (۳۲۲) کښې = کې = کړي

(۳۲۳) کشکینه: د اوربشو د ډوډۍ په معنیٰ فرهنګونو او د لغت کتبو اخیستے دے.

(۳۲۴) سقاء: اوبه درکوونکے، هغه څوک چې کورونو ته اوبه وړي.

(۳۲۵) بچاو : حفاظت ، پناه ، د امن ځای ، امان (اردو - پښتو لغت)

(۳۲۶) بجاو : دموسیقي د آلاتو غږول (اردو - پښتو لغت)

(۳۲۷) گهاو : غرق پرهار ، زخم (اردو - پښتو لغت)

(۳۲۸) غاو : شور ، غالمغال ، فریاد (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۲۹) ساو : د سړي سرمالیات ، سرانه مالیه ، ټکس (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۳۳۰) اصل : تفشه

(۳۳۱) الوان : د لون جمع ، لون : رنګ او هم د سود رنګه نخي ټوکر په معنیٰ ، چې دلته تري مراد هم دا معنی ده .

(۳۳۲) مجمر : هغه ظرف چې اور پکښې اچوي .

(۳۳۳) اصل : شعا ، شعاع : وړانګه

(۳۳۴) شراره : جرقه ، داور هغه سپرغۍ چې هوا ته الوځي .

(۳۳۵) اخیشتې : اخیستې -

(۳۳۶) اصل : پهڅوان -

(۳۳۷) خالونې : خالونه یې -

(۳۳۸) اصل : پهڅوان

(۳۳۹) مردمک : د سترګې د دایرې دننه تورواله ، چې د اشیاوو او اشخاصو عکس پکښې لوېږي -

(۳۴۰) زقوم : دلته د ترخې او زهرناکه په معنیٰ راغلی دی . زقوم په دوزخ کښې د یوې زهري ونې نوم دی .

(۳۴۱) مستتر : پټ ، پوښلی ، پنهان

(۳۴۲) ډوډزه : خوږسکه ، ترخې لوګی ، ترخې دود -

(۳۴۳) اصل : ذنق : زنق = زنخ : زنه

(۳۴۴) کمان چاچي : بنه کمان ، چاچ ته منسوب کمان ، چاچ د ماوراء النهر او منځنۍ آسیا

لهٔ ښا دونو څخه يو ښادو، چې ځلته به ښهٔ کمانونه جوړېدل.

(٣۴٥) اصل: پکې

(٣۴٦) مسرف: اسراف کوونکی، اسراف: لهٔ حده زيات خرڅ، بدخرڅي.

(٣۴٧) دفو: ګنډنه، ترميم.

(٣۴٨) رورو: ورورو، د شاعر لهٔ لاسه سره سم پهٔ اصلي بڼه پرېښوول شو.

(٣۴٩) اصل: پېڅوان.

(٣٥٠) اورګے = اور اورګے = اوربلګ: يو ډول حشره ده چې د شپې الوځي او د بڅري پهٔ شان رڼا کوي.

(٣٥١) غبغب: تر ستوني لاندې غوښه (عميد)

(٣٥٢) جلاجل: زنګونه (عميد)

(٣٥٣) اهريمن: شېطان، د بدۍ لارښوونکی. ☆مرېم: مرهم

(٣٥۴) اصل: تاغير.

(٣٥٥) اصل: شادي.

(٣٥٦) اصل: طپيده، تپيدن: بې آرامه کېدل، بې قراره کېدل، پهٔ زور او فشار يو ځاے ته داخلېدل.

(٣٥٧) مغبچه: مجازاً مے خانه (خوشحال فرهنګ)

(٣٥٨) زېله: هغه پړے يا ځنځير چې د بنديانو پهٔ غاړه کښې اچول کېږي.

(٣٥٩) مفرح: خوښي راوړونکی، د زړهٔ قوي دارو (عميد)

(٣٦٠) اصل: ګم: ورک، ناپېدا، څهٔ څه چې د انسان لهٔ نظره نهام وي پهٔ معنی

(٣٦١) شکيب: صبر و آرام.

(٣٦٢) اصل: سنګ

(٣٦٣) شکرخواب: خوږ او خوښ خوب.

(٣٦۴) اشهب: هر هغه څهٔ چې رنګ يې سپين او تور وي (عميد) داسې تورې سپينوالے پرې غالب وي.

(۳۶۵) نحسیت: شومتیا.

(۳۶۶) طرب: ښادي، خوښي.

(۳۶۷) بطحاء: د مکې معظمې وادي.

(۳۶۸) یثرب: تر هجرت د مخه د مدینې نوم.

(۳۶۹) توبري: دغشي ځوکه

(۳۷۰) آهیختن: له نیامه له غلافه د تیغ را ایستل.

(۳۷۱) لهولعب: شوخي، بازي، سرګرمي، مزاح.

(۳۷۲) زبیب: وچ کړي انګور، چې یو قسم شراب ترې جوړیږي، وشکې، مویز، وچ کړي انګوران (پښتو ټبه)

(۳۷۳) مهیب: سهمناک، هغه څوک یا شئ چې خلک ترې واړیږي.

(۳۷۴) هېبه: حمله، چپاو، واکه (دعبدالحمید مومند د دیوان لغتنامه)

(۳۷۵) ګوانډي: ګاونډي

(۳۷۶) کلب: سپی

(۳۷۷) مهوش: د سپوږمۍ په څېر، ښکلې

(۳۷۸) سهي: سمه ولاړه، د سرو صفت.

(۳۷۹) شعا: شعاع

(۳۸۰) سفیدار: سپیدار، سپین چنار، یو ډول ونه ده چې د ږو رنګ یې سپین وي.

(۳۸۱) تجید: لوړګنډل، څوک لوی ګڼل، ښه او په نېکه یادول.

(۳۸۲) اصل: سانګه.

(۳۸۳) لوا: پرچم، علم، جنډه

(۳۸۴) مخدوم: سرور، آغا، هغه څوک چې نوکر لري.

(۳۸۵) استان: ځای، د درېدلو ځای، د اوسېدلو ځای

(۳۸۶) خلدبرین: بهشت برین، جنت.

(۴۸۷) چاک : درز، چاود -

(۴۸۸) اصل : حسن

(۴۸۹) اصل : ترغون : ترغون = لرغون = پخوا، دمخه

(۴۹۰) نفور : دپاندې تلل ، لېرې کېدل.

(۴۹۱) نذور : د نذر جمع ، د نذر یوه معنیٰ داده : شرط ، پیمان ، هغه څه چې څوک یې پر ځان واجب کړي ، چې د خدای په لار کښې به یې لګوي.

(۴۹۲) شف : یوه معنیٰ یې باد ده ، دلته هم د دم په مفهوم راوړل شوی دی.

(۴۹۳) خاطف : هغه روښنايي چې سترګې خیره (تښتې) کړي او هم هغه غشی چې په زمکه ولګي او بیا د هدف لور ته لاړ شي.

(۴۹۴) ذوالبرکته : د برکت خاونده.

(۴۹۵) قارون : د حضرت موسیٰ (ع) په زمانه کښې په اسرائیلو کښې تېر شوی دی - وبل کېږي چې قارون څلوېښت کوټې زر درلودل او د موسیٰ د نفرین په اساس له خپلو خزانو سره غرق شو.

(۴۹۶) چت ، یوه معنیٰ یې بې خبره پیل دی.

(۴۹۷) سفره : د دسترخوان -

(۴۹۸) نت : سخت تاو ، سخت ناارام ، سخت ناقرار ، ځلبلاند (زړه پانګه)

(۴۹۹) څت : ورمېږ -

(۵۰۰) اصل : ستېه ، څټه ، پېټی ، جوال ، بوره ، بوجه -

(۵۰۱) دوتاب : څخ کړځو ونیکے.

(۵۰۲) یغما : چپاو ، تاراج

(۵۰۳) اصل : شجع -

(۵۰۴) کافور : یو ډول سپینه فرارېدونکې ماده ، چې په هند، چین ، جاپان او سوماترا کښې د کافور وله ونې څخه لاس ته راځي ، د کافورونه لویه او تل شنه وي ، لرګي یې سپین

او سپک لهٔ لرګو او ریښو څخه دغه ماده تر لاسه کېږي . لهٔ کافورو څخه پهٔ صنعت او طبابت کښې کار اخیستل کېږي.

(۵۰۵) طور : پهٔ سینا کښې دیوه غرهٔ نوم دے چې موسیٰ به دمناجات دپاره هلته تهٔ .

(۵۰۶) سفله : پست ، ټیټ ، ناکس ، پس فطرت

(۵۰۷) طینت : طبیعت ، خویے .

(۵۰۸) ندیم : هم صحبته ، همنشین ، همدم

(۵۰۹) ټولګے : ډله ، صنف .

(۵۱۰) بدرګ : کم اصل ، بد اصل ، رذیل ( پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۵۱۱) الیم : دردناک ، ډېر دردناک ، درد راوړونکے .

(۵۱۲) رفیع : لوړ ، هسک ، جګ ، د لوړې درجې خاوند .

(۵۱۳) مطیع : فرمانبردار ، اطاعت کوونکے .

(۵۱۴) علیم : عالم ، پوه ، د علم څښتن

(۵۱۵) سمیع : اورېدونکے ، شنوا .

(۵۱۶) شنیع : قبیح ، زشت ، بد .

(۵۱۷) کشی : د اوسپنې ټوټه .

(۵۱۸) املاق : درویشي .

(۵۱۹) مخزن الاشفاق : د زړه سوي او مهربانۍ خزانه .

(۵۲۰) اژدر : په قدیمو افسانو کښې لوے مار اژدر بلل شوے دے چې لهٔ خولې به یې اور ورېده .

(۵۲۱) طمطراق : پرتم ، نمایش ، ظاهري خبرې ، دباب ، لاپې ، باټې

(۵۲۲) چقماق : بکره ، یو ډول سپین کاڼے دے چې لهٔ پنځو سره یې جنګوي ، او داور بڅري ترې پادېږي.

(۵۲۳) اصل : کاردوناز = کاردزار : جنګ ، جګړه .

(۵۲۴) اصل: جاړه

(۵۲۵) اصل: لړول

(۵۲۶) اصل: سنګ

(۵۲۷) اخیشتل: اخیستل.

(۵۲۸) پېزار: موچنۍ، پڼې، څپلۍ، کوښې، دپښوکولو څ
☆ چې: چې یې، اصل: چې مسرت یې په دولت
(۵۲۹) پایون، پایان: ترپایه، تر آخره

(۵۳۰) بې: به یې

(۵۳۱) جرګه: ذهرموره (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۵۳۲) ګزنده: چیچونکی.

(۵۳۳) کیکوړے: دړه دودړه (دوټه) ښايي په دې ځاے کښې دشاعرمقصد چکه، کلچه وي.

(۵۳۴) قرص: ټیکله، ټیکله (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۵۳۵) عنادل: دعندلیب جمع.

(۵۳۶) اصل: حسن

(۵۳۷) زمن: وخت، روزګار، هنګام

(۵۳۸) ذقن: زنه، زنخدان.

(۵۳۹) سوزن: ستن

(۵۴۰) توسن: سرکش اس، باغي اس.

(۵۴۱) اصل: لانوش مې دمسرې یوه څچا لړه راځي.

(۵۴۲) کوغالے: ډوغل، درغالے، کوډله، جوګړه (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۵۴۳) ورم: پړسون، پړسوب

(۵۴۴) ځبله: یو تربله - په خپلو کښې، په خپل منځ کښې (زړه پانګه)

(۵۴۵) پنهم: پټ، پنهان (زړه پانګه)

(۵۴۶) اصل: شف، ځف: پوکے، پوکول، پوک.

(۵۴۷) جانګاه: د نځ ورکوونکۍ - هغه ځای چې د انسان روح روان ازاروي او عمر لنډوي.

(۵۴۸) اصل: لافو شافو

(۵۴۹) مهي: ماهي: کب

(۵۵۰) شهي: شاهي.

(۵۵۱) تابې: تاب بېې: تاویږي.

(۵۵۲) خد: اننګي، حمراخد: سرۀ اننګي ☆ اصل: پۀ

(۵۵۳) لالا: لاله.

(۵۵۴) سپف: توره

(۵۵۵) سلما: د اسلم مؤنث، يعنې سالمتر، جوړ، روغ

(۵۵۶) ستام: د اسپ زین او ایراق.

(۵۵۷) نور: نمر: لمر

(۵۵۸) کنبې: کې: کړې

(۵۵۹) استغاثه: داد غوښتل

(۵۶۰) عک: هغه کانړي چې سرۀ او سپین زر پرې موږدي او کره او کوته يې پرې معلوموي.

(۵۶۱) (۵۶۲) کنبې: کې: کړې

(۵۶۳) پتنګانوی: پتنګانويې.

(۵۶۴) کنبې: کې: کړې

(۵۶۵) نور: نمر: لمر

(۵۶۶) کنبې: کې: کړې

(۵۶۷) کنبې: کې: کړې.

(۵۶۸) دارالقرار: جنت، آخرت

(۵۶۹) نور: نمر: لمر

(۵۷۰) زراندود: پۀ زرو پوښل شوی، زنګار -

(۵۷۱) عاد : پهٔ عربو کښې د يو سرې نوم د .چې د هود قوم هغهٔ ته منسوب دے.

(۵۷۲) ثمود : د عربو لهٔ قبايلو څخه د يوې قبيلې نوم دے ، چې صالح پيغمبر يې پېشوا و - دوئي لومړے بت پرست وو. کله چې صالح پيغمبر مبعوث شو ، نو د ثمود قوم ترې معجزه وغوښتله اودوته يې وويل چې د غرهٔ لهٔ منځه بايد يوه اوښه لهٔ جونګي سره راولې . صالح (رض) دغسې وکړل - خو قوم ونهٔ منل - او ويل يې چې صالح سحر کړے دے. دا وخت اوښه يوې چينې ته ولاړه اودچينې ټولې اوبه يې وڅښلې بيا دوئي هغه اوښه حلاله کړه اولهٔ دې سره سم لهٔ آسمانه يو مهيب آواز راغے اولهٔ ويرې يې دغه قوم ټول هلاک شو.

(۵۷۳) اصل : به وورځو.

(۵۷۴) نوال : عطاء ، بهره ، نصيب ، صواب .

(۵۷۵) سفال : خټين لوښي ، لکه کاسه ، کوزه اونور

(۵۷۶) اعناق : د عنق جمع ، اعناق : غاړې ، عنق ، غاړه.

(۵۷۷) سجين : دايم ، سخت اوپهٔ دوزخ کښې د يو ځاے نوم .

(۵۷۸) اصل : کوله.

(۵۷۹) شد : ټينګ ، کلک ، سخت ، محکم ، استوار ، حمله کول .

(۵۸۰) کبد : جګر ، ځيګر

(۵۸۱) منعقد : تړلے ، تړلے شوے

(۵۸۲) قرآن عظيم : فی جيد ها حبلٌ من مسد : د هغه پهٔ غاړه کښې د خرما (د دوئي د پوستکي) د تارونو رسۍ ده (المسد ، ۱۱۱ سورة ۵ آيت) (فرهنګ لغات قرآن)

(۵۸۳) مزمل : پهٔ خپله جامه کښې پېچل شوے : يا ايها المزمل (۷۳ سورة ، ۱ آيت) خطاب دے پيغمبر لره (فرهنګ لغات قرآن)

(۵۸۴) دلق : پوستين ، د درويشي جامه.

(۵۸۵) عد : شمېر ، د شمېر وړ (فرهنګ لغات قرآن)

(۵۸۶) دد : ځیروونکے حیوان ، لکه : زمرے ، پړانګ ، لیوه

(۵۸۷) اورنګ : پاچهي تخت

(۵۸۸) اصل : چینی

(۵۸۹) خنګ : سپین اس .

(۵۹۰) غمزده : په خطي نسخه کښې یې تردې ټکي لاندې لیکلي دي : تخلص مصنف .

(۵۹۱) دوش : پرون شپه ، تېره شپه .

(۵۹۲) تار : د موسیقي یوه آله ده چې سیم او پرده ، اوږد لاستے او کاسه لري او د توت د ونې له لرګي جوړېږي .

(۵۹۳) اصل : لکدکوي

(۵۹۴) حمار : خر

(۵۹۵) اصل : جنبش

(۵۹۶) ترک : ښکلا ، محبوب ، ګران ، اشنا (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۵۹۷) طره : دوچولي څنګ ته د تاو شوو ویښتو یوه قوده .

(۵۹۸) تشویر : خجالت ، شرمنده .

(۵۹۹) شنګول : شوخ ، ظریف ، زیبا ، ښکلا .

(۶۰۰) طاس : مسي کاسې ته وایي خو طاس نیلګون کنایه ده آسمان ته .

(۶۰۱) سپهر : آسمان ، فلک .

(۶۰۲) غنج : غنج ، ناز او ادا ، کرشمه (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۶۰۳) عشوه : ناز او کرشمه .

(۶۰۴) اصل : خطی .

(۶۰۵) اصل : کوچی

(۶۰۶) توقیر : عزت ، احترام

(۶۰۷) تخمیر : خمیرول ، د شرابو رسېدنه (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۶۰۸) تنویر: رڼا ، رڼایي -

(۶۰۹) حاملاني: وړونکي -

(۶۱۰) آبق: سیماب

(۶۱۱) فایق: بریالی - اعلیٰ - اوچت -

(۶۱۲) دا کلمه ، " څوارش " په همدې ترکیب ما د لغت په کتبوکښي پیدا نه کړه - اما یو ازې د څوار کلمه شته چې د صبر او زغم معناوې یې ورته کښلي دي (پښتو ژبه) څنګه چې د دیوان په خطي نسخه کښي څو ځایه د " څ " آواز پر " س " کښلي او افاده کړې دی - نو ځکه ما ویل بنایي د دې کلمې (څ) ، (س) وي - په دې ترکیب هم ما په فرهنګونو کښي کلمه ونه موندله - خو د (ارش) کلمه وه ، چې معنیٰ یې ورته کښلې ده : " د منځو منځ ګوتې له سره تر څنګلې پورې فاصله " چې زما په نظر په لوړه مصرعه سمه معنیٰ نه ښندي.

(۶۱۳) دا کلمه هم په دا بنه په فرهنګونو کښي ما نه کړه پیدا -

(۶۱۴) واللیل اذا یغشیٰ : او سوګند په شپه سره هر کله چې پټ کاندي جهان په تاریکي خپل (قرآن مجید له پښتو ترجمې سره ۷۷۴ مخ)

(۶۱۵) اصل: ځکو -

(۶۱۶) اصل: بلیط -

(۶۱۷) زایل: لرې ، محو ، ستړاو (پښتو ژبه)

(۶۱۸) اصل: علماءو -

(۶۱۹) اصل : اوستاد -

(۶۲۰) بې : به یې -

(۶۲۱) نور: نمر ، لمر -

(۶۲۲) بې : به یې -

(۶۲۳) تام: توول ، تمام (پښتو - پښتو تشریحي قاموس)

(۶۲۴) همایون : بابرکت ، خوش بخت (ظفر)

(۶۲۵) اصل : گـرو -

(۶۲۶) مضل : گمراه کوونکې ، هغه څوک چې د سړي دگمراهۍ سبب کېږي.

(۶۲۷) مکنت : قدرت ، توانايي ، ښرو.

(۶۲۸) دېوملعون : لعنت کړے شوے دېو- دېو = دېب : يو غبتلى اوغټ افسانوي موجود دے.
وايي ، بنه يې دانسان د بنې سره لږ څه تو پېرلري. په قرآن عظيم کښې اود
سبا د ملکې په قصه کښې د عفريت په نامه ديو موجود يادونه شوې ده چې ځينې
مفسرين دغه عفريت دېو = دېب بولي ، خو ځينې نور يې پېرے گڼي -

(۶۲۹) اصل : مشک وتاتار-

(۶۳۰) رياحين : د ريحان جمع ، ريحان = هره شنه اوخوشبويه گياه (عميد)

(۶۳۱) ابرسيا : توره اوربځ -

(۶۳۲) چشمه : چينه -

(۶۳۳) اصل : جاړي -

(۶۳۴) ذُريات : د ذريه جمع ، ذريه : نسل -

(۶۳۵) مهمات : عظيم کارونه -

(۶۳۶) تشريق : رڼول ، نوراچول -

(۶۳۷) سکانې : سکان يې -

(۶۳۸) سکرات : سختي ، د ځنکدن تکليفونه (پښتو ژبه)

(٭) اصل : خاضر-

(۶۳۹) اصل : مدت -

(۶۴۰) کوے : محله ، پراخه لاره -

(۶۴۱) کوته : ناچله -

(۶۴۲) صمصام : تېره اوپرې کوونکې توره ، هغه توره چې کږه نه شي -

(۶۴۳) سام: سام د نریمان زوی. د زال پلار او د رستم نیکه چې د سام سوار او سام نریمان په نامه هم یادېږي.

(۶۴۴) سپهدار: سردار، او د لښکرو فرمان ورکوونکی.

(۶۴۵) جنود: د جند جمع: لښکرې.

(۶۴۶) ناهنجار: کوږ، ناهموار، بې قاعدې.

(۶۴۷) شعبده باز: مداري.

(۶۴۸) اصل: لستو.

(۶۴۹) مليح: نمکین، په مالګه او هم د خوبصورتۍ په معنیٰ هم راغلی دی.

(۶۵۰) مداح: ستاینکی، مدحه کوونکی.

(۶۵۱) چوړي: چوړي.

(۶۵۲) اصل: مصلي.

---

